Bawar.net

بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تألیف

محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون

د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکی

مولوي شمس الله کمال زاده

المکتبة المعروفیة

کوئټه لاهور پاکستان

Scanned by CamScanner

Scanned with CamScanner

Bawar.net

# صفوة التفاسير

## دوهم ټوک

د قرآن کریم هغه تفسیر چې د مأثور او معقول ټولګه اوله خورا معتبرو تفسیرونو څخه لکه:
طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثیر، بحر محیط او نورو څخه يې غور چاڼ شوي او په
روانو اونويو اسلوبو چې بیان اولغوي ارخونو ته پکښې پاملرنه شوي ليکل شوي دي۔


مؤلف

**محمد علي الصابوني**

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ


ژباړونکي:

**مولوي شمس الله کمال زاده**


مكتبة المعروفية

(کوئټه) کاسي روډ شالدره کوئټه پاکستان

(لاهور) بادیه حلیمه سنټر غزني سټریټ اردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia


Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

دچاپ ټول حقوق له مکتبه معروفیه سره محفوظ دي

# دکتاب پیژندنه

دکتاب نوم: ---------------- پښتو صفوه التفاسیر

تالیف: ---------- الشیخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه: ---------------- مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري: ------------ مرحوم انجنیر عبدالله گل (ریان)
اوزیاته برخه مولوي عبد البصیر

خپرونکي اداره: ---------------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمیر: ---------------- ۸۰۰ ټوکه

دچاپ کال: ---------- ۱۴۴۰ هجري قمري دمحرم الحرام میاشت

دکتاب ترلاسه کولو پته ---------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

عنبر الأنوار اسٹیشنرز

المکتبة المعروفیة
(کوئټه) کاسی روډ شالدره کوئټه پاکستان
(لاهور) بادیه حلیمه سنټر غزنی سټریټ اُردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

الله تعالی فرمايي:

﴿ لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلَّا مَن ظُلِمَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ سَمِيعًا عَلِيمًا ﴿١٤٨﴾ إِن تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا عَن سُوءٍ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا ﴿١٤٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١٥٠﴾ أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٥١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُولَٰئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٥٢﴾ يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَن تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتَابًا مِّنَ السَّمَاءِ ۚ فَقَدْ سَأَلُوا مُوسَىٰ أَكْبَرَ مِن ذَٰلِكَ فَقَالُوا أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ فَعَفَوْنَا عَن ذَٰلِكَ ۚ وَآتَيْنَا مُوسَىٰ سُلْطَانًا مُّبِينًا ﴿١٥٣﴾ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ بِمِيثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿١٥٤﴾ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِم بِآيَاتِ اللَّهِ وَقَتْلِهِمُ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٥٥﴾ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ﴿١٥٦﴾ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴿١٥٧﴾ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٥٨﴾ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴿١٥٩﴾ فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا ﴿١٦٠﴾ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦١﴾ لَّٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ۚ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ ۚ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٦٢﴾ ﴾ النساء: ١٤٨ - ١٦٢

## مناسبت اوتړاو:

څرنګه چي الله تعالی په تېروآيتونوکښي دمنافقينويادونه وکړه اودهغوئ رسوايي يې څرګنده کړه دلته يې وفرمايل چي ديوچادبدي اوفضيحتونولوڅول ضرورنه دی مګرچي ضرريې زيات اوخطريې ډيروي نودتعجب ځای نه دی چي الله دمنافقينوڅخه پرده پورته کړي وروسته بيا له يهودوڅخه خبر ورکوي اوددوئ جرائم په ګوته کوي لکه چي ويل يې مونږته الله راووينه ، دخوسی عبادت کول ، اوداسی ادعا کول چي حضرت مسيح موپه داروځړاووادچي حضرت مريم البتول يې دزناپه تورتورنوله اوداسی نورډير ګناهونه يې.

Bawar.net



لغتونه:

(جهرة) ښکاره (بهتاناً) هغه غټ دروغ چي په چاپسی وتړل شی اوهغه هک حیران شي. (شبه) هغه مشابهت چي دمصلوب مقتول اوعیسی ﷺ ترمینځ موجود شو (اعتدنا) موږ تیار کړي (الراسخون) پاخه اوتکړه عالمان اوپوهان.

دنزول سبب:

روایت کیږي چي کعب بن اشرف اویوه ډله یهودانوووېل ای محمده! که ته په رښتیاپیغمبر یې نومونږته له آسمانه هسی یوځای کوم کتاب راوړه لکه چي موسی تورات راوړي وونوالله وفرمایل: (یسالک اهل الکتاب ان تنزل علیهم کتابا من السماء)[1] دآیت ترپایه.

تفسیر:

﴿لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلَّا مَن ظُلِمَ﴾ (نه خوښوی الله ښکاره ویل دبدی خبری مگر(ښکاره ویل) دهغه چاچي ظلم پری شوی وی) یعنی الله تعالی ناکاره خبري په ژبه ضرررسول نه خوښوي مگرچي یوڅوک مظلوم وي هغه ته رواده چي دظالم لپاره ښیراوکړي اوهغه بدی یې په ډاگه کړي چي پکښي شته ابن عباس ﷺ وایې معناداچي: هیڅوک دې بل چاته ښیرانه کوي مگرچي مظلوم وي(٢) ﴿وَكَانَ اللَّهُ سَمِيعًا عَلِيمًا﴾ (اودی الله ښه اوریدونکي ښه عالم یعنی دمظلوم دعااوري اوظالم وینی پري خبردي ﴿إِن تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا عَن سُوءٍ﴾ که ښکاره کوئ تاسی خیریاپټوئ دغه (خیر) یاعفوه کوئ له بدی! (چي ظلم دی) ﴿فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا﴾ نوبیشکه الله همدي ښه عفوه کونکي ښه قادر(په نیولواومؤاخذه) دي حسن رح وایې الله جنایتکارانو ته عفوه کوي سره له دی چي په کسات اخیستلواوانتقام یې قدرت لري نوتاسی دالله دتکلاری لارویان شئ اودالله دسنت متابعت وکړئ(٣) الله پاک دعفوی لپاره دخلگوهڅونه وکړه اودی ته یې اشاره وفرمایله چي الله سره له قدرته عفوه کوي اوتاسوچي کمزوری اوضعیفان یاست ولی به یې نه کوئ؟ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ (بیشکه هغه کسان چي کافران کیږي پرالله اوپررسولانودالله) آیت شریف دیهودانواونصاراووپه هکله دی ځکه دوئ پخپلوانبیااوو ایمان راوړي اوپه نوروا وپه محمد ﷺ باندی کافران شوي وودوئ کفرچي په ځینوانبیاوویې وولکه چي په ټولوانبیااوکافران وی داسی وانگیرل شواوپه رسولانوکفرپه الله باندی کفردی ﴿وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ (اراده لری (غواړي) دوئ چي بیلتون وکړي په مینځ دالله اودرسولانودالله کښي) دبیلتون معناداچي په الله ایمان راوړي اوپه رسولانو یې کافران کیږي اوبیلتون درسولانوترمینځ پدې چي په ځینوایمان راوړي په ځینوکافران کیږي اوالله دغه بیلتون داسی تفسیرکوي: ﴿وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ﴾ اووایې دوئ چي مونږایمان راوړوپه

(١) مجمع البیان ٣/ ١٣٣ (٢) مختصرابن کثیر ١/ ٤٥٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ځينواوكافران كيږوپه ځينو(نورو رسو لانو) قتادة ﷺ وايې چي دغه دالله دښمنان يهوداونصارادي يهودانوپه تورات اوموسى ﷺ ايمان راووړخوپه انجيل اوعيسى ﷺ كافران شول اوهمدارازنصارى په قرآن اومحمد ﷺ كافران اوپه عيسى اوانجيل يې ايمان درلوددالله دين اسلام يې پريښنودهغه چي الله ورباندى پيغمبران رااستولى دى.[1] ﴿ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُواْ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴾ اوغواړي دوئ چي ونيسى په مينځ ددي كفراواسلام ) كښي يوه لاره ( ميانه ) خوترمينځ دكفراواسلام كومه واسطه نشته ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ حَقًّاۚ ﴾ ( هم دوئ كافران دى په حقه سره ) يعنى ددغسى صفاتودرلودونكي كافران دى كه څه هم دايمان دعوى كوي ﴿ وَأَعۡتَدۡنَا لِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴾ اوتياركړى دى مونږلپاره دكافرانوعذاب ډيرسپک كونكي (سره له شدت اوخلوده په جهنم كښي ) ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ وَلَمۡ يُفَرِّقُواْ بَيۡنَ أَحَدٖ مِّنۡهُمۡ ﴾ (هغه كسان چي ايمان يې راوړي دى پرالله اوپر(ټولو ) رسولانودالله اوندى كړى دوئ بيلتون په مينځ دهيڅ يوه كښي له دوئ نه (په نه منلو سره ) هغوئ چي دمحمد ﷺ اتباع اوامتيان دى په ټولوانبياوويې ايمان راوړي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ سَوۡفَ يُؤۡتِيهِمۡ أُجُورَهُمۡۚ ﴾ (دغه كسان ژربه وركړي الله دوئ ته ثوابونه ددوئ ) په دغه كامل ايمان چي په الله اورسولانويې لرى ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾ اودى الله ښه مغفرت كونكي دګناهونوډيررحم والادى ( داجراوثواب په انعام سره ) ﴿ يَسۡـَٔلُكَ أَهۡلُ ٱلۡكِتَٰبِ أَن تُنَزِّلَ عَلَيۡهِمۡ كِتَٰبٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِۚ ﴾ پوښتنه كوي له تانه ( اى محمده !) اهل كتاب (يهودان) ددې چي نازل كړي ته پردوئ (لكه تورات يوليكلى ) كتاب له آسمانه دغه آيت ديهودانود علماووپه باب كښي نازل شوي كله چي يې رسول الله ﷺ ته وويل: كه چيرى ته په رښتيا پيغمبريې نودموسى ﷺ په شان يوكتاب په يوځل يوځاى له آسمانه راوړه دغه خبره يې دعنادپه توګه كوله نوالله تبارک وتعالى ددوئ تردغه پوښتنې سختې اوبيباكې پوښتنې يادې كړي چي درسول الله ﷺ ډاډينه اوتسلا وكړي اوپه نوروپيغمبرانوپسى يې اقتداء ته راوبولى ﴿ فَقَدۡ سَأَلُواْ مُوسَىٰٓ أَكۡبَرَ مِن ذَٰلِكَ فَقَالُوٓاْ أَرِنَا ٱللَّهَ جَهۡرَةٗ ﴾ نوپه تحقيق سوال كړي وودوئ (پلرونوددوئ ) له موسى ﷺ څخه ډيرلوي تردي پس ويلى وودوئ (موسى ) ته چي وښيه مونږته الله ښكاره ﴿ فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ بِظُلۡمِهِمۡۚ ﴾ نوونيول دوئ تندرپه سبب دظلم دوئ يعنى تكهورباندى راولويده اوګردسره يې وسوځول ﴿ ثُمَّ ٱتَّخَذُواْ ٱلۡعِجۡلَ مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُمُ ٱلۡبَيِّنَٰتُ ﴾ ( بياونيودوئ خوسى (په خدايې سره) پس له هغه چي راغلى دوئ ته ښكاره معجزې ) اودليلونه څرګندلكه يد بيضاء ځليدونكي لاس ، لكړه، دسيندلارې لارې كيدل اونور ابوالسعودوايې چي دغه دالله دښكاره ليدلوسوال كول كه څه هم ددوئ نيكه ګڼل كړي ووخو څرنګه چي دوئ دهغوئ په

(۱) الطبرى ۹ / ۳۵۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

تولوكړووړوكښي متابعت كاوودوئ ته يې نسبت وشو(۱) ﴿ فَعَفَوْنَا عَنْ ذَٰلِكَ ﴾ (پس عفوه وكړه مونږ
(تيرشو) له دي گناه (ددوئ په توبه كولوسره) له دي چي ستره گناه اوغټ خيانت دي ﴿ وَءَاتَيْنَا مُوسَىٰ
سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ﴾ اووركړي وه مونږ موسى عليه السلام ته غلبه صريحه (برهان ښكاره) چي دده دربښتنولي
اودنبوت تصديق يې څرگنداوو؛ طبرى وايې چي دغه حجت هغه معجزې وي چي الله ﷻ هغه ته وركړي
وى(۲) ﴿ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ بِمِيثَٰقِهِمْ ﴾ (اوپورته كړي وومونږ برسيره پردوئ (غرد) طوردپاره د(قبول
دكلكي) وعدي ددوئ) يعنى مونږددوئ پرسرغرددې لپاره اوچت كړي ووچي دوئ دتورات دموسوي
شريعت څخه امتناع كوله ترڅوويې مني اوداپه سبب دكلك عهدددوئ ووچي پخوايې دمنلوكړى وو
﴿ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا ﴾ اوويلي وومونږدوئ ته چي ننوځى په وره (دبيت المقدس) سجده
كونكي) يعنى ټيټ سرونه دالله لپاره خضوع كونكي خودوئ ددى امرمخالفت وكړاودشاله خوانتوتل
اوپه ملنډويې داسى ويل: (حنطة فى شعيرة) ﴿ وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ ﴾ ويلى وومونږدوئ ته چي
مه تېرېږئ (له حده) په (ورځې د) شنبې كښي) په ښكاركولودماهيانوكښي چي دوئ مخالفت
وكړاوښكار به يې كاوو ﴿ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَٰقًا غَلِيظًا ﴾ اواخيستى وه مونږله دوئ څخه وعده محكمه ﴿ فَبِمَا
نَقْضِهِم مِّيثَٰقَهُمْ ﴾ پس (په سزاورسول شول دوئ) په سبب دماتولوددوئ دكلك عهدخپل د(ما) توري
دمعنادتاكيدلپاره دى ﴿ وَكُفْرِهِم بِـَٔايَٰتِ اللَّهِ ﴾ (اوپه سبب دكفردنيكونو) ددوئ په آيتونودالله باندى
اوانكارله قرآن عظيم نه ﴿ وَقَتْلِهِمُ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ اوپه وژلوددوئ انبياوولره په ناحقه سره (لكه
زكرياويحيى عليهماالسلام) چي يې ووژل (وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ) اوپه ويلو ددوئ (داخبره نبى نه
دتمسخرپه ډول) چي زړونه موپه پردوكښي پټ دي ستاوينا (اى محمده) پري اثرنكوي الله ددوئ به
ردكښي فرمايې: ﴿ بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ بلكه مهر(دغفلت) وهلى دى الله په
زړونوددوئ په سبب دكفر(اوگمراهى) ددوئ پس ايمان نه راوړي مگرلږ(ددوئ) لكه عبدالله بن سلام
اودهغه ملگري كسان ﴿ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَٰنًا عَظِيمًا ﴾ اوپه سبب دكفرددوئ (په عيسى
عليه السلام) اوپه سبب دويلوددوئ په مريمې دروغ ډيرغټ (دزنا) هغه مريمه چي الله ورته دعالم په
ميرمنوبهتري وركړي ده ﴿ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ ﴾ اوپه (سبب د) ويلوددوئ
(داسى چي) بيشكه وژلى دى مونږ مسيح عيسى زوي دمريمې رسول دالله (په گومان خپل) يعنى دوئ
به ويل هغه چي گومان كوي دالله رسول دى مونږ وژلى دى دغه خبره به يې داستهزاء اوملنډوپه توگه
كوله لكه چي فرعون به ويل: (ان رسولكم الذي ارسل اليكم لمجنون) دوئ خوداسى ويل چي دى دزنازوى

---

[1] ابوالسعود ۱/ ۳۹۴

[2] الطبرى ۹ / ۳۶۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوموريې زانيه ده (العياذبالله ) ددې عقيده يې نه درلوده چي هغه پيغمبردى الله تعالى فرمايې ﴿ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ﴾ (حال داچي نه ووژلى دوئ دغه (عيسى واقعا ) نه يي پرداركړي وودغه (يقينا ) وليكن مشتبه كړي شو(دغه وژلى شوي په داركړي شوي په عيسى سره) دوئ ته ) بيضاوي وايې چي يوسړي چي دعيسى ﷺ په لټه كښي وتلى اومنافق ووالله ﷻ دحضرت عيسى څيره (شبه) په ده وغورځوله اوهغه دوئ ونيوپه داريې وځړاوواودايې ګومان ووچي همدغه عيسى ﷺ دى.[1]

[1] ﴿ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ﴾ اوبيشكه هغه كسان چي اختلاف كړي دى دوئ په (حق) دعيسى كښي خامخاپه شک كښي دى (په شان) دده كښي يعنى داچي آياموږ ووواژه كه نه ؟ روايت كيږي چي كله عيسى ﷺ آسمان ته وخيژول شواوخيره يې په بل وغورځيده اوهغه بيادوئ ووژل نودوئ ويل كه دغه وژل شوي عيسى وي نوزموږ ملګري څه شو؟ اوكه دغه سړي زموږ ملګري دى عيسى څه شو؟ نودوئ اختلاف وكړځينوويل چي همداعيسى ده ځينوويل داعيسى نه دى بل څوک دى نودوئ په دي كښي سره متفق ووچي يوڅوک ووژل شوخوپدې كښي يې اختلاف لاره چي څوک دى (٢) ﴿ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ﴾ نشته دوئ ته په (شان د ) ده كښي هيڅ علم مګرتش متابعت دګومان (خپل) ﴿وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ﴾ نه ووژلى دوئ عيسى يقينى بلكه پورته كړي والله دى طرف خپل ته ) اوددوئ له شرځخه يې ژغورلى وولكه چي په صحيحه احاديثوكښي راغلى دي (¨) ﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ اودي الله ښه قوي (په ملک خپل اوغالب ) ښه حكمت والا(په صنعت خپل كښي ) ﴿ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ﴾ اونشته هيڅوک له اهل كتابه مګرقسم دى هرومروچي ايمان به راوړي دوئ خامخاپردغه ( عيسى ) پخواله مرګه دده ) يعنى له يهودواونصاراووڅخه به هيڅوک هرومروپاتى نشي ترپخواله مرګه دهغه چي ايمان رانه وړي په عيسى ﷺ چي دغه دالله نبى اوبنده دى داهله چي دنزع په حالت كښي ملک الموت ووينى خودغه ايمان به ورته ګټه نه رسوى ابن عباس ﷺ وايې چي : هيڅ يهودى به ترهغوونه مري څوپه عيسى ﷺ ايما ن نه راوړي چاورته وويل آياكه كوم يهودي په توره ووژل شى دهغه هم داحكم دى ؟ ورته ويل يې ژبه به بې ورباندى ناڅرګنده ګرځيږي اوداسى له عكرمه اوابن سيرين څخه هم راغلى دى.[2] ﴿ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴾ اوپه ورځ دقيامت كښي به وي (عيسى ﷺ پردوئ باندى شاهدچي يهودانوونه منلم اونصرانيانو« ابن الله» وبللم

---

[1] البيضاوي ص ١٤١ منهامارواه الشيخان (والذي نفسي بيده ليوشكن ان ينزل فيكم ابن مريم حكماعدلافيكسر الصليب ويقتل الخنزير ويضع الجزية ) الحديث.
ولوله ! كتاب التصريح بماتواتر فى نزول المسيح للكشميري تحقيق الاستاذعبد الفتاح ابوغدة.

[2] طبرى داغوره ګڼلى چي ضميرپه (قبل موته) كښي عيسى ﷺ ته راجع ده چي معنايې داكيږي هيڅ يهودى به پاتى نشى چي دعيسى ترمرګ له مخه ورباندى ايمان نه راوړى كله چي قيامت ته نژدى به راځي اوهغه چي موږترجيح وركړي دابوالسعود، كشاف اوجلالين رايه ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ فَبِظُلۡمٍ مِّنَ ٱلَّذِينَ هَادُواْ حَرَّمۡنَا عَلَيۡهِمۡ طَيِّبَٰتٍ أُحِلَّتۡ لَهُمۡ ﴾ نو په سبب د ظلم د هغو کسانو چي يهودان دي حرام کړل مونږ پر دوئ باندی هغه ډير شيان چي حلال کړي شوي وو دوئ ته ) يعني د يهودانو د ظلم په سبب او په سبب د هغو لويو گناهونو چي کړي يې وو مونږ ورته د ول ډول پاک شيان چي پخوا ورته حلال وو حرام وگرزول ! ﴿ وَبِصَدِّهِمۡ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ كَثِيرًا ﴾ او په (سبب ) د منع کولو د دوئ له لاري د الله څخه ډير (خلگ) مجاهد وايي چي خپل ځانونه او نور کسان يې له ايمان راوړلو څخه منع کړي وو ﴿ وَأَخۡذِهِمُ ٱلرِّبَوٰاْ وَقَدۡ نُهُواْ عَنۡهُ ﴾ او په سبب د (اخستلو ) د دوئ سود (له خلگونه) حال دا چي په تحقيق منع کړی شوي وو دوئ (په تورات کښي ) له دغه (سوده ) ﴿ وَأَكۡلِهِمۡ أَمۡوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡبَٰطِلِ ﴾ او په سبب ) د خوړلو د دوئ مالونه د خلگو په ناحقه سره ( چي رشوت او نوري حرامي لاري دی ﴿ وَأَعۡتَدۡنَا لِلۡكَٰفِرِينَ مِنۡهُمۡ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ او تيار کړی دی مونږ لپاره د کافرانو له دوئ څخه عذاب ډير دردناک ﴿ لَّٰكِنِ ٱلرَّٰسِخُونَ فِي ٱلۡعِلۡمِ مِنۡهُمۡ ﴾ ليکن هغه (کسان ) چي پاخه دی په علم کښي له دوئ څنی ) لکه عبدالله بن سلام او ملگری يې ﴿ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ او ايمان لرونکي له مهاجرينو او انصارو څيني چي د رسول الله ﷺ اصحابان دی پرته له اهل کتابو ﴿ يُؤۡمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ ﴾ ايمان لری په هغه کتاب چي نازل کړی شوی دی تا ته او (ايمان لری) پر هغو کتابونو چي نازل کړی شوی دی پخوا له تا څخه او همدارازپه ټولو انبياوو ﴿ وَٱلۡمُقِيمِينَ ٱلصَّلَوٰةَۚ وَٱلۡمُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ ( او سم قائم کونکو د لمانځه او هغه کسان چي ورکونکي د زکات دی ) يعني صفت کوود ) سم قائم کونکو د لمانځه او هغه کسان چي ورکونکي دی زکات لره ﴿ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ او ايمان راوړونکي په الله او په ورځې آخرې (چي قيامت دی ) يعني د الله په وحدانيت او په پاځيدلو وروسته له مرگه ايمان لری ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ سَنُؤۡتِيهِمۡ أَجۡرًا عَظِيمًا ﴾ دغه کسان (چي صحيح ايمان او صالح عمل لرونکي دی ) ژر به ورکړو مونږ دوئ ته ثواب ډير لوي (چي تل ترتله جنت دی ) .

بلاغت :

پدی آيتونو کښي چي د فصاحت او بديع کومې بيلگې شته په لاندی ډول يې لنډيز ليکو:

۱- طباق صنعت لکه د (تبدوا ...او تخفوه) او (نؤمن ونکفر) په کلماتو کښي.

۲- تهکم او تعريض لکه په دې کلام کښي چي فرمايي : (قتلنا المسيح عيسى بن مريم رسول الله) دوئ دغه خبره د ملنډو او استهزاء په ډول کوله ځکه دوي د هغه په رسالت ايمان نه درلود .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۳ - د(ما)حرف (توري) زياتوالی دمعنی دتاکيدلپاره لکه چي فرمايي: **(فبما نقضهم)** چي په اصل کښي **(فبنقضهم)** دی.

۴ - استعاره پدي کلام کښي چي: **(الراسخون في العلم)** درسوخ کلمه يې دعلم دثبوت اوتمکن لپاره راوړه اوپدي کلام کي **(قلوبناغلف)** دغلاف کلمه يې دناپوهي او ناخبري لپاره استعاره کړی چي معنايې داسی کولی شی چي زړونوته يې پند اوموعظت نه ورننوزي.

۵ - اعتراض پدي کلام کښي چي: **(بل طبع الله عليها بكفرهم)** چي ددوئ په فاسدوګومانونويې ردکړي دی.

۶ - التفات پدي کلام کښي چي **(اولئک سنؤتيهم اجراً عظيما)** اصل خوداووچي **(سيؤتيهم)** راوړل شوی وای اوداخبرنکره ذکرکول ددي لپاره دی چي تفخيم يې وشي.

۷ - مرسل مجازپدي کلمه کښي چي: **(وقتلهم الانبياء)** چي ذکريې دکل کړي اومقصدځينی بعض دی همدارازپدی جمله کښي چي: **(كفرهم بايات الله)** ځکه دوئ خويوازی په قرآن کريم اوانجيل کافران وولـه دي ځخه پرته په نوروکافران نه وو.

## فوائداوګټي:

په تسهيل نومي کتاب کښي وايي: که چاپوښتنه کوله چي څرنګه دوئ وويل **(رسول الله)** حال داچي دوئ وربانديکافران اوورته ښکنځل يې کول ځواب يې په درې ډوله کيږي اول داچي دوئ دغه خبره داستهزاء په توګه کوله دوهم داچي دغه خبره يې دمسلمانانوله عقيدي سره سمه بلله لکه چي دوئ ويل رسول الله ستاسی په نزداوياستاسی په ګومان اودريم داچي داداالله ﷻ قول دی نوبايدتردي له مخه وقف وشي اوفائده بې ددوئ دګناه سترتوب په ډاګه کول دی اوددوئ ددغې خبرې چي مونږووژل بدي څرګندول دی اوداالله ﷻ داقول چي فرمايي: **(وماقتلوه وما صلبوه)** په يهودانوردکول اودهغوئ تکذيب بيانول دی اوهمدارنګه په نصاراووردکول دی چي دوئ وايي هغه په داروځړول شوآن تردې چي پدي سبب دصليب عبادت کوي اوترټولوزياته دتعجب خبره ددوئ دخبروتناقض دي چي وايي عيسی اله دی اوياهم زوي داله (العياذبالله) اوبياوايي چي هغه په داروځړول شو(۱) ؟ (!)

## تنبيه :

داالله ﷻ داقول چي: **(وما قتلوه وماصلبوه ولكن شبه لهم)** پدي دلالت کوی چي الله ﷻ عيسی عليه السلام ته ديليتويهودانوله شرڅخه نجات ورکړ اوهغه ونه وژل شواونه هم په دارشوبلکه بل څوک چي دوئ دعيسی ګومان وربانديکاووااوالله دعيسی (څيره) وربانديوغوړوله دوئ وواژه اوداهغه حقه عقيده ده چي دعقل اونقل سره سمه ده خونصاری بياباورلري چي هغه په دارشوی اويهودانوهغه ته سپکاوي

(۱) التسهيل لعلوم التنزيل ۱/ ۱۲۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړی په سرېږ خوځ ورابښي اوهغه الله ته ژړلی اوزاري يې کړی دی سره له دې چې دوئ ګومان کوی هغه (الله ) اويازوي د(الله ) دی هغه ددې لپاره راغلی چې بشريت ته نجات ورکړي اوداسی نورغريب اوعجيب ډېرتناقضات دی.

الله تعالى فرمايي:

﴿إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ كَمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ نُوحٖ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَٱلۡأَسۡبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيۡمَٰنَۚ وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ زَبُورٗا ﴿١٦٣﴾ وَرُسُلٗا قَدۡ قَصَصۡنَٰهُمۡ عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُ وَرُسُلٗا لَّمۡ نَقۡصُصۡهُمۡ عَلَيۡكَۚ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكۡلِيمٗا ﴿١٦٤﴾ رُّسُلٗا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى ٱللَّهِ حُجَّةُۢ بَعۡدَ ٱلرُّسُلِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمٗا ﴿١٦٥﴾ لَّٰكِنِ ٱللَّهُ يَشۡهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيۡكَۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلۡمِهِۦۖ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ يَشۡهَدُونَۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا ﴿١٦٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ قَدۡ ضَلُّواْ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ﴿١٦٧﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَظَلَمُواْ لَمۡ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغۡفِرَ لَهُمۡ وَلَا لِيَهۡدِيَهُمۡ طَرِيقًا ﴿١٦٨﴾ إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٗا ﴿١٦٩﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَكُمُ ٱلرَّسُولُ بِٱلۡحَقِّ مِن رَّبِّكُمۡ فَـَٔامِنُواْ خَيۡرٗا لَّكُمۡۚ وَإِن تَكۡفُرُواْ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمٗا ﴿١٧٠﴾ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَا تَغۡلُواْ فِي دِينِكُمۡ وَلَا تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ إِنَّمَا ٱلۡمَسِيحُ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلۡقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرۡيَمَ وَرُوحٞ مِّنۡهُۖ فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦۖ وَلَا تَقُولُواْ ثَلَٰثَةٌۚ ٱنتَهُواْ خَيۡرٗا لَّكُمۡۚ إِنَّمَا ٱللَّهُ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞۖ سُبۡحَٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ وَلَدٞۘ لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلٗا ﴿١٧١﴾ لَّن يَسۡتَنكِفَ ٱلۡمَسِيحُ أَن يَكُونَ عَبۡدٗا لِّلَّهِ وَلَا ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ٱلۡمُقَرَّبُونَۚ وَمَن يَسۡتَنكِفۡ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَيَسۡتَكۡبِرۡ فَسَيَحۡشُرُهُمۡ إِلَيۡهِ جَمِيعٗا ﴿١٧٢﴾ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُوَفِّيهِمۡ أُجُورَهُمۡ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضۡلِهِۦۖ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱسۡتَنكَفُواْ وَٱسۡتَكۡبَرُواْ فَيُعَذِّبُهُمۡ عَذَابًا أَلِيمٗا وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرٗا ﴿١٧٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَكُم بُرۡهَٰنٞ مِّن رَّبِّكُمۡ وَأَنزَلۡنَآ إِلَيۡكُمۡ نُورٗا مُّبِينٗا ﴿١٧٤﴾ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ وَٱعۡتَصَمُواْ بِهِۦ فَسَيُدۡخِلُهُمۡ فِي رَحۡمَةٖ مِّنۡهُ وَفَضۡلٖ وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَيۡهِ صِرَٰطٗا مُّسۡتَقِيمٗا ﴿١٧٥﴾ يَسۡتَفۡتُونَكَ قُلِ ٱللَّهُ يُفۡتِيكُمۡ فِي ٱلۡكَلَٰلَةِۚ إِنِ ٱمۡرُؤٌاْ هَلَكَ لَيۡسَ لَهُۥ وَلَدٞ وَلَهُۥٓ أُخۡتٞ فَلَهَا نِصۡفُ مَا تَرَكَۚ وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمۡ يَكُن لَّهَا وَلَدٞۚ فَإِن كَانَتَا ٱثۡنَتَيۡنِ فَلَهُمَا ٱلثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَۚ وَإِن كَانُوٓاْ إِخۡوَةٗ رِّجَالٗا وَنِسَآءٗ فَلِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ ٱلۡأُنثَيَيۡنِۗ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمۡ أَن تَضِلُّواْۗ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمُۢ ﴿١٧٦﴾﴾ النساء: ۱۶۳ – ۱۷۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالیٰ د يهودانو د جرائمو څخه حکايت وکړاو په ترڅ کښي يې د دوئ په عيسى او محمد صلى الله عليهما وسلم د کافر کيدلو يادونه وکړه او د هغوئ دا ګومان يې چي مسيح يې په دار وځړاوو په ډاګه کړنو د لته الله داسي فرمايي چي ايمان په ټولو پيغمبرانو د ايمان د صحت لپاره شرط دى او الله ټول پيغمبران مبشرين او منذرين را استولى دى وروسته بيا نصاراو وته بلنه ورکوي چي د مسيح ﷺ په شان کښي له اندازي زيات افراط ( غلو ) مکوئ چي وايا ست هغه د الله زوي ، يا د دريو دريم يې بولئ چي هغوي : الله ، مريم او عيسى دى نو هغه خونه د الله زوي دى لکه چي نصارا ادعا کوي او نه د زنا څخه پيدا شوى لکه چي يهودان ګومان کوي دواړه ډلې د افراط او تفريط په مينځ کښي ښکيل شوي دى وروسته سورت په هغه څه بشپړيږي چي پيل شوى وو او هغه د وارثانو قريبانو د حقوقو مراعات کول دى.

## لغتونه:

(تغلوا) له حدودو تجاوز کول و ته وايي اوله دى څخه (غلا السعر) يعني نرخونه (قيمتونه) خوراو ړشول اخيستل شوى دى (يستنکف) عار بلل ,نه منل او ځان لوړ ګڼل زجاج وايي لدې کلمې څخه اخيستل شوى چي (نکفت الدمع ) کله چي اوښکه په ګوته باندى له بار خوڅخه پاکه شي (برهان) دليل او دلته مقصد معجزې دى (اعتصموا) پناه وروړل او عصمت امتناع ته وايي : (الکلالة) هغه چي نه ولد او نه هم والد لري او پخواهم تېر شول.

## دنزول سبب :

دنصاراو ويوه ډله رسول الله ﷺ ته راغله ورته ويل يې : اى محمده ! ولى زمونږ د ملګرى عيب وايې ورته ويل يې ستاسو صاحب (ملګرى ) څوک دى ؟ هغوئ ويل عيسى بيا رسول الله ﷺ ورته وويل زه دهغه په هکله څه وايم ؟ دوئ ورته وويل چي ته يې د الله بنده او رسول بولى نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: چي داخو کوم عار او ننګ نه دى چي هغه د الله بنده وي دوئ وويل هو دا عار او ننګ دى ! نو الله ﷻ دا آيتونه نازل کړل چي (لن يستنکف المسيح ان يکون عبداً لله).

## تفسير:

﴿إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ كَمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ نُوحٖ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ﴾ بيشکه چي مونږ وحي موکړي ده تاته( اى محمده ) لکه چي موو حى کړى وه نوح ته او(نورو ) انبياوو ته پس له ده نه ) اوددې لپاره يې د محمد ﷺ نوم د مخه ياد کړکه څه هم په نبوت کښى وروسته راغلى چې د فضيلت څرګندونه يې وشى ﴿وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَٱلۡأَسۡبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيۡمَٰنَۚ﴾

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او (لکه چي ) وحی کړی وه مونږ ابراهیم ته او اسماعیل ته او اسحاق ته او یعقوب ته او اولادې د (یعقوب ) ته او عیسی ته او ایوب ته او یونس ته او هارون ته او سلیمان ته ) الله ﷻ دغه انبیاء علیهم السلام څکه په ځانګړي توګه یاد کړل چي د دوئ تشریف او تعظیم وشی او له محمد ﷺ څخه وروسته یې د نوح ﷺ یادونه پدې وکړه چي هغه ابو البشر ثانی او د انبیاوو شیخ وو بیایې ابراهیم ﷺ یاد کړ څکه هغه دریم پلار ده او له ده څخه د نبوت ونه زرغونه او ځانګې یې خورې شوي دی لکه چي الله تعالی فرمایې : (وجعلنا في ذريته النبوة والكتاب) او بیایې عیسی ﷺ ترهغو انبیاوو مخکښي ذکر کړ کوم چي ترهغه پخواوو ترڅو د هغه شان ته پاملرنه وشی چي یهودانو یې په هکله له حد څخه تجاوز کړي وو چي تورونه یې وربان دی لګول او نصاراوو یې په تقدیس کښي له حده تېري کړی وو ﴿ وَءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ زَبُورًا ﴾ ( او ورکړی وو مونږ داؤد ته زبور ) قرطبی وایې چي په زبور کښي یو سل او پنځوس سورتونه وو چي ګرد سره حکمتونه او پندونه وو یو دا حکامو آیت هم پکښي نه وو راغلی[1] ﴿ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَٰهُمْ عَلَيْكَ مِن قَبْلُ ﴾ ( او لیږلی وو مونږ نور داسی رسولان) چي په تحقیق سره قصه کړی ده مونږ د دوئ پر تا (ای محمده !) پخوا له دې نه ) په نورو سورتونو کښي ﴿ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ﴾ ( او لیږلی وو مونږ نور داسې رسولان) چي نه مو دي کیسې کړی پر تا (ای محمده !) ﴿ وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴾ ( او کلام کړی دی الله له موسی سره په ... کلام کولو ) او الله چي موسی ﷺ خاص ذکر کړ ددي لپاره چي بلاواسطه یې خبرې ورسره کړی دی څکه یې کلیم الله بولی او چي د (تکلیما) په توري یې تاکید و فرمایه ددې لپاره چي د مجاز احتمال له مینځه یوسی ثعلب وایې که تاکید نه وایې نو داسی به رواوو لکه چي : (كلمتُ لک فلانا) بمعنی (كتبت اليه رقعة ) یعنی ستا لپاره می له فلاني سړي سره خبرې وکړی یعنی ورته مي لیک و استاوو خو کله چي د لته الله ﷻ (تکلیما) راووړ نو یې وازی هغه دالله او ریدل شوی کلام ځینی مراد دی .

(۳) ﴿ رُّسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾ ( او لیږلی مو دی ) رسولان چي زیری کونکي دی (مؤمنانو ته په جنت ) او ویرونکي دی (د کفارو په جحیم ) څوک چي مطیع دی د جنت زیری ورکوي او څوک چي د عصیان خاوندان وي په دوزخ یې ویروي ﴿ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ الرُّسُلِ ﴾ ( لپاره ددې چي پاتی نشي خلګو ته پر الله باندی هیڅ حجت (دلیل ) عذر، پلمه) وروسته له (لیږلو) د رسولانو ) یعنی الله دا پیغمبران ددې لپاره رااستولی که چیرې داسې نه وای نو به خلګو ویل که مونږ ته یې پیغمبران رالیږلی وای نو به مو ایمان راوړی وو او نیک عملونه به مو کول نو الله دغه پلمه په دوئ ودروله چي رسولان یې رااستول او کتابونه یې ورته نازل کړل ﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ او دی الله ښه غالب قوی (پخپل ملک کښي ) ښه حکمت والادی (پخپله صنع کښي ) وروسته الله په هغو یهودانو رد کوي کوم چي د محمد ﷺ له نبوت څخه منکر وو فرمایې : ﴿ لَّٰكِنِ اللَّهُ يَشْهَدُ بِمَا أَنزَلَ إِلَيْكَ أَنزَلَهُۥ بِعِلْمِهِۦ وَالْمَلَٰٓئِكَةُ يَشْهَدُونَ ﴾ لکن الله شاهدي لولی په هغه شی چي نازل کړی یې دی تا ته (ای محمده ) نازل کړی یې دی دا (معجز قرآن)

---

(۱) اسباب النزول للواحدي ص ۱۰۷ (۲) القرطبی ۲. (۳) البحر ۳ / ۳۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



په علم خپل سره اوملائکې هم شاهدې لولی (په نبوت ستا ) یعنی که دوئ ستا له نبوت ته انکار کوی خو الله ستا شاهدې وایې چې داسی معجز قرآن یی پرتانازل کړی او پخپل علم سره یې نازل کړی څه ځانګړی علم او پوهه چې دبل چاسره نشته اوداسی معجز آسا اسلوب یې قرآن ته ورکړی چې هر دبلاغت خاوندتري عاجزدی همدارازپرښتې ستاپه نبوت شاهدې لولی ﴿وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا﴾ اوبس دی الله دحق ظاهر کونکي ) نو چې الله ستا شاهدوي ددوئ شاهدې ته حاجت نشته ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ قَدْ ضَلُّواْ ضَلَـٰلَۢا بَعِيدًا﴾ بیشکه هغه کسان چې کافران شوی دی ( دمحمد له نبوت څخه ) اواړولی منع کړی یې دی (خلګ) له لارې دالله (اسلام) څخه په تحقیق سره ګمراه شوي دی په ګمراهې ډیرې لیرې سره (دحق له لارې نه ) یعنی هغوئ چې هم پخپله کافران دی اوهم یې نورخلګ دااسلام له منلوڅخه راګرزولی دوئ هسی ګمراهان دی چې دحق له لیارې خورالېرى دى ځکه دوئ ته دضلال او اضلال دواړوبد مرغي ورپه برخه ده ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَظَلَمُواْ﴾ ( بیشکه هغه کسان چې کافران شوی دی ( دمحمدله نبوت څخه ) اوظلم یې کړی دی ) زمخشری وایې : هغه کسان چې دوئ کفراوګناهونه سره یوځای کړی دی [1] ﴿لَمْ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا﴾ ندی الله چې مغفرت وکړی دوئ ته اونه چې وښیې دوئ ته سمه صافه لاره (دجنت ) ځکه دوئ په کفرمړه شوی دی ﴿إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَـٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا﴾ (مګروبه ښیې دوئ ته ) لاره دجهنم چې همیشه به وی دوئ په هغه کښې تل ترتله په سبب دهغه څه چې دوئ کفراوظلم کړی وو ﴿وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا﴾ اودی دغه (ادخال اوخلود فی النار) په الله باندی ډیر آسان ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلرَّسُولُ بِٱلْحَقِّ مِن رَّبِّكُمْ﴾ ای خلګوپه تحقیق راغلی دی تاسې ته رسول (محمد ) په حق (دین اوشریعت ) له (طرفه د ) ربه ستاسی ﴿فَـَٔامِنُواْ خَيْرًا لَّكُمْ﴾ نوایمان راوړی ( اوقصدوکړئ دهغه څه چې ) خیردی تاسی ته ) یعنی دهغه کتاب چې تاسی ته راغلی تصدیق وکړئ اودغه ایمان ستاسولپاره خیردی ﴿وَإِن تَكْفُرُواْ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ ( اوکه کافران شوی یئ تاسې پس بیشکه خاص الله لره دی هغه شیان چې په آسمانونو کښې (اوهغه شیان چې په ) ځمکه کښې دی (خلقاملکا وعبیدا ) یعنی که تاسوپه کفرکښې پاتی شئ (الله ته زیان نه رسوئ ځکه الله لره دکائناتو(آسمانواوځمکو) هستی اوشته ټول ملګاًاوخلقاًاوعبیداًدی ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ اودی الله ښه عالم (دبندګانوپه حالاتو) ښه حکمت والا (چې هرکارله مصلحت اوتدبیرسره کوي ) څرنګه چې الله ﷻ په یهودانوردوکړاوس یې دنصاراووپه ګمراهیو اوافراط باندی هغه چې دحضرت مسیح یې له الله څخه پرته عبادت کاووردپیل کړاووېې ویل: ﴿يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَا تَغْلُواْ فِى دِينِكُمْ﴾ ای أهل کتابو( مه کوئ مبالغه (تجاوزله حدودو ) په

---

[1] (۱) اوطبری وایې دظلم معنادا چې درسول الله له رسالته یې انکارکړی نوپه الله کافران شوی اوپدی کفردریدل یې ظلم دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دين ستاسي كښي (چي مسيح ته خداى واياست) ﴿وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ﴾ اومه واياست پر الله مگر حق (ويل) د رښتيا يعنى چي الله ته داسي څه نسبت مکوئ چي ورسره نه ښايي چي هغه حلول، اتحاد او د ميرمني غوره کول او زوي نسبت کول دي ﴿إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ﴾ بيشکه همدا خبره ده بله نه ده چي مسيح عيسى زوي د مريمې رسول د الله دى) د الله زوي نه دى لکه چي تاسي انګيرئ ﴿وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ﴾ او (داسي) کلمه دده ده چي غورځولى ده (الله) دغه کلمه مريمې ته) يعنى الله تعالى هغه د (کن) په کلمه سره پرته د پلار او نطفې له واسطې څخه پيدا کړى دى ﴿وَرُوحٌ مِنْهُ﴾ او روح دى له جانبه د الله يعنى هسى د روح څښتن دى چي د الله له لورى پيل شوي او دهغې نفخې (پوکى) اغيزدى چي حضرت جبريل ﷺ د حضرت مريمې رضى الله عنها په ګريوان کښي پوکلى او چي الله ته يې نسبت وشو د تعظيم او تکريم له سببه دى ﴿فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ (نو ايمان راوړئ په الله او په رسولانو دده) ﴿وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ﴾ اومه وايئ تاسې داسې چي (معبودان) درې دى يعنى الله او مسيح او مريمې ته د معبود نسبت مکوئ مه داسي واياست چي خدايان درې دى پلار زوي او روح القدس الله دوئ له تثليث څخه منع کړل او په توحيديې ورته امر وکړ ځکه الله له ترکيب او هغه ته د مرکب له نسبت څخه منزه او پاک دى ﴿انْتَهُوا خَيْرًا لَكُمْ﴾ (منع شئ تاسى (له دې وينا او اختيار کړئ توحيد چي) خيردى تاسى ته) يعنى تاسى د تثليث له عقيدې خوله ونيسئ د استاسو لپاره خيردي ﴿إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ (بيشکه همدا خبره ده چي الله حق معبود يو دى) هسى نه لکه چي تاسو زعم کوئ چي هغه دد ريو دريم دى ﴿سُبْحَانَهُ أَنْ يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ﴾ پاکى ده ده لره له دى چي شى ده ته (نسبت د) ولد) ﴿لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ خاص ده لره دى هر هغه څه چي په آسمانونو کښي دى او هر هغه څه چي په مځکې کښي دى خلقاً ملکاً او عبيداً) او له الله سره هيڅ شي مماثل نه دى چي په زوي توب يې غوره کړي ﴿وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾ او بس دى الله وکيل (کارجوړونکي) دادد دې تنبيه ده چي الله له زوي څخه غنى دى يعنى الله يوازي دد بس دى چي د خپلو مخلوقاتو تدبير ساتنه او کارسازي وکړي د هغه زوي او مرستندوئ ته اړتيا نشته ځکه هغه د هرشى مالک دى او وروسته بيا الله د نصارا او و باطل مزاعم او ګومانونه داسى ترديدوي: ﴿لَنْ يَسْتَنْكِفَ الْمَسِيحُ أَنْ يَكُونَ عَبْدًا لِلَّهِ﴾) له سره ننګ (او عار) نکوي مسيح له دى نه چي شي بنده د پاره د الله ﴿وَلَا الْمَلَائِكَةُ الْمُقَرَّبُونَ﴾ او نه (ننګ او عار کوي) پرښتې چي مقربې دى (د الله له بندګي نه) ﴿وَمَنْ يَسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا﴾) او هر هغه چي ننګ وکړى له عبادته د دغه (الله) څخه او تکبر وکړي نو ژر به راجمع کړي (الله) دوئ طرف ته خپل ټول (د قيامت په ورځ د حساب

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوجزاء لپاره ) ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ ﴾ ( پس هغه کسان چي ایمان يې راوړي دی اوکړی يې دی ښه (عملونه ) پس پوره به ورکړي (الله) دوئ ته اجرونه ددوئ (دښوعملونو ) ﴿ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضْلِهِۦ ﴾ اوزيات به (هم ) ورکړي دوئ ته له مهرباني خپلې چي نه به سترګو ليدلی نه غوږونو اوريدلی اونه به دچا په خاطرکښې ورتېرشوي وی ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱسْتَنكَفُوا۟ وَٱسْتَكْبَرُوا۟ فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ اوهغه کسان چي ننګ (اوعار) يې کړي وی اولويې تکبريې کړی وی (دالله له عبادت څخه ) نوعذاب به ورکړی دوئ ته (الله) عذاب دردناک ﴿ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ اونه به مومي دوئ ځان ته بی له الله هيڅ دوست اونه هيڅ مرستندوی ( چي دالله له عذابه يې وژغوري ) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُم بُرْهَٰنٌ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ ای خلګوپه تحقيق راغلی دی تاسی ته برهان (حجت) (له طرفه د ) رب ستاسی (چي محمددی ) اوپه څرګندومعجزاتويې تائيدشوی دی ﴿ وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا ﴾ اونازل کړی دی مونږتاسی ته نور(رڼا ) ښکاره ( چي قرآن دی ) ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَٱعْتَصَمُوا۟ بِهِۦ ﴾ پس هغه کسان چي ايمان يې راوړي دی په الله اومنګولی يې ښخې کړی دی (په دين د ) ده ﴿ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِى رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ﴾ نوژربه داخل کړي (الله) دوئ په رحمت کښې چي له جانبه دده دی اوپه مهرباني کښې ) يعنی په جنت دارالخلود کښې به يې داخل کړي ﴿ وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ اوهدايت به وکړی (وبه ښيې الله) دوئ ته خپل لوری ته لاره سمه صافه (داسلام په دنياکښې اودجنت په آخرت کښې ) ﴿ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ ٱللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِى ٱلْكَلَٰلَةِ ﴾ طلب دفتواکوی دوئ له تانه ( ای محمده دکلالې ) نووايه چي الله تعالی فتوی درکوی تاسی ته (په ميراث د ) کلالې کښې ، هغه مړي چي نه پلارلری اونه هم ميراث خور زوي ﴿ إِنِ ٱمْرُؤٌا۟ هَلَكَ لَيْسَ لَهُۥ وَلَدٌ ﴾ ( که يوسړي مړشی چي نه وی ده لره زوي ) يعنی ورته ووايه څوک چي مړشی اونه پلارلری نه زوي چي هغه (کلاله) ده ﴿ وَلَهُۥٓ أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ﴾ يوه خورده لره دی ( عينيه يآعلاتيه ) نو(مقرر) دی دې ته (نيم) دهغه مال چي پری ايښي وي (مړي ) ﴿ وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمْ يَكُن لَّهَا وَلَدٌ ﴾ ) اوداورورميراث وړی له دې خورڅخه که نه وی دې لره زوي (اوخوځات ) ﴿ فَإِن كَانَتَا ٱثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا ٱلثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ ﴾ نوکه وی داخويندی دوه (يازياتې ) نومقرردی دې دواړوته دوه ثلثان له هغه ماله چي پری ايښي دی (مړي ) (ددوئ ورور) ﴿ وَإِن كَانُوٓا۟ إِخْوَةً رِّجَالًا وَنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ ٱلْأُنثَيَيْنِ ﴾ (اوکه ووارثان ) ورونه اوخويندې نارينه اوښځې پس (مقرردی ) هرنارينه ته په اندازه دبرخې ددوښځو ) ﴿ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَن تَضِلُّواْ ﴾ ( بيانوي الله تاسی ته (احکام دمیراث ) چي گمراه (خطا )نشي تاسی ) يعنى الله تاسی ته احکام اوشرائع بيانوي چي خطانشئ ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمُۢ ﴾ اوالله په هرشی ښه عالم دی (ستاسو دژوندا ومرگ مصالح اومنافع ښه ورته معلوم دی.

## بلاغت :

پدې آيتونو کښې چي دبلاغت اوبديع کومی ښکلاوي شته داسی يې انځوروو:

۱- تخصيص دځينی انبياوو په يادولو سره پدی آيت کښي چي: (كما اوحينا الى نوح) دتشريف اوفضل دځرگندولو لپاره دی اوهمدارازدلته هغه تشبيه هم شته چي (مرسله مفصله) يې بولی.

۲- پدې قول کښي چي (يا اهل الكتاب) لفظ دعموم لپاره چي مرادځينی خاص دی چي هغوئ (نصارا ) وواودې دليل هغه وروستنی قول دی چي فرمايې (ولا تقولوا ثلاثة) ځکه دغه دنصاراوو قول دی.

۳- داقول چي (انما المسيح عيسى ابن مريم رسول الله) پدې کښي قصردی اودا دقصرهغه ډول دی چي قصردموصوف په صفت پوری وی.

۴- اشتقاقی جناس په (يشهدون...شهيدا) کښي.

## فوائداوګټي.

د(من ) لفظ دتبعيض لپاره وی خوکله کله دغايې دابتداء لپاره هم راځي لکه پدی قول دالله کښي (و روح منه) حکايت کيږي چي دهارون رشيد يونصرانی طبيب له امام واقدی سره يووخت مناظره کوله چي ستاسو په کتاب کښي راغلی چي عيسی دالله ځخه جزء دی اودغه آيت يې ولوست (وروح منه) واقدی ورته وويل چي الله ﷻ فرمايې: (وسخرلكم ما في السموت ومافي الارض جميعاً منه) نوکه چيری عيسی له الله ځخه جزء وی نوبه ټول آسمانی اوځمکنی شيان له الله ﷻ ځخه جزء وی نصرانی چپ شواوبيامسلمان شواورشيد پدی خوراخوښ شوواقدی ته يې ستر انعام اوجائزه ورکړه.[1]

دالله په مرسته دسورة النسآء تفسيربشپړشو.

***

[1] - تفسيرابو السعود ۱/ ۴۰۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## دالمائده سورة مدني اويوسل اوشل آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

* دالمائده سورت دمدنې اوږدوسورتونوڅخه يودى اولكه نورمدنى سورتونه تشريعي اړخ په تفصيل سره دالبقره ، النساء اوانفال سورتونو په شان څيړى اوله دې سره سره دعقيدې موضوع اوداهل كتابوكيسې بيانوي، ابوميسره وايې چي المائده سورت دقرآنكريم له هغوورووستنيونازل شوو سورتونوڅخه دى چي پكښي منسوخ نشته اوسل فريضه شيان پكښي دى (۱)

* دغه سورت هغه وخت نازل شوچي رسول الله ﷺ له حديبې څخه راستنيدلو په مجموع كښي دغه سورت شرعي احكام راوړى چي اسلامي دولت دغوړيدلو په پيل كښي ورته اوالهي منهج ته خورا اړتياوه چي دجوړښت اواستقرارلارا وليكه ورته وټاكي اوله ښوئيدلوبې وژغوري.

* هغه احكام چي دغه سورت يې رااخلي لنډيزيې داسى دى: دعقودواحكام ،ذبائح ، ښكار، احرام ،داهل كتابونكاح كول ، ارتداد ، دطهارت حكمونه ، دبغاوت اوپه ځمكه كښي فساد ټولوحكم ، دشرابواوقمار، دقسم كفاره ، په احرام كښى ښكاركول دځنكندن په وخت كښي وصيت كول ، دبحيره او سائبه حكمونه اوپه هغه ځاچي دالله په شريعت عمل نه كوي حكم كول اوداسى نور ډيرحكمونه راځي

* دشرعي احكاموسره په مقابله اوجنگ كښي الله تعالى پدې سورت كښي مونږته دپنداو عبرت لپاره ځينى كيسې بيانوي لكه چي دبنى اسرائيلوكيسه له موسى ﷺ سره داهغه كيسه ده چي دتمرد ، طغيان اوسرغړونې نښې پكښې دى اودا ديوموټې سركښويهودانودعصيان بيلگه ده چي خپل پيغمبرته يې ويل: ﴿ فَٱذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَـٰتِلَآ إِنَّا هَـٰهُنَا قَـٰعِدُونَ ﴾ [المائده ۲۴] اوهغه څه پكښي راځي چي ددوئ لالهانده ژوندچي څلويښت كاله د(تيه) په صحرا كښي گرځيدل انځوروي.

* وروسته بياد آدم ﷺ ددووزامنوكيسه راوړي چي دخيراوشردوومختلفو قوتونوجگړه ده كومه چي د(قابيل )او (هابيل ) ترمينځ وه اودادبشريت هغه ترټولو رومبي ناكاره عمل اوگناه ده چي دمځكې په مخ ترسره كيږي اوديوبې گناه انسان وينې په ناحقه توئيږي په كيسه كښي دوه نمونې چي يوه دگنهكاراوشرخوښونكي نفس نمونه اوبله بياد سپيڅلى اوغوره نفس بيلگه ده راځى: ﴿ فَطَوَّعَتْ لَهُۥ نَفْسُهُۥ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُۥ فَأَصْبَحَ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴾ [المائده: ۳۰] لكه چي سورت دمائدې كيسه بيانوي هغه چي دعيسى ابن مريم معجزه اودحواريينوپه وړاندي ښرگنده شوه همداسي سورت ديهودواونصاراووپه باطلوعقائدوكښي شخړوته اشاره كوي چي دوئ الله ته دهغه څه چي ورسره نه ښايې نسبت كول لكه دذوذات اوزامنونسبت ، دوئ عهدونه وعدې ماتولې تورات اوانجيل يې تحريفول دمحمد ﷺ په رسالت كافران كيدل اونورداسي ډيري گمراهى. اوباطل عقائديې درلودل په پاى كښي سورت دقيامت دورځي يوداسي ويرونكى درېز بيانوي كله چي حضرت مسيح عيسى ابن مريم راوبلل شي اودټولو خلگوپه وړاندي دنصاراوودرسوايې اوتبكيت لپاره ځينى وپوښتل شي چي:

---

(۱)- القرطبي ۲/ ۳۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِى وَأُمِّىَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ۖ قَالَ سُبْحَٰنَكَ مَا يَكُونُ لِىٓ أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِى بِحَقٍّ ﴾ المائدة: ١١٦

يا الله ! ستا د دښمنانو لپاره څومره شرمونکي او رسواکونکي شيبه چي له يادولو څخه يې تور ويښتان سپينيږي او زړونه ريږدي !!

## د سورت بهتري:

عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ وايي چي: په رسول الله ﷺ سورة المائده هغه وخت نازل شو چي رسول الله سپور و سورلى (مركب) يې توان او تحمل ونه لرل او رسول الله ﷺ تري راښكته شو. (١)

## تسميه او نومول يې:

سورت المائده يې ځكه بولى چي د مائدې كيسه پكښي راغلي ده كله چي حواريونو له عيسى ﷺ څخه وغوښتل داسي معجزه څرګنده كړي چي دده د نبوت په رښتنولي دلالت وكړي او دوئ لپاره اختروى او په كيسه كى چي څه ذكر شوي ترد ي پسي لاعجيبه دى ځكه په ډيرو معجزاتو او د الله ﷺ په ستر لطف باندي مشتمله ده.

الله تعالى فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَوْفُوا۟ بِٱلْعُقُودِ ۚ أُحِلَّتْ لَكُم بَهِيمَةُ ٱلْأَنْعَٰمِ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّى ٱلصَّيْدِ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ۝١ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحِلُّوا۟ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ وَلَا ٱلشَّهْرَ ٱلْحَرَامَ وَلَا ٱلْهَدْىَ وَلَا ٱلْقَلَٰٓئِدَ وَلَآ ءَآمِّينَ ٱلْبَيْتَ ٱلْحَرَامَ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّن رَّبِّهِمْ وَرِضْوَٰنًا ۚ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَٱصْطَادُوا۟ ۚ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ أَن صَدُّوكُمْ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ أَن تَعْتَدُوا۟ ۘ وَتَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ۝٢ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةُ وَٱلدَّمُ وَلَحْمُ ٱلْخِنزِيرِ وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ وَٱلْمُنْخَنِقَةُ وَٱلْمَوْقُوذَةُ وَٱلْمُتَرَدِّيَةُ وَٱلنَّطِيحَةُ وَمَآ أَكَلَ ٱلسَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ وَأَن تَسْتَقْسِمُوا۟ بِٱلْأَزْلَٰمِ ۚ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ۗ ٱلْيَوْمَ يَئِسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن دِينِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَٱخْشَوْنِ ۚ ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِى وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلْإِسْلَٰمَ دِينًا ۚ فَمَنِ ٱضْطُرَّ فِى مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ ۙ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝٣ يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ ۙ وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ ٱلْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ ٱللَّهُ ۖ فَكُلُوا۟ مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَٱذْكُرُوا۟ ٱسْمَ ٱللَّهِ عَلَيْهِ ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ۝٤ ٱلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ ۖ وَطَعَامُ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۖ وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ وَلَا مُتَّخِذِىٓ أَخْدَانٍ ۗ وَمَن يَكْفُرْ بِٱلْإِيمَٰنِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُۥ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ۝٥ يَٰٓأَيُّهَا

(١) أخرجه احمد (٢) البحر المحيط ٣ / ٤١٠ (٣) الطبري ٩ / ٤٢٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قُمۡتُمۡ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ فَٱغۡسِلُواْ وُجُوهَكُمۡ وَأَيۡدِيَكُمۡ إِلَى ٱلۡمَرَافِقِ وَٱمۡسَحُواْ بِرُءُوسِكُمۡ وَأَرۡجُلَكُمۡ إِلَى ٱلۡكَعۡبَيۡنِۚ وَإِن كُنتُمۡ جُنُبٗا فَٱطَّهَّرُواْۚ وَإِن كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوۡ جَآءَ أَحَدٞ مِّنكُم مِّنَ ٱلۡغَآئِطِ أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُواْ مَآءٗ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا فَٱمۡسَحُواْ بِوُجُوهِكُمۡ وَأَيۡدِيكُم مِّنۡهُۚ مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجۡعَلَ عَلَيۡكُم مِّنۡ حَرَجٖ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمۡ وَلِيُتِمَّ نِعۡمَتَهُۥ عَلَيۡكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ﴿٦﴾ وَٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَمِيثَٰقَهُ ٱلَّذِي وَاثَقَكُم بِهِۦٓ إِذۡ قُلۡتُمۡ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَاۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُونُواْ قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِٱلۡقِسۡطِۖ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعۡدِلُواْۚ ٱعۡدِلُواْ هُوَ أَقۡرَبُ لِلتَّقۡوَىٰۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ ﴿٨﴾ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٌ عَظِيمٞ ﴿٩﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَآ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَحِيمِ ﴿١٠﴾ ﴾ المائدة: ١ - ١٠

## لغتونه:

(العقود) دعقد جمع او هغه په اصل لغت کښي تړلو ته وايي لکه چي وايي (عقد الحبل بالحبل) يعنى يوه رسۍ يي په بله وتړله وروسته بيا دمعانيولپاره استعاره شوى ده زمخشري وايي عقد ټينګ عهد ته وايي چي درسۍ له ټينګښ تړلوسره تشبيه شوي ده (بهيمة الانعام) بهيمه هغه حيوان ته وايي چي خبرې نکوي انعام د(نعم) جمع او څلوربول ته وايي لکه اوښان ، غوايي اوپسونه (القلائد) دقلادة جمع او هغه دونې پټ يا بل هغه څه ته وايي چي دحرم هديې ته وريغاړه کيږي څو خلک يې وپيژني چي دادحرم ده ﴿يجرمنکم﴾ باعث دي نه کړي تاسو کسب دې نه کړي تاسولره ويل کيږي (جرم ذنبا ) يعنى کسب يې کړه ګناه (شنئان) بغض اوکينې ته وايي (الموقوذة) (وقذ ) ديوچادومره وهلوته وايي چي مرګ ته نژدې شى اوآرام ولويږي (النصب) بت اودبرې ته وايي چي په جاهليت کښي به يې دروله اوهلته به يې چارپايان حلالول جمع يې انصاب راځي اوداخبره په لسان العرب کښي هم راغلى ده (ازلام) د(زلم) جمع او(قداح) ته وايي (چي دغه غشي وي ) دوئ به کله چي سفرکاوو يابه غزا اوسوداګري ته تلل نوپه دغوغشوبه يې فال اچاوو. (مخمصة) لوږه څکه ګيډې دلوږې په وخت کښي ډنګرې شي او(خمص) دګيډو لويدلو او ډنګرتيا ته وايي (الجوارح) ښکاركونکي حيوانات يامرغان لکه سپى ، پړانګ بازاو شاهين.

## دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وايي چي مشرکانوبه دبيت الله حج کاووا وهدايابه يې وروستلې دشعائرو تعظيم به يې کاوو اوذبائح به يې وړاندى کول مسلمانانوا راده درلوده هغه تغيير کړى الله ﷻ داآيت نازل کړ:

﴿يا ايها الذي آمنوا لاتحلوا شعائرالله.. ﴾ [1]

---

[1] الطبري ٩-٤٦٣

Bawar.net



تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَوۡفُواْ بِٱلۡعُقُودِ ﴾ ( ای هغو كسانوچي ايمان يې راوړی دی ( ای مؤمنانو ) پوره کړئ تاسي ګردعهدونه ) خطاب دايمان په لفظ دتعظيم اوتكريم لپاره دی اوعقود داسی لفظ دی چي هرعهداوتړون ته شامل وي هغه که دانسان اودهغه دپروردګارترمينځ وی اوكه دانسان اوبل انسان ترمينځ وی ابن عباس ﷺ وايي عقودعهدونه دی اوهغه عهدونه حلال اوحرام دی کوم چي په قرآن كريم كښي الله له تكاليفواواحكاموبيان كړي دی(١) ﴿ أُحِلَّتۡ لَكُم بَهِيمَةُ ٱلۡأَنۡعَٰمِ ﴾ (حلال كړی شوی دی تاسي ته (پس له شرعي ذبحې بې ژبې ) چارپايان دانعامو ) لكه اوښان، غوايې اوپسونه ) ﴿ إِلَّا مَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡكُمۡ ﴾ مګرهغه (چي حرام شوي پدې سورت كښي ) او لوستل به شي په تاسي باندي (وروسته له دې نه) چي هغه مړژګه، وينه اودخنزيرغوښه اونور دی.... ﴿ غَيۡرَ مُحِلِّي ٱلصَّيۡدِ وَأَنتُمۡ حُرُمٌۗ ﴾ حال داچي نه يئ تاسي حلال ګڼونكي دښكارحال داچي تاسي احرام تړونكي يئ !، ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَحۡكُمُ مَا يُرِيدُ ﴾ ( بيشكه الله حكم كوي(په تحليل اوتحريم ) كښي دهرهغه څه چي اراده وفرمايې ) يعنی الله تعالی په خپل مخلوق كښي څرنګه چي غواړي هغسی فيصله كوي ځكه هغه په خپل امراونهی كښي دحكمت خاوند دی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُحِلُّواْ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ ﴾ ( ای هغو كسانوچي ايمان يې راوړی دی ( ای مؤمنانو ) مه ګڼئ حلال ( مه بې حرمته كوئ ) شعائر(نښي ددين ) دالله ) يعنی دالله محرمات حلال مه ګڼئ اوله حدودوڅخه يې تجاوزمه كوئ حسن رحمه الله وايي چي شعائرهغه شرائع دی چي الله دبندګانولپاره ټاكلی دی اوابن عباس ﷺ وايي داهغه شيان دی کوم چي داحرام په حالت كښي حرام دی(٢) ﴿ وَلَا ٱلشَّهۡرَ ٱلۡحَرَامَ وَلَا ٱلۡهَدۡيَ وَلَا ٱلۡقَلَٰٓئِدَ ﴾ او(مه بې عزته كوئ ) مياشتی حرمت والا(په قتال سره ) اومه بې حرمته كوئ ) هغه ساكښ چي دكعبې هديه وي اونه هغه چي په غاړه بې قلاده وی (اودكعبې په لوري بيولې كيږي ) چي وپيژندل شي دادكعبې لپاره دی نومه په هغوئ څه تعرض كوئ اومه يې په خاوندانوباندی ﴿ وَلَآ ءَآمِّينَ ٱلۡبَيۡتَ ٱلۡحَرَامَ يَبۡتَغُونَ فَضۡلٗا مِّن رَّبِّهِمۡ وَرِضۡوَٰنٗاۚ ﴾ او(مه بی عزته كوئ !) قصد كونكي دبيت الحرام دحج اويادعمرې لپاره حال داچي غواړي دوئ فضل له (جانبه د ) رب خپل اودده خوښي ) يعنی دحاجيانواومعتمرينوقتال حلال مه ګڼئ چي درباندي چپاوكوئ اويايې له كعبې څخه بندوئ لكه چي به دجاهليت خلګوكول ﴿ وَإِذَا حَلَلۡتُمۡ فَٱصۡطَادُواْۚ ﴾ اوكله چي له احرامه حلال شوئ پس تاسي ښكاركوئ ﴿ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ أَن صَدُّوكُمۡ عَنِ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ أَن تَعۡتَدُواْۘ ﴾ اونه دی باعث كړي تاسي دښمني ديوقوم (لپاره ) ددي چي منع

---

١ دغه قول طبری اوزمخشري غوره كړي دی خوارجح يې عموم دی ځكه امريه وفاكولودهرعهدشوی دی اودغه خبره دالبحرالمحيط مؤلف غوره كړې اويوه ډله مفسرين ورسره ملګري دی ابن اسلم وايي عقودشپږ دی عهدالله ، دالحلف عقد دشراكت عقد ، دنكاح عقداوديمين عقدكذافی تفسيرابن كثير .

( ٢ ) لومړي قول ارجح دی ځكه آيت عام راغلی دطبری م هغه غوره دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړي ده دوئ تاسي لره له مسجد حرام څخه پدې چي تاسي به تجاوز وکړئ (پر هغوئ په انتقام اخيستلو) ﴿ وَتَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ۚ ﴾ اومرسته کوئ تاسي يو تر بله په نيک کار او تقوى کښي او په هر څه کښي چي تاسو الله ته نژدي کوي او تاسي يو له بله مرسته مه کوئ په ګناه او تجاوز ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴾ او و يرېږئ تاسي له الله څخه بيشکه چي د الله عذاب ډير سخت دی (هغه چا لره چي معصيت کوي) ﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةُ وَٱلدَّمُ وَلَحْمُ ٱلْخِنزِيرِ ﴾ حرام کړی شوی دی پر تاسي (ای مؤمنانو) (خوراک د) مردار حيوان) او (د بهيدونکي) ويني او د غوښي د خنزير زمخشري وايي چي: د جاهليت په وخت کښي به خلګو د غه محرمات خوړل يو هغه حيوان چي په خپله به مړ شوی (مردار شوی) وو او بل هغه د کولمو وينه چي دوئ به کباب کوله او و يل به يې (لم يحرم من فزد) يعنی (فصد) ([1]) معنايې ده د ويني رګ (وريد) غوښول او دا چي د خنزير غوښه يې پخپله ذکر وفرمايله ددې لپاره چي هغه (بعينه) حرامه ده که څه هم په شرعي ډول ذبح کړل شي ﴿ وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ ﴾ (او هغه (حلال کړی شوی حيوان) چي د ذبحې په وخت کښي ورباندی) آواز کړی شوی وی بې له (نامه) (د الله) يعنی دا چي د الله نوم نه وی ورباندی ياد شوي او ياد بل چا په نامه حلال شوي لکه په نامه د (لات) او (عزی) ﴿ وَٱلْمُنْخَنِقَةُ ﴾ او د خفه کړي شوي (په رسۍ او يا نور و څيزونو باندی) ﴿ وَٱلْمَوْقُوذَةُ ﴾ او وهلي شوي د کوتک او يا د ډبري په واسطه ﴿ وَٱلْمُتَرَدِّيَةُ ﴾ او غورځيدلی (له غره او يا بل لوړ څيزنه) ﴿ وَٱلنَّطِيحَةُ ﴾ او د ښکري شوي په وهلو د ښکر (چي مړه شوی وی) ﴿ وَمَآ أَكَلَ ٱلسَّبُعُ ﴾ او د هغه چي (ترې) خوړلی وی ځناورانو (او مړه شوي وي) ﴿ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ ﴾ مګر (روادی) هغه چي (حلال) کړئ تاسي (او روح پکښي وي) طبری وايي چي: معنايې داده چي پاکه کړي وي تاسي هغه په شرعي ذبحه سره هغه چي الله پاکونکي ګرزولي ده.

(۱)﴿ وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ ﴾ او (حرام کړی شوی دی) هغه چي حلال کړی شوی وي (په درول شوو ډبرو باندي) قتاده وايي چي (نصب) ډبره ده چي د جاهليت په وخت کښي به خلګو د هغې عبادت کاوو او حلالی به يې ورته کولي الله ﷻ له دې څخه منع وفرمايله زمخشري وايي چي دوئ د بيت الله په خوا و شا کښي يو ه ډبره درولي وه په هغې باندي به يې ذبيحې حلالولي او غوښي به يې ورباندي خپرولې د هغې تعظيم او درناوی به يې کاوو نو الله ﷻ مؤمنان له د غسي کار کولو څخه منع کړل ﴿ وَأَن تَسْتَقْسِمُوا۟ بِٱلْأَزْلَٰمِ ﴾ (او دا چي تقسيم وکړئ تاسي په غشوسره) يعنی دا چي تاسي د خير او شر وېش په غشو را ايستلو کوئ په کشاف تفسير کښي راوړي چي کله به دوئ سفر، غزا، سوداګري، نکاح او يا بل مهم کار ترسره کاوو نو به يې هغه غښي را ايستل چي ورباندي به ليکلي وو (نهانی ربی) يعنی زه پرودګار منع کړی يم په بل به ليکلي وو (امرنی ربی) ماته پروردګار حکم کړی دی او په بل به يې داسي (کښلي وو)

---

([1]) الکشاف ۱/ ۴۲۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(غُفل) نوکه به امروو کول بې اوکه به نهی وومنع به يې کوله که چيري به (غفل) راووت بيابه يې له سره قرعه اچوله ﴿ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ﴾ دغه (حرام کار) فسق دی څکه چي دا الله له طاعت څخه وتلی دی او په علم غيب کنبي هغه چي الله ﷻ د خان لپاره غوره کړی ګډيدل دي[١] ﴿ ٱلْيَوْمَ يَئِسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن دِينِكُمْ ﴾ نن ورځ ناهيلی شول هغه کسان چي کافران شوي دی له (ګرځيدلود) دين ستاسي نه ابن عباس وايې معنی دا چي ددوئ تمه ختلي ده چي تاسو به ددوئ په دين کېنبي ورګډ شئ ﴿ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَٱخْشَوْنِ ﴾ (نومه ويريږئ له دغو کفارونه (ای مؤمنانو) او وويريږئ له مانه) يعنی تاسي له مشرکانو څخه مه ويريږئ له مانه وويريږئ زه به تاسو پردوئ غالب کړم او په دنيا او آخرت کنبي به زه تاسو ته ددوئ لوړتيا درپه برخه کړم ﴿ ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِى ﴾ نن ورځ پوره کړ ما تاسي ته دين ستاسي (په بيانولو د حلال او حرام سره) او پوره مي کړ پر تاسي (ای مؤمنانو) نعمت (په هدايت او توفيق درکولو سمې لاري ته) ﴿ وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلْإِسْلَٰمَ دِينًا ﴾ او غوره کړ ما تاسي ته اسلام له جهته ددينه (هغه چي دا الله خوښ او له هغه پرته بل دين نه مني ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ آل عمران: ٨٥ ﴿ فَمَنِ ٱضْطُرَّ فِى مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ ۙ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ نو هرڅوک چي اړشو (خوراک د حرام شي ته) په سخته لوږه کنبي حال دا چي نه وي مائل ګناه ته (او نه قصد کونکي دی ته) پس بيشکه الله ښه مغفرت کونکی د ګناهونو د يررحم والا دی په دی خوراک مو نه مؤاخذه کوي څکه ضرورات محظورات رواکوي) ﴿ يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ﴾ پوښتنه کوي دوئ له تانه (ای محمده) چي کوم شی حلال کړي شوی دی دوی ته (له خوراکونو څخه) ﴿ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ ﴾ ووايه حلال کړي شوي دي (تاسي ته پاک شيان) (او هغه چي پليت نه وي او حرام کړي شوي دی ټول مردار شيان لکه ګونګټې او موږکان او هغوئ ته ورته ﴿ وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ ٱلْجَوَارِحِ ﴾ او (حلال کړي شوی دی تاسو ته ښکار د هغه چي ښوونه کړي وي ورته تاسي له (ټولو اقسامو) ښکار کونکو (حيواناتو يا مرغانو) څخه (چي هغه سپی وي او که نور ښکاري مرغان ﴿ مُكَلِّبِينَ ﴾ چي ښوونه کونکي او ښيې تاسي سپيو ته د ښکار زمخشري وايې چي مکلب ښکاري شيانو ته زده کړه او روزنه ورکونکي ته وايې اشتقاق يې له کلب څخه راغلی دی څکه د هر تأديب د سپيانو کول کيږي[٢]) ﴿ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ ٱللَّهُ ﴾ (چي ښوونه وکړي تاسي ورته له هغه نه چي ښوولی دی تاسي ته الله) يعنی دا چي د ښکار په لاروچارو يې روږدي کړي او دا هم يوه ټوته هغه پوهه ده چي الله ﷻ انسان ته وربښلی ده ﴿ فَكُلُوا۟ مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ ﴾ پس خورئ

---

(١) دغه که چيري اشاره يوازی استقسام ته راشي څکه چي اشاره خوراننژدي ته د ه چي ياد شوي او دا د ابن عباس ﷺ قول او راجح دی طبری دا غوره ګڼلی چي اشاره ګردو ياد شوو محرماتو ته شی او ټول قولونه صحيح دي.

(٢) الکشاف ١/ ٤٧١

(٣) الطبری ٩/ ٥٩٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تاسي له هغه ښکاره چي نيولى دى تاسي ته ( له چارپايانو او مرغانونه ) او دوئ خوړلى نه وي كه هغوئ وخوړل نو بيا يې خوراك ندى روا لكه چي په حديث شريف كښي راځي: (اذا ارسلت كلبك المعلم فقتل فكل، واذا أكل فلاتأكل فانما امسكه على نفسه ) كله چي دى ښكاري سپي واستول او ښكاريې وكړويې وژل نو يې خوره او كه چيري يې هغه خوړلى وو بيا يې مه خوره ځكه هغه د ځان لپاره نيولى دى )(١) او د(معلم ) ښښي دادى چي كله يې واستوي روانيږي او چي راغواړي يې راستنيږي او چي ښكار ونيسي هغه نه خوري او د استولو په وخت كښي به هغه د الله په نامه ليږي دغه ځلور سره شرطونه د سپي د ښكار د حلالوالى لپاره تاكل شوي دى ﴿ وَٱذْكُرُوا ٱسْمَ ٱللَّهِ عَلَيْهِ ﴾ او يادوئ تاسي نوم د الله (په هغه ښكاري حيوان كله چي ښكار ته يې ليږئ ﴿ وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴾ او وويريږئ تاسي له الله نه بيشكه چي الله ډير چابك دى حساب (دده ) د بندګانو په مجازات كولو كښي ) ﴿ ٱلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ ﴾ نن ورځ حلال كړى شوي دي تاسي ته ټول پاكيزه شيان ( له ذبائحو او نوروڅخه ) ﴿ وَطَعَامُ ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلْكِتَٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ﴾ او (هرقسم ) طعام د هغو كسانو چي وركړل شوي دى دوئ ته كتاب حلال دى تاسي ته ( يعنى د يهودو او نصاراوو ذبائح ستاسو لپاره حلال دي ﴿ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ﴾ او (هرقسم ) طعام ستاسي حلال دي دوئ ته (پدې كښي څه تاوان نشته چي دوئ ته خوراك وركړئ او يا يې ورباندي وپلورئ ﴿ وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ او(حلال دى تاسي ته ) بى ميره ( پاك لمني ) ښځې له مؤمنانو ښځوڅخه ﴿ وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ ﴾ او پاك لمنې (بى ميره ) اصيلې ښځې له هغو كسانو چي وركړل شوي دوئ ته كتاب له تاسي پخوا( كه يهوديانې وي او يا نصرانيانې ) دغه د جمهورو علماوو رايه ده او عطاء وايي: اوس خو مسلماني ښځي ډيرې دي دغه حكم په هغه پخوا وخت كښي الله د مسلمانانو لپاره روا ګڼلى وو ﴿ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ﴾ كله چي وركړي (دغو ښځوته ) مهرونه د دوئ ﴿ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ ﴾ حال داچي نكاح كونكي يې تاسي نه زنا كونكي (ښكاره ) ﴿ وَلَا مُتَّخِذِىٓ أَخْدَانٍ ﴾ او نه نيونكي د يارانو (په پټه سره ) چي هغه موعشيقاتى او محبوبې وي په پټه ورسره زناوې كوئ. طبرى وايي: چي معنايې داده چي په خلوت كښي به نه وي له هغې محبوبې سره چي هغه له ده سره او دي له هغې سره په پټه يارې پالى د ځان لپاره يې غوره كړي وى ورسره زنا كوي[٢] ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِٱلْإِيمَٰنِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُۥ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ او هرڅوك چي كافر(منكر) شو په ايمان ( او مؤمن په شرائعو ) پس په تحقيق ضائع شو عمل دده او دى به په آخرت كښي له زيان كارانو څخه وي بيا الله تعالى داو د اسه د اسباغ په هكله داسى فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ ﴾ اى هغو كسانو چي ايمان يې راوړي دى ( اى

(١) اخرجه البخاري من حديث عدى ابن حاتم.

٢ الطبري ٩ ـ ٥٩٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مؤمنانو ) کله چي پاځیږئ تاسي لمانځه ته (اوبې اودسه یئ ! ) ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ﴾ نو پرېمنځئ تاسو مخونه خپل اولاسونه خپل ترڅنګلوپوري (سره له څنګلو ) ﴿وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ اومسح وکړئ تاسي پر سرونو خپلو ( اووینځئ تاسي ) پښې خپلي ترپړکیوپوري ( سره له پړکیو ) زمخشري وايي چي د(غایې ) راوړل پداسي توګه چي ﴿إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ يې وفرمايل ددې لپاره دی چي دهغه ګومان دفع وکړي چي وايې په پښومسح کول کيږي ځکه دمسحې لپاره په شريعت کښي د(غایې ) تاکل نشته اوهمدارازپه حديث شريف کښي راځي ( ويل للاعقاب من النار) یعنې دهغووچوپړکیولپاره اوردي همدغه حديث په هغوکسانوباندي چي وايې پښې پرېمنځل کيږي نه بلکه مسح کيږي زمونږدليل دی اوپه آيت کښي ددې خبرې صراحت ځکه شته چي په زبر (نصب)سره راغلی دی او﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ دی چي په مغسول باندی عطف شوي خومسح د پرېمنځلي اندامونوپه مينځ کښي يوازی دترتيب دمراعت کولولپاره راغلی دی ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ اوکه وئ تاسي په جنابت کښي نوبنه ځان پاک کړئ (ټول بدن پرېمنځئ ! ) ﴿وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ اوکه وئ تاسي رنځوران ( اوبودرته زيان رسولو ) ياپه سفر(کښي وئ ) اوبه مونشواى ميندلاى ﴿أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ﴾ ياراغي يوله تاسوڅخه له ځايه دبولو﴿ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ﴾ ياجماع وکړئ تاسي له ښځوسره (﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ ( نو پیدانکړئ تاسي اوبه نوقصدوکړئ تاسي دپاکې خاورې ) يعنی کله چي تاسي داوبودلټولوروسته هغه ونه مومئ نوقصدوکړئ دپاکې خاورې لپاره ددې چي ورباندي تيمم ووهئ چي ﴿فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ﴾ نو( ووهئ لاسونه دوه ځلي پر ځمکه او ) ومښئ تاسي (دالاسونه ) په مخونوخپلواولاسونوخپلوله هغې (خاورې ) څخه دغه څرنګوالی په نبوي احاديثوکښي راغلی دی﴿مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ﴾ اراده نلري الله(پدې فرض کولوداودسه ، غسل، اوتيمم چي مقرر کړي پر تاسي څه حرج ( تنګوالی ياسختې ) ﴿وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ لکن اراده لری ( الله ) ددې چي پاک کړي تاسي ( له ګناهونواوپليتيو څخه په اوداسه اوتيمم ) اوددې لپاره چي بشپړکړی ( الله ) نعمت ( احسان ) خپل پرتاسي ( داسلامي شرائعو په بيانولو ) لپاره ددې چي تاسي شکرګذارشئ !( د هغو نعمتونوچي شميرېې نشي کيدای ﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُم بِهِ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا﴾ اوياد کړئ تاسي نعمت( احسان ، رحمت ) دالله پرتاسي ( چي اسلام دی ) نو(ياد کړئ ) عهدمحکم د الله هغه (عهد ) چي محکم والی کړي دی ( الله ) له تاسي سره په هغه سره کله چي وويل تاسي واوريده مونږ( وينا ستا ) اوومومانه (فرمان ستا ) خطاب دلته دمؤمنانولپاره ده اوله نعمت څخه مراددلته داسلام نعمت دی اوهغه چي دوئ ته دعزت اوکلمې دواړوويارورکول شوي دی يعنی ای

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مؤمنانو د الله ﷻ هغه ستر د اسلام نعمت درپه یاد کړئ او هغه عهد چي له تاسو څخه د الله پیغمبر د بیعت په توګه اخیستي او تاسو ورته ( سمعا و طاعة ) ویلي یعنی په آسانۍ او سختۍ کښي به دی حکم منو ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ او ویریږئ له الله بیشکه چي الله ښه عالم دی په خبرو د سینو او حالاتو د زړونو ورباندی به جزا درکړي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوا۟ قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ ﴾ اې هغو کسانو چي ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو ) محکم ولاړ اوسئ د الله لپاره ( په شاهدي ورکولو ) د ( قوام ) صیغه د مبالغې لپاره ده ﴿ شُهَدَآءَ بِٱلْقِسْطِ ﴾ ( اوسئ ) تاسي شاهدان په عدل او انصاف سره ﴿ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعْدِلُوا۟ ﴾ ( او باعث دی نکړي تاسي د ښمنۍ د یو قوم پدې باندی چي عدل به ونکړئ تاسي ) یعنی ستاسو سخته کرکه او بغض دی تاسو دې ته اړ نه باسي چي د د ښمنانو په هکله عدل ونکړي او ورباندی وبلوسیږئ ﴿ ٱعْدِلُوا۟ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ﴾ ( عدل وکړئ تاسي ! هم (داعدل ) ډیر نږدی دی تقوی (پرهیزګاري ته ) یعنی ستاسو عدل له هغه چا سره چي ورسره بغض لري د استاسي لپاره تقوی کولو ته ډیر نږدی دی ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ او ویریږئ له الله تاسي ! ( نو ظلم مکوئ ) بیشکه چي الله ښه خبردار دی په هغو اعمالو چي کوئ یې تاسي ( نو جزا به ورباندی درکړي ) زمخشري وایې پدې کښي ستره تنبیه نغښتی ده هغه داچي څرنګه چي عدل د الله له د ښمنانو سره واجب دی هغوئ چي کفاردي او پدغه صفت موصوف وی نو د عدل د وجوب په هکله له مؤمنانو سره چي هغوئ د الله دوستان او اولیان دی څه فکر کوئ ؟ (١) ﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ ( وعده کړي ده الله له هغو کسانو سره چي ایمان یې راوړي دی او کړي یې دی ښه (عملونه) یعنی الله له مطیعانو مؤمنانو سره وعده کړي ﴿ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ ( چي مقرر دی ) دوئ ته مغفرت او اجر ډیر لوي ( چي هغه جنت دی ) ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ او هغه کسان چي کافران شوي دی او نسبت د دروغو یې کړی دی آیتونو زمونږ ته همدغه کسان دی ملګري اور (د دوزخ ) کله چي الله د متقینو مؤمنانو میشت ځای وښود نو د کافرانو هستوګنځي یې هم یاد کړ چي تل ترتله به د جحیم په پوړیو کښي عذاب ویني ابو حیان وایې چي د مؤمنانو لپاره فعلیه جمله استعمال شوي هغه چي په ماضی بڼه کښي دوعدې متضمنه ده او په وقوع باندی دلالت کوي او د کافرانو په هکله اسمیه جمله راوړل شوي هغه چي ددې حکم په ثبوت دلالت کوي او استمرار و زرسره دی چي تل ترتله به دوزخ په اور کښي اوسي. (٢)

---

(١) الکشاف ١ / ۴٧٢

(٢) البحر ٣ / ۴۴١ (٢) زمخشري په کشاف تفسیر کښي راوړي ١ / ۴٧٣.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## بلاغت:

پدې آيتونو کښې لاندې صنعتونه شته:

۱ - (لاتحلوا شعائرالله) پدې کښې استعاره ده اوهغه حلال اوحرام چې بندګان يې دالله دعبادت په توګه منى اوحلال ترسره کوي له حراموڅخه ځان ژغوري له شعيري سره چې علامې ته وايې مشابه ګڼل شوي دى.

۲ - (ولا القلائد) يعنى ( ذات القلائد ) دلته عطف دخاص پرعام شوي ځکه هغه ترټولودشرافت خاوندهمدي دی لکه داعطف چې الله فرمايې: (من كان عدوالله وملائكته ورسله وجبريل وميكل ) [البقرة: ۹۸]

۳ - (وتعاونوا على البر والتقوى ولاتعاونوا على الاثم والعدوان) پدې کښې دبديعې محسناتوهغه صنعت خوندى دی چې مقابله يې بولي.

۴ - (وطعام الذين اوتوا الكتاب) دلته راوړل دعام طعام اومقصديې خاص طعام دی چې هغه ( ذبائح) دی.

۵ - (محصنين غيرمسافحين) دلته دطباق صنعت دی ځکه دمحصنين معناپاک لمنى خلګ اودمسافحين معنا زناکاران دي.

۶ - (واذا قمتم الى الصلاة) معنايې داچې اراده وکړي دلمانځه نوله ارادي څخه يې دلته تعبيرپه فعل وفرمايل اومسبب يې دسبب پرځای ودراووچې ترمينځ يې ملابست موجودوو( ) اوهمدارنګه په آيت شريف کښې ايجازبالحذف شته يعنى داچي: ( اذاقمتم الى الصلوة وانتم محدثون ).

## فوائداوګټې:

لومړۍ فائده: حکايت کيږي ( الكندى ) فيلسوف ته يې ملګروويل اى حكيم صاحب مونږته لکه دغه قرآن غوندى کتاب وليکه هغه ورته وويل سمه ده دځينى قرآن غوندى به يوڅه درته وليکم اوڅوورځي دننه ګوښه شواوبيارابهرشويې ويل: والله چې زمايه وس کښې نشته اونه هم هيڅوک ددې توان لري چې ددى په شان څه وليکي ماقرآنکريم پرانست دمائده سوره مخې ته راغله اوچي ورته مې وکتل دوفاخبري يې کولى له وعدې ماتولوڅخه يې منع کوله بيايې په بشپړه توګه حلال ښودلى وواوبياوروسته يې استثناء کړي وه وروسته الله له خپل قدرت اوحکمت څخه په دووکرښوکښې خبراوړي وواوهيڅوک نشى کولاى چې دادومره شيان په دومره لنډوتورواوجملوکښې راوړى مګرڅوټوکه کتابونه وربانديځ ډک کړى (۱)

دوهمه فائده: دجاهليت ددورسنت اوددودستورپه قومي تعصب بناء ووخواسلام ديوداسي انسانى له برم اوعزت نه ډک فرمان سره راغى چې فرمايې: (وتعاونوا على البر والتقوى ولاتعاونوا على الاثم والعدوان) ددې دواړو ترمينځ خورازيات توپيردى.

---

(۱) القرطبى ۶/ ۳۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دريمه فائده: روايت كيږي چي له يهودانو څخه يو تن عمربن الخطاب ﷺ ته راغي ورته ويل يې اى اميرالمؤمنينه ستاسو په كتاب كښي يوداسي آيت چي تاسو يې لولئ شته كه پرمونږ يهودانو باندى نازل شوي واى مونږبه همغه ورځ اخترتاكلى وه حضرت عمر ﷺ ورته وويل چي كوم آيت بنيې ؟ هغه ورته وويل: (اليوم اكملت لكم دينكم...) دآيت ترپايه پوري نوعمر ﷺ ورته ويل زمادى په الله قسم وى چي ماته هغه ورځ معلومه ده چي پكښي نازل شوي اوهغه ساعت چي په رسول الله ﷺ باندى وحى شوى دى دانزول دعرفات په مابنام دجمعې په ورځ وو. (١)

الله تعالى فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ هَمَّ قَوۡمٌ أَن يَبۡسُطُوٓاْ إِلَيۡكُمۡ أَيۡدِيَهُمۡ فَكَفَّ أَيۡدِيَهُمۡ عَنكُمۡۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴿١١﴾ ۞ وَلَقَدۡ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ وَبَعَثۡنَا مِنۡهُمُ ٱثۡنَيۡ عَشَرَ نَقِيبٗاۖ وَقَالَ ٱللَّهُ إِنِّي مَعَكُمۡۖ لَئِنۡ أَقَمۡتُمُ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَيۡتُمُ ٱلزَّكَوٰةَ وَءَامَنتُم بِرُسُلِي وَعَزَّرۡتُمُوهُمۡ وَأَقۡرَضۡتُمُ ٱللَّهَ قَرۡضًا حَسَنٗا لَّأُكَفِّرَنَّ عَنكُمۡ سَيِّـَٔاتِكُمۡ وَلَأُدۡخِلَنَّكُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُۚ فَمَن كَفَرَ بَعۡدَ ذَٰلِكَ مِنكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴿١٢﴾ فَبِمَا نَقۡضِهِم مِّيثَٰقَهُمۡ لَعَنَّٰهُمۡ وَجَعَلۡنَا قُلُوبَهُمۡ قَٰسِيَةٗۖ يُحَرِّفُونَ ٱلۡكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ وَنَسُواْ حَظّٗا مِّمَّا ذُكِّرُواْ بِهِۦۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٖ مِّنۡهُمۡ إِلَّا قَلِيلٗا مِّنۡهُمۡۖ فَٱعۡفُ عَنۡهُمۡ وَٱصۡفَحۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿١٣﴾ وَمِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّا نَصَٰرَىٰٓ أَخَذۡنَا مِيثَٰقَهُمۡ فَنَسُواْ حَظّٗا مِّمَّا ذُكِّرُواْ بِهِۦ فَأَغۡرَيۡنَا بَيۡنَهُمُ ٱلۡعَدَاوَةَ وَٱلۡبَغۡضَآءَ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِۚ وَسَوۡفَ يُنَبِّئُهُمُ ٱللَّهُ بِمَا كَانُواْ يَصۡنَعُونَ ﴿١٤﴾ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖۚ قَدۡ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ ﴿١٥﴾ يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ مَنِ ٱتَّبَعَ رِضۡوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ وَيُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِهِۦ وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿١٦﴾ لَّقَدۡ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَۚ قُلۡ فَمَن يَمۡلِكُ مِنَ ٱللَّهِ شَيۡـًٔا إِنۡ أَرَادَ أَن يُهۡلِكَ ٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَأُمَّهُۥ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗاۗ وَلِلَّهِ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَاۚ يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ﴿١٧﴾ وَقَالَتِ ٱلۡيَهُودُ وَٱلنَّصَٰرَىٰ نَحۡنُ أَبۡنَٰٓؤُاْ ٱللَّهِ وَأَحِبَّٰٓؤُهُۥۚ قُلۡ فَلِمَ يُعَذِّبُكُم بِذُنُوبِكُمۖ بَلۡ أَنتُم بَشَرٞ مِّمَّنۡ خَلَقَۚ يَغۡفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُۚ وَلِلَّهِ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَاۖ وَإِلَيۡهِ ٱلۡمَصِيرُ ﴿١٨﴾ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ عَلَىٰ فَتۡرَةٖ مِّنَ ٱلرُّسُلِ أَن

(١) أخرجه الشيخان(٢) مختصرابن كثير١ / ٤٩٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تَقُولُوا مَا جَآءَنَا مِنۢ بَشِيرٍ وَلَا نَذِيرٍ فَقَدْ جَآءَكُم بَشِيرٌ وَنَذِيرٌ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٩﴾ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكًا وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢٠﴾ يَٰقَوْمِ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْأَرْضَ ٱلْمُقَدَّسَةَ ٱلَّتِى كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوا۟ عَلَىٰٓ أَدْبَارِكُمْ فَتَنقَلِبُوا۟ خَٰسِرِينَ ﴿٢١﴾ قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا حَتَّىٰ يَخْرُجُوا۟ مِنْهَا فَإِن يَخْرُجُوا۟ مِنْهَا فَإِنَّا دَٰخِلُونَ ﴿٢٢﴾ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ ٱلَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمَا ٱدْخُلُوا۟ عَلَيْهِمُ ٱلْبَابَ فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَٰلِبُونَ وَعَلَى ٱللَّهِ فَتَوَكَّلُوٓا۟ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٣﴾ قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِنَّا لَن نَّدْخُلَهَآ أَبَدًا مَّا دَامُوا۟ فِيهَا فَٱذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَٰتِلَآ إِنَّا هَٰهُنَا قَٰعِدُونَ ﴿٢٤﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّى لَآ أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِى وَأَخِى فَٱفْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ ٱلْقَوْمِ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٥﴾ قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ فِى ٱلْأَرْضِ فَلَا تَأْسَ عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٦﴾

المائدة: ١١-٢٦

**مناسبت اوتړاو:**

کله چي الله تعالی پدې عزتمن سورت کښي هغه څه ذکرکړل چي دمؤمنانولپاره يې د احکامو په توګه رواکړي وواوترېتولوستريې دحلالواوحرامو بيان وودلته يې بياهغه نعمت ذکرکړچي هغه دوئ ته داسلام دسپيځلی دين هدايت اولاربښوونه وه اوداچي له دوئ څنی يې دشراوګناهونودفع کړي ده له هغه وروسته يې خپل هغه نعمت چي په اهل کتابو(يهودانواونصاراوو) يې پيرزوکړی اوله دوئ څخه يې عهداو پيمان اخيستی خوهغوئ خپلی ټينګې وعدې اوژمنې ماتې کړي دی نوځکه الله ددوئ ترمنځ کرکې او عداوتونه اچولی اودابه دقيامت تر ورځې پوري وي بيادغه دواړه ډلې دقرآن دنورڅلاته رابولې چي وربانديې لاره پيداکړي اودخاتم النبيين ﷺ په شريعت منګولې ولګوي اودې ته يې هڅوی هغه څه چي ددوئ چټي خيالات اوډګمراهې لارې چارې دی ترشاکړی.

**لغتونه:**

(نقيبا) نقيب دقوم مشرته وايې هغه چي وخت په وخت ددوئ پوښتنه کوي اوله مصالحواو ښيګڼوېې ځان خبروي هغه لکه دټولګي کفيل غوندي وي (وعزرتموهم) تعزيرتعظيم اوتوقيرته وايې (سواء السبيل) ميانه لار(قاسية) سختې اوهغه چي پکښي خيرنه وی (قاسية اوعاتيه) دواړه په يوه معنادي (خائنة) خيانت ته وايې اوکيدای شي چي دخائن لپاره صفت وي لکه چي وايې ( رجل طاغية ) اويا(راوية للحديث) (فاغرينا) له غراڅخه اخيستل شوي اوغراپه يوشي باندی الصاق اوپيوستون ته وايې (فترة) انقطاع (يتيهون) تيه حيرانتياولالهاندتوب ته ويل کيږي.

**دنزول سبب:** بنونضيرقوم غوښتل په رسول الله ﷺ باندی دميچنی پل راوغورځوي اوله هغه اواصحابانو رضوان الله عليهم سره خيانت وکړي نو الله داآيت نازل کړ: ﴿ياايها الذين آمنوا اذكروا نعمة الله عليكم اذهم قوم ان يبسطوا اليكم ايديهم﴾ [1]

[1] مختصرابن کثير۱/۴۹۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تفسير:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ هَمَّ قَوْمٌ أَنْ يَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ ﴾ اى هغوكسانوچي ايمان يې راوړي دی يادکړئ تاسې احسان دالله پرتاسي کله چي يوقوم ددي قصدوکړچي راوغځوي دوئ تاسوته لاسونه خپل (تاسي مره کړي) ﴿ فَكَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ﴾ نو (الله) منع کړل لاسونه ددوئ له تاسي څخه (تاسويې ددوئ له شرڅخه وژغورلئ) ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ ﴾ او ووېرېږئ له الله څخه (داوامروپرامتثال کولواوله نواهيوڅخه يې داجتناب کولوپه هکله) ﴿ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ اوخاص په الله پس خامخا توکل دی وکړي مؤمنان (ځکه هغه يې کافی اومرستندوئ دی بياوروسته الله ديهودانواحوال بيانوي اودهغوئ هغه دعهداوميثاق ماتول راوړي فرمايې: ﴿ وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق اخيستئ ده الله وعده محکمه له بنی اسرائيلو(عهدسره له قسمه) ﴿ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ﴾ (اوولېږل مونږله دوئ نه دولس تنه مشران) يعنی مونږموسی ته امرورکړچي له دوئ څخه دولس تنه نقيبان واخلی نقيب دقوم مشرته وايې هغه چي دخپل قوم په وعده کولوباندی ضامنان وي زمخشري وايې کله چي بنی اسرائيل دفرعون له هلاک څخه وروسته په مصرکښې ځای په ځای شول نوالله تعالی ورته وفرمايل چي دشام په هيوادکښې (اريحاء) ته ولاړشي چي هلته کنعانيان اوسيدل هغه چي جبابره اوسرکښه ووالله دوئ بنی اسرائيلوته وفرمايل چي دامځکه مې ستاسولپاره داستقراراوسوکالی هستوګنځي تاکلی تاسي له هغه چاسره چي هلته دي جهادوکړي زه تاسوته نصرت درکوم اوموسی ﷺ ته يې حکم وکړچي له دوئ څخه دولس تنه مشران غوره کړي هغسی وشواوچي دکنعان خواوشاته ورسيدل خلګ يې واستول چي اخبارراټول کړي بياهغوئ چي ددې کارلپاره ګومارل شوي وو ويې ليدل چي کنعانيان دغټ تن اوبدن خاوندان دسترقوت اوشوکت څښتنان دی ځينی وبيريدل اوقوم ته راستانه شول داټول حال يې تکي په تکي ورته ووايوسره له دي چي موسی ﷺ ورته ويلی ووتاسوبه حال نه واياست ځکه نودوئ وعده ماته کړه اوټولوحال ووايه يوازي دوه تنه پاتی شول چي خبريې لوخ نکړ.(١) ﴿ وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ ﴾ اووفرمايل (الله) (بنی اسرائيلوته) بيشکه زه له تاسي سره يم (په نصرت اومعاونت سره) ﴿ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ ﴾ (اوويې فرمايل قسم دي) خامخاکه قائم کړئ تاسي (سم اداکړي له ټولوحقوقو سره) لمونځ اوورکړئ زکات) لام دقسم لپاره دی يعنی زماقسم دی ای بنی اسرائيلوکه هغه زمافرض لمونځونه اوزکاتونه اداکړئ ﴿ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ ﴾ اوايمان راوړئ تاسي په رسولانواوتعظيم وکړئ تاسي ددوئ (يايقين وکړئ تاسي په رسولانواومرسته وکړئ ددوئ اوله دښمنانوڅخه يې منع کړئ) ﴿ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ (اوقرض ورکړئ تاسي الله ته نيک (دزړه له اخلاصه بی احسانه) يعنی

(١) الکشاف١/ ٤٧٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



انفاق وکړئ دالله په لارکښي دالله دخوښې لپاره ﴿ لَأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾ (نو خامخا لري به کړم زه له تاسي څخه ګناهونه ستاسي ) اودغه ځواب دقسم دی بیضاوي وايې چي دلته دقسم ځواب دشرط دځواب پرځای دريدلی دی [1] ﴿ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّـٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَـٰرُ ﴾ (اوخامخا داخل به کړم هرومرو زه تاسي (هسي ) جنتونو ته چي بهيږي له لاندي (دونو او ماڼيود ) دهغوويالې ) داوبو، شيدو، شرابو او عسلو ﴿ فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ (نو هرڅوک چي کافرشو وروسته له دې (وعدې ) له تاسي نه نو په تحقيق ورکه کړي يې ده سمه صافه لاره ) يعنی څوک چي وروسته له دغه ميثاق نه کافرشول سمه لاره څيني ورکه او داسی ګمراهان شول چي په ګمراهې کښي يې هيڅ شک نشته ﴿ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَـٰقَهُمْ لَعَنَّـٰهُمْ ﴾ نو په سبب دماتولو ددوئ دکلکې وعدې خپلې لعنت وکړمونږ پردوئ ) يعنی په سبب دماتولو دوعدې مونږ دوئ له خپله رحمته وشړل ﴿ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَـٰسِيَةً ﴾ اوګرځولی دی مونږ زړونه ددوئ سخت (چي د ايمان قبول او منل نه کوي ) [2]

﴿ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ ﴾ (چي اړوي دوئ کلمې (دتورات ) له ځايونو خپلو ) يعنی داسي بې تأويل کوي چي الله هماغسی نه وي نازل کړي اوپه الله ﷻ باندی هغه څه تړی چي الله نه وی ويلی [1] اوتردي ستره ګناه چيرته ده چي دالله ﷻ کلام تغيرکړي ؟! ﴿ وَنَسُوا۟ حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦ ﴾ اوهيره کړی ده دوئ (غټه ) برخه اخيستل له هغه شي چي پندورکول شوي وودوئ ته په هغه سره ( په تورات کښي )

﴿ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ﴾ (اوهميشه به يې ته ( ای محمده ! ) چي خبريږي په کوم خيانت ( له دی يهودانو ) نه مګرلږکسان له دوئ نه ) يعنی ای محمده تل به ته ددوئ په خيانتونو، وعده ماتولو او مکرونو فريبونو خبريږي ځکه غدراو خيانت ددوئ دوداوعادت دی اوهمدارنګه ددوئ دنيکونو داخوئ ووخولږکسان دی چي هغه داسې نه کوي او هغه مسلمانان دی ﴿ فَٱعْفُ عَنْهُمْ وَٱصْفَحْ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ (نو عفوه وکړه (ای محمده ) ! له دوئ نه اومخ وګرزوه (له دوئ نه ) بيشکه چي الله خوښوی احسان کونکي ) ددغه آيت حکم دسيف اوجزيې په آيت سره منسوخ دی لکه چي جمهورعلماء وايې ﴿ وَمِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّا نَصَـٰرَىٰٓ أَخَذْنَا مِيثَـٰقَهُمْ ﴾ (اوځينی له هغو کسانو څخه چي وايې دوئ بيشکه مونږ نصرانيان يو اخيستي وومونږ محکم عهدددوئ ) يعنی اوهغه کسان چي دوئ دعوی کړي چي انصارالله دی اوځانونه يې پدی نومولی دی له دوئ څخه هم مونږ کلکه وعده اخيستی چي دالله په توحيد اودمحمد په رسالت به ايمان راوړئ ﴿ فَنَسُوا۟ حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦ ﴾ نوهيره کړه دوئ ( غټه ) برخه اخيستل له هغه شي چي پندورکړل شوي ووي دوئ ته ) يعنی دوئ هغه

---

(1) البيضاوي ص ١٤٧.

(2) دا دابن عباس قول لکه په بحرکښي راغلی.

Bawar.net



دانجیل مأموربه چي دغه ایمان ووپرینبودااووعده یې ماته کړه ﴿ فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴾ ( نوواچاوومونږپه مینځ ددوئ کښي دښمنی اوکینه تررورخي دقیامته پوري ) ابن کثیروایي تل به دغه دنصاراووطائفي یوله بله دښمنان وي اوکښې به پالي یوپربل به لعنت وايي اوهره ډله به بلې ته اجازه نه ورکوي چي معبدته یې ورشي (١)اوهمدارنګه مونږ دلویدیزملتونه وینوچي له دي سره سره چي دیودین پیروان دی خویودبل په له منځه وړلوکښي هڅې کوي اووینوچې داتومي بم له جوړولوبیاتر هیدروجیني پوري اونوری کیمیاوي ډول ډول هلاکونکي وسلې چي عقل یې دتصورامکان نلري چي خومره وراني به رامنځ ته کړي همدوئ جوړي کړي دي (انما یریدالله ان یعذبهم بها في الحیوة الدنیا وتزهق انفسهم وهم کافرون)بیاالله تعالی فرمایي: ﴿ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴾اوژربه خبر ورکړی دوئ ته الله په هغوکارونوچي وودوئ چې کول به یې ) داددوئ لپاره تهدیددی یعنی دخپل بدعمل جزاء به ووینی ﴿ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِمَّا كُنْتُمْ تُخْفُونَ مِنَ الْكِتَابِ ﴾ ( ای اهل کتابو ! په تحقیق درغلی دی تاسي ته رسول زمونږ(محمد ) چي بیانوي تاسي ته ډیرله هغوشیانوچي وئ تاسي چي پټول به موله کتابه ) یعنی له تورات اوانجیل څخه لکه درجم آیت یااصحاب السبت کیسه هغوئ چي بیزوګان مسخ شول.

﴿ وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ ﴾ اوتیریږي له ډیرو(شیانو ) یعنی نه یې بیانوي بلکه هغه څه بیانوي چي دده په نبوت حجت اودلیل وي اووايي په ربښتنولی شاهدوی که ټول څه بیان کړي تاسي به رسواشئ په تسهیل کښي وايې چي په آیت شریف کښي درسول الله ﷺ د نبوت په صحت باندی دلیل دی څکه هغه څه یې بیان کړي چي ددوئ په کتابونو کښي وولیکن دوی پټول سره له دې چي رسول الله ﷺ أمي وودوئ کتابونه یې نه وولوستی (٢)﴿ قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُبِينٌ ﴾ ( په تحقیق درغلی دی تاسي ته له (طرفه د ) الله څخه نوررڼا اوکتاب مبین) یعنی تاسوته نورچي قرآن دی درغلی داسي رڼاچي دشرک اوکفرتاریکې لیري کوي اوهغه روښانونکي دبیان کتاب هم دی ﴿ يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ ﴾ چي هدایت کوي په (هریوه) له دي سره الله هغه چاته چي تابع وي درضادده لارې دسلامتې ته ﴿ وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ﴾ اوباسی دوئ له تیارو(دکفراو شرک ) څخه رڼا(دایمان ته ) ( په توفیق اواراده دده سره ) ﴿ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴾ ( اوهدایت کوي دوئ ته (په طرف د) لارې سمې (دتوحید ) چي هغه دین داسلام دی وروسته بیاالله تعالی دنصاراووهغه افراط چي دحضرت عیسی عليه السلام په باب یې کاووداسی بیانوي چي دالوهیت مقام ته یې رسولی فرمایي: ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ خامخاپه تحقیق کافران

---

(١) مختصرابن کثیر١/ ۴۹۸

(٢) التسهیل١/ ١٧٢.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شوي دی هغه کسان چي وايي دوئ بيشکه چي الله هم دامسيح زوی دمريمې دی ) يعنی هغه يې الله گرځولی اودادنصاراوويوه ډله ده چي زعم کوي الله په عيسی کښي حل شوي ځکه نوموړددوئ په کتابونوکښي گورو چي دوئ ليکي چي: (يسوع رب راغي ) اويسوع ددوئ په نزدعيسی دی (۱)﴿ قُلْ فَمَن يَمْلِكُ مِنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا إِنْ أَرَادَ أَن يُهْلِكَ ٱلْمَسِيحَ ٱبْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُۥ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا ﴾ ووايه (ای محمده !دغونصرانيانوته نوڅوک به مالک شي د(منعې ) له الله ځينی ديوشی ؟ که اراده وفرمايي (الله ) ددی چي هلاک کړي مسيح زوی دمريمي اوفورددده اوهومره خلگ چي په ځمکه کښې دی گردسره ټول (بلکه هيڅوک نشي کولای !) يعنی ای محمده دوئ ته ووايه چي تاسي دروغ واياست که الله ﷻ دگردوخلگودهلاکت اراده وفرمايي اومسيح اوموريې هم هلاک کړي نوڅوک به يې ځينی وژغوري عيسی ؑ هم يوفانی کيدونکي بنده دی لکه نورمخلوقات اوڅوک چي داسی وي هغه بياکله له الوهيت سره نبايې که چيري په رښتيا اله وای نوبه يې له ځانه مرگ دفع کړی وای. ﴿ وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ﴾ اوخاص الله لره دی سلطنت د آسمانونواودځمکې او(سلطنت ) دهغوشيانو چي په مينځ ددوئ کښي دی ( له مخلوقاتواوعجائبو ) ﴿ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ﴾ پيداکوي (الله هغه چي اراده وفرمايي دپيداکولو يې) نوځکه يې عيسی بې دده له پلاره پيداکړي دی ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوالله پرهرځيزباندی (چي اراده وفرمايي ) ښه قادردی ( هيڅ شی يې عاجزکولای نشي بياوروسته الله ديهودانواونصاراووافتراگاني داسې بيانوي: ﴿ وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ وَٱلنَّصَـٰرَىٰ نَحْنُ أَبْنَـٰٓؤُا۟ ٱللَّهِ وَأَحِبَّـٰٓؤُهُۥ ﴾ ( اوويل يهودانواونصرانيانوچي موږ زامن دالله يواودوستان دده يو ) يعنی موږالله ته دومره په منزلت کښي نږدي يولکه زامن چي پلارته نږدي وي اوموږيې دوستان هم يوځکه دده په دين يوا بن کثيروايې چي معنادا چي موږدالله نبيانوته منسوب يواوهغه دده زامن دي.دالله هغوئ ته خاصه پاملرنه شته ځکه نوموږدوستان گڼي (۲)﴿ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُم بِذُنُوبِكُم ﴾ ( ووايه ( ای محمده ! دی کتابيانوته ) نوولی په عذابوي (الله ) تاسي په سبب دگناهونوستاسي ؟! ) يعنی که چيري تاسي هماغسی ياست لکه چي دعوه کوئ دالله زامنِ اودوستان يئ نوولی يې ستاسي لپاره ستاسي دکفراوافتراء په سبب دوزخ تيارکړي دی ؟ ﴿ بَلْ أَنتُم بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ﴾ ( بلکه تاسي هم يو بشر(بنی آدم ) يئ دهغومخلوقاتونه چي الله پيداکړي دی ) اوالله پخپلوټولوبندگانوحاکم دی ﴿ يَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ﴾ مغفرت کوي (الله ) هغه چاته چي اراده وفرمايي د(مغفرت يې ) اوعذابوي هغه څوک چي اراده وفرمايي (دعذاب يې) دهغه په حکم اوامردچا اعتراض نشته ﴿ وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا

(۱) البحرالمحيط ۳ / ۴۴۸

(۲) مختصرابن کثير۱ / ۴۹۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بَيْنَهُمَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴾ اوخاص الله لره دی سلطنت دآسمانونواوسلطنت دځمکې اودهغو شیانوچي په مینځ ددوئ کښي دی اوخاص هم ده ته دي بیاورتلل ) یعنی هرڅه دده ترپاچاهی اودده ترحکم لاندي دی اوهم ده ته بیرته ورتلل دی وروسته الله دوئ په خاتم المرسلین باندی ایمان راوړلو ته رابولي فرمایي:

﴿ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ عَلَىٰ فَتۡرَةٖ مِّنَ ٱلرُّسُلِ ﴾ ( ای اهل کتابو په تحقیق درغلی دی تاسي ته رسول زمونږ(پیغمبرمحمد ) بیانوي تاسي ته شرعي احکام په ( وخت د ) انقطاع درسولانو (اومعطل کیدلودوحی ) کښي ) اودغه موده چي دعیسی علیه السلام اومحمد ﷺ ترمینځ فترة وو هغه پنځه سوه شپیته کاله وه هیڅ استاذی اوپیغمبرپکښي رااستول شوي نه وو ﴿ أَن تَقُولُواْ مَا جَآءَنَا مِنۢ بَشِيرٖ وَلَا نَذِيرٖ ﴾ (چي بیا چېري ونه وایئ تاسي (په قیامت کښي ) چي نه وو راغلی مونږته هیڅ زیری کونکی (په خیر) اونه ویرونکی (په شر) سره ) یعنی چي تاسوبیادادلیل ونه وایاست چي مونږته کوم پیغمبرنه وو رااستول شوي چي دخیرزیري یې راکړي اوله شرڅخه یې ویرولی وای ﴿ فَقَدۡ جَآءَكُم بَشِيرٞ وَنَذِيرٞۗ ﴾ (نوپه تحقیق راغی تاسي ته زیری درکونکی اوویرونکی ) چي محمد ﷺ دی ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ﴾ (او الله په هرشي ښه قادردی ) ابن جریروایې چي دهغه چاپه سزاورکولوچي ګناه کوي اویادهغه چا په جزاورکولوچي طاعت کوي الله قادردی بیاالله دیهودانوعناداوانکارداسی بیانوي ﴿ وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِۦ يَٰقَوۡمِ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ ﴾ ( اویادکړه (ای محمده !) هغه وخت چي وویل موسی خپل قوم ته ای قومه (زما ) یادکړئ تاسي نعمت دالله پرتاسي باندی ) ﴿ إِذۡ جَعَلَ فِيكُمۡ أَنۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكٗا ﴾ (چي وګرزول الله په تاسي کښي انبیاء اووګرزول (الله ) له تاسي نه باچهان ) یعنی الله تاسوته انبیاء رااستول چي ددین لارې چارې دروښیې اوداسی یې سوکاله اوآسوده کړئ چي لکه پاچهان ژوندکوئ هیڅوک په تاسي برلاسی نشته وروسته له هغه چي دفرعون مریان واست هغه درباندی چوپړ وهلوکله چي هغه الله غرق کړتاسوته یې نجات درکړاوله ده څخه یې وژغورلئ بیضاوي وایې په هیڅ امت کښي دومره زیات نبیان ندی را استول شوي لکه په بنی اسرائیلوکښي (١) ﴿ وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمۡ يُؤۡتِ أَحَدٗا مِّنَ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ ( اودربې کړل تاسي ته هغه چي نه یې وورکړي هیڅ یوه ته له خلګو( دزمانې ستاسي) لکه چي دوریځې سیوري دمن اوسلوی خوراک اوپه سمندرکښي لارې جوړیدل اوداسی نور ډیر انعامات اوجائزې ﴿ يَٰقَوۡمِ ٱدۡخُلُواْ ٱلۡأَرۡضَ ٱلۡمُقَدَّسَةَ ٱلَّتِي كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمۡ ﴾ ( ای قومه (زما) ننوځئ تاسي ځمکې پاکي کړي شوي (بیت المقدس ) هغه ځمکه چي الله تاسي ته مقرره کړې ده ) بیضاوي وایې چي دادبیت المقدس ځمکه ده ځکه یې سپیځلی بولی چي دانبیاوومیشت ځای اودمؤمنانومسکن وو او د ﴿ ٱلَّتِي كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمۡ ﴾ معناداچي هغه له تاسوسره وعده شوي ځمکه چي ستاسوله پلاراسرائیل سره شوي

(١) البیضاوي ص ١۴٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او تاکلی شوي وه تاسي ته به درکول کيږي ﴿ وَلَا تَرْتَدُّوا عَلَىٰٓ أَدْبَارِكُمْ فَتَنقَلِبُوا خَـٰسِرِينَ ﴾ ( او بيرته مه ځئ تاسي په شاوو خپلونوو به ګرځئ تاسي زيانکاران) يعنی تاسي ددښمنانوله ويرې شاته مه ځغلئ په تسهيل کښي وايي کله چي موسی ﷺ دوئ ته دننوتلو حکم وکړدوئ له جبابره وو ځيني وويريدل او داسي يې وپتېيله چي بيرته مصرته ستانه شي (١)﴿ قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ ﴾ ( وويل دغو(بنی اسرائيلو) ای موسی بيشکه پدې ځمکه کښي يو قوم دی ډير زورور) لوی بدنونه اوچت قامتونه لري مونږ له هغوئ سره دجنګ کولو توان نلرو دغه کسان دعاديانو دقوم پاتي شونی عمالقه وو ﴿ وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا حَتَّىٰ يَخْرُجُوا مِنْهَا ﴾ ( او بيشکه مونږ له سره نه ورننوځو په دغې ځمکې کښي ترهغې پوري چي ووزي دوئ له دغې ځمکې نه ) يعنی مونږ ترهغونه ورځو ځي هغوئ بې له جنګه پرته مونږته تسليم نکړي ﴿ فَإِن يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنَّا دَاخِلُونَ ﴾ نوکه ووزي دوئ له دی ځايه (بی له جنګه ) نو بيشکه مونږ ننوتونکي يو ﴿ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمَا ﴾ وويل دووسړيو له هغو کسانو چي ويريدل (له الله نه) چي انعام کړي وو الله په دوئ دواړو ) يعنی کله چي بی زړه شول نو دنقيبانو له ډلې دووتنو چي دالله دامرله مخالفت او عذابه ويريدل دوئ ته يې وويل ﴿ ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَـٰلِبُونَ ﴾ ( چي ورننوزئ پردوئ (حمله کونکي ) په دروازه کښي نو کله چي ورننوتئ تاسي دروازې ته نو بيشکه هم داتاسي به غالبان ياست ) يعنی دوئ ورته وويل ددې کسانو څخه مه ويريږئ بدنونه يې غټ خوزړونه يې کمزوري دی او چي دالله په حکم په دروازه ورننوتلئ په دوئ به بريالی ياست ﴿ وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوٓا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ او خاص پر الله پس توکل وکړئ تاسي اکه يئ تاسي مؤمنان (په حقه) نو الله به مرسته درسره کوي ﴿ قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّا لَن نَّدْخُلَهَآ أَبَدًا مَّا دَامُوا فِيهَا فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَـٰتِلَآ إِنَّا هَـٰهُنَا قَـٰعِدُونَ ﴾ ( وويل دغو(بنی اسرائيلو) ای موسی بيشکه چي مونږ له سره نه ننوځو دی ښارته هيڅکله څوچي وي دغه (عمالقه) پکښي پس ځه ته او(ځي دی ) رب ستانو جنګ وکړئ تاسي دواړه بيشکه مونږ دلته ناست يو ) دغه ددوئ خبره په عصيان او سرغړونه کښي افراط دی او تردي اندازې پوری سوء الادب دی چي کفرته رسيږي ځکه دا په الله او پيغمبر باندی ملنډې وهل او دهغوئ سپکاوي دی څومره ډيرفرق دی ددوئ او محمدی اصحابو رضوان الله عليهم ترمينځ هغوئ چي رسول الله ﷺ ته يې وويل : مونږ هسی نه وايو لکه بنی اسرائيلو چي ويل بلکه وايو چي لاړشه ته او رب دی جنګ وکړئ مونږ له تاسو سره جنګ کونکي ملګري يو ! ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّى لَآ أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِى وَأَخِى فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفَـٰسِقِينَ ﴾ وويل موسی ﷺ ای ربه (زما) بيشکه زه مالک نه يم (اختيار نلرم ) مګردځان خپل او دورور خپل (هارون) نو بيلتون وکړه په مينځ زمونږ او دقوم دفاسقانو کښي ( هغوی چي دفرمان له

---

(١) التسهيل ١ / ١٧٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دائرې نه وتلي دی ) یعنی پدی وخت کښي موسی ﷺ دعذر په ډول پداسی حال کښي چي دسفهاوو له کړواو ویلو څخه بیزاره وودغه خبره وکړه اودالله په عادل حکم یې دجدایي اوبیلتون غوښتنه وړاندی کړه ﴿ قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ ﴾ ( نووفرمایل (الله ) پس بیشکه دغه (مقدسه ځمکه ) حرامه کړي شوي دی پردوئ باندی (تنوتل هغې ته) څلوېښت کاله چي حیران سرګردان به ګرزي دوئ په همدي ) ځمکه کښي ) معناداچي الله ﷻ موسی ﷺ ته وویل چي ددغې سپیځلې ځمکي ته ددوئ ننوتل څلوېښت کاله پوري حرام دی ګرزي راګرزي به خولاربه نشی پیداکولای چي ووزي ﴿ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴾ نومه خپه کیږه پرقوم فاسقانو ) یعنی پردوئ باندی افسوس مه کوه ځکه چي دوئ دعذاب مستحق دی په تسهیل نومي کتاب کښي وایې چي روایت کیږي دوئ به کړی (تولـه) شپه په تګ کښي تېره کړه کله چي به ګهیځ شونوبیرته به پخپلو هغه پخوانیو ځایونو کښي وو.(۱)

بلاغت:

پدې آیتونو کښي چي دبلاغت کومي ښکلاوې شته لنډیزیې دادی :

۱ - (ان يبسطوا اليكم أيديكم) پدې کښي کنایه ده له نیولو اوهلاکولو څخه اودلاسونو(کف) منعه کول اوبندول ښیې.

۲ - (وبعثنامنهم) پدې کلام کښي دالتفات صنعت دی چي له غیبت څخه تکلم ته راغلی دظاهرمقتضا او غوښتنه خوداوه چي ویل شوي وای ( وبعث ) لیکن ددوئ شان ته دپاملرنې لپاره دالتفات صنعت راوړل شوي دی.

۳ - (ويخرجهم من الظلمات الى النور) دلته استعاره ده چي ظلمات یې له کفرڅخه اونورله ایمان څخه استعاره کړی دی.

۴ - پدې جمله کښي چي الله ﷻ فرمایې: (وجعلكم ملوكا) بلیغه تشبیه ده یعنی لکه پاچهان غوندی سوکاله ژوند ،ډاډه زړه اوپراخه روزي مو درکړي دتشبیه ادات اووجه شبه دواړه حذف شوي دی.

۵ - دطباق صنعت د (يغفر...ويعذب) ترمینځ.

۶ - اعتراضیه جمله چي وایې (انعم الله عليهما) ځوچي په نیکانوبندګانو دالله ﷻ دفضل څرګندونه وشي

فوائداوګټي:

لومړی فائده : مقدسه ځمکه یې ځکه وبلله چي دسپیځلوانبیاووهستوګنځي ووځکه مکان ته دمکین په سبب سپیځلتیاورپه برخه شوه.

دوهمه فائده : ځینی عارفانوله ځینوفقهاووڅخه وپوښتل چي دقرآنکریم په کوم ځای کښي داشته چي دوست خپل دوست نه څوروي ؟ هغه چپ شواوڅه یې ونه ویل وروسته بیاعارف ورته

---

(۱) التسهیل ۱/ ۴۷۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ولوستل (قل فلم يعذبكم بذنوبكم) نوپه آيت كښي دادليل شته چي محب خپل حبيب ته عذاب اوځورنه
وركوي داډول ابن كثيرراوړي دى.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٢٧﴾ لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٨﴾ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ ﴿٢٩﴾ فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٣٠﴾ فَبَعَثَ اللَّهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِي الْأَرْضِ لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي سَوْءَةَ أَخِيهِ قَالَ يَا وَيْلَتَىٰ أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ أَخِي فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِينَ ﴿٣١﴾ مِنْ أَجْلِ ذَٰلِكَ كَتَبْنَا عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنَّهُ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنَاتِ ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ بَعْدَ ذَٰلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ ﴿٣٢﴾ إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٣٣﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٣٤﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ وَجَاهِدُوا فِي سَبِيلِهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٣٥﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٣٦﴾ يُرِيدُونَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيمٌ ﴿٣٧﴾ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٣٨﴾ فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهِ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٣٩﴾ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤٠﴾ ﴾ المائدة: ٢٧ - ٤٠

## مناسبت اوتړاو:

كله چي الله دبنی اسرائيلو هغه سرغړونه چي دالله له امرنه يې دجبارينو دقتال په هكله وكړه يادہ كړه
وروسته يې دآدم زادودوتنوكيسه راوړه چي يويې قابيل هغه چي دالله له حكمه يې غاړه وغړوله
اوناحقه يې خپل وروروواژه كوم چي الله يې قتل ورته حرام كړي وونويهودانوګواكي په هغه پسی
اقتداء كړي هغه چي په مخكه كښي لومړني قاتل اوګنهګاروودوئ شريرطبيعت اوعصيان دآدم ﷺ له
همدي عاصی اول زوي څخه را اخيستل شوي دی نوددوئ اوهغه دواړه كيسي يو بل ته ورته والی لری په
دواړوكښي تمرد او سرغړونه نغښتی ده بياوروسته الله تعالى دلارې وهونكو، شوكونكو، غلواودواړه
مارانوهغوئ چي ددولت په امن ورخيژي ، دخلكوسراومال ته زيان رسوی هغه كسان چي دوئ په مخكه
كښي فسادا چونكي دی ددوئ سزابيانوي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لغتونه:

(قربانا) هغه څه دی چي الله ته دنږديوالی لپاره ترسره کيږي (تبوء) رجوع وکړي ته له (باء)څخه اخيستل شوي اوويل کيږي چي ( باء رحله) کله چي څوک خپل منزل ته رجوع وکړي (فطوعت)نو(ښائسته ) آسانه يې کړ (يبحث) پلټي (سوأة) عورت (شرمگاه ) (ياويلتا) دافسوس اوحيرت کلمه ده سيبويه وايي چي داهغه کلمه ده چي دهلاکت په وخت کښي ويل کيږي (ينفوا) له نفی څخه اخيستل شوي اصل يې هلاک او شړلو ته وايې او ناکاره متاع ته هم څکه (نفايه) وايي. (خزی) رسوايي اوذلت ته وايي لکه څوک چي وايي (اخزاه الله ) الله شرمولی اوسپک کړي دی (الوسيلة) هرهغه څه چي دالله لپاره يې وسيله گرځوی (نکالا) عذاب.

دنزول سبب:

انس ﷺ وايي دعرينی څخه يوه ډله خلک رسول الله ﷺ ته راغلل اوهلته په مدينه منوره کښي ناروغه شول بيارسول الله ﷺ دزکات اوښانوته ورولېږل چي شيدې اوبولې يې وڅښئ کله چي روغ شول درسول الله شپون يې ووژه اوښان (چارپايان) يې له ځانه سره بوتلل نورسول الله ﷺ ددوئ په پله پسي خلک واستول ترڅوېې ونيول اورايې وستل وروسته ددوئ لاسونه اوپښې غوڅې شوي سترگې يې ړندې اوپه حره کښي وغورځول شول ترڅومړه شول بيادا آيت نازل شو: (انما جزاء الذي يحاربون الله ورسوله...) دآيت ترپايه ([1])

تفسير:

﴿وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ٱبْنَىْ ءَادَمَ بِٱلْحَقِّ﴾ ( اوولوله ( ای محمده ! ) په دغونبی اسرائيلو ) خبرددواړو ځامنو د آدم ( چي هابيل اوقابيل وو ) په حقه سره ) يعنی ای محمده !دغوکينه گرويهودانو اوامثالوته يې دآدم ددووزامنو(چي هابيل اوقابيل) ووکيسه ورپه يادکړه هغه کيسه چي حق اوربښتوني ده ﴿إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ ٱلْءَاخَرِ﴾ کله چي نږدې کړه دواړو قرباني نوقبول کړشوله يوه ددوئ نه (چي هابيل وو ) اوقبوله نشوه له بله ( چي قابيل وو ) مفسرين کرام وايي چي سبب ددغې قرباني داووچي دآدم ﷺ به له حواء څخه هر واريوزوئ اويوه لورپيدا کيدله اوبل ځل به بيايوزوي اولورپيدا کيدله نوبه يې دلومړي ځل لورددوهم ځل هلک ته اوددوهم ځل لور دلومړی ځل هلک په نکاح کوله نوکله چي آدم ﷺ ددي اراده وکړه چي د(قابيل )خور(هابيل ) ته په نکاح کړي (قابيل ) ونه منله څکه خوريې د هابيل ترخورښايسته وه نوآدم ﷺ ورته وويل تاسي دواړه قرباني وکړئ دهرچاچي قرباني ومنله شوه هغه به يې په نکاح کوي ، (قابيل ) دکښت اوکروندې خاوندوو( هابيل) رمې درلودی نو(قابيل) ناکاره دغنموبرخه اوهابيل ښه چاغ پسه دقربانی دگرته وړاندی کړهغه ووچي د(هابيل) قربانی قبوله شوه اور راښکته شواوهغه يې وسوځوله نودقابيل قهراوغضب لازيات شواوهابيل ته يې دوژلو اخطارورکړ

---

([1]) القرطبی ۱۴۸/۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



داسي چې ؟(١) ﴿ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ ﴾ (وويل (قابيل) چي خامخابه ووژنم تاهرومرو( اى هابيله) هغه ورته وويل ولى ؟ قابيل ورته زياته كره پدې چې ستا قرباني قبوله شوه اوزما قبوله نشوه ها بيل ورته وويل په دى كښي زماڅه ګناه ؟ ﴿ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ ٱللَّهُ مِنَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ وويل (هابيل قابيل ته ) چي بيشكه هم داخبره ده چي قبلوي (الله ) قرباني له پرهيزګارانو ) دچاچي نيت خالص وى بيضاوي وايې دوژلوتهديديې ځكه وركړچي دهغه قرباني قبوله شوى وه نودده كينه لازياته شوه اوهابيل خواب وركړچي داخوستاله خپله لاسه ده زماپكښي څه قصوردى ته تقوى نلرى اوپدې كښي دااشاره هم شته چي طاعت له متقى مؤمن څخه پرته له بل چاڅخه نه قبليږي (٢) ﴿ لَئِنۢ بَسَطتَ إِلَىَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِى مَآ أَنَا۠ بِبَاسِطٍ يَدِىَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ ﴾ قسم دى خامخاكه دې راوغځاووتا( اى قابيله ) لاس خپل ماته دپاره ددې چي ووژنى ما نو نه يم زه غځونكي دلاس خپل تاته چي ووژنم تا ) ابن عباس ﷺ وايې چي معناداچي زه به دخپل ځان مرسته ونكړم ﴿ إِنِّىٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (بيشكه زه ويريږم له الله چي رب (پالونكي ) دګردوعالميانودى ) يعنى زه لاس ددې لپاره نه درغځوم چي له رب العالمين الله نه ويريږم زمخشري وايې چي (هابيل ) تر(قابيل ) قوى وخودالله له ويرې څخه يې دوررله وژلوډډه وكړه (١) ﴿ إِنِّىٓ أُرِيدُ أَن تَبُوٓأَ بِإِثْمِى وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلنَّارِ ﴾ په تحقيق زه اراده لرم چي رجوع وكړي (اخته شي ) ته په ګناه ( دوژلو ) زمااوګناه خپلى نوشي به ته له ملګرودااورددوزخ ) ابوحيان وايې چي معنايې داده كه دتقديرهم دافيصله وى چي زه دى ووژل شم نوزماداغوره ده چي په مظلوم والى كښي الله راسره مرسته وكړي نه دظالم توب په حالت كښي اوابن عباس ﷺ وايې چي معناداچي زه ستاپه وژلوپيل نه كوم ترڅوته زمادقتل په ګناه اخته شي اوهمدارنګه زماترقتل پخوانى ستاخپله ګناه به هم ستاپه غاړه وي نوته به ددوزخيانوله ډلې څخه شى ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُا۟ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوهمدا(اور) دى جزاء دظالمانو(چي په ناحقه وينى تويوي ) دالله دامر عصيان اوسرغړونه كوي ﴿ فَطَوَّعَتْ لَهُۥ نَفْسُهُۥ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُۥ فَأَصْبَحَ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ (نوښايسته كړدغه (قابيل ) ته (اماره ) نفس دده وژل دوروردده (چي هابيل وو) بياوواژه دغه قابيل ) دغه هابيل) نووګرځيد(قابيل ) له زيانكارانو ) ابن عباس ﷺ وايې چي هابيل هغه په اور وبيرول خوهغه ونه منل ﴿ فَبَعَثَ ٱللَّهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِى ٱلْأَرْضِ لِيُرِيَهُۥ كَيْفَ يُوَٰرِى سَوْءَةَ أَخِيهِ ﴾ نووليږه الله (يو كارغه چي كورغالى يې كاووپه ځمكه كښي په منبوكه اوپنجو خپلوسره) لپاره ددې چي وښيې دغه (قابيل ته ) چي څرنګه پټه كړي جثه دورورخپل ) مجاهدوايې الله ﷻ دوه كارغان راواستول چي يوله بله سره په جګړه شول ترڅويې يوووژه بيايې دهغه دخښولولپاره ځمكه وكيندله اوهغه يې خښ كړاوهابيل دآدم ﷺ لومړي وژل شوى زوي وواوروايت شوي چي كله يې ووژل نوپه بيدياكښى يې پريښوونه پوهيدوڅرنګه يې پټ كړي څويې كارغه وليدچي خپل

---

(١) الكشاف١/ ۴۸۳

والقرطبى٦/ ۱۴۲ (٢)البيضاوي ۱۴۹

(٣) الكشاف١/ ۴۸۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ملګري پټوی نوبې داسی وویل: ﴿ قَالَ يَـٰوَيْلَتَىٰٓ أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَـٰذَا ٱلْغُرَابِ فَأُوَٰرِىَ سَوْءَةَ أَخِى ﴾ (وویل (قابیل ) ای افسوسه زماراشه دغه دې وخت دی آیاعاجزوم زه له دې نه چې کیدی په شان ددې کارغه (په پوهه کنبې ) نوپټه کړې په مې وه جثه دورورخپل ) په خاوروکنبې په شان دهمدې کارغه ؟

﴿ فَأَصْبَحَ مِنَ ٱلنَّـٰدِمِينَ ﴾ نووګرځید(قابیل پدې نه پوهیدلو په دفن )له پښیمانې کونکوڅخه ) نه له قتلولودورورڅخه ابن عباس ﷺ وایې که چیرې یې پښیمانې له وژلوڅخه وای نودابه دده لپاره توبه وه

(¹)﴿ مِنْ أَجْلِ ذَٰلِكَ كَتَبْنَا عَلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ أَنَّهُۥ مَن قَتَلَ نَفْسًۢا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (په سبب ددې (قتل ) لیکلی وو( حکم کړې وو ) مونږ پربنی اسرائیلوچې بیشکه شان دادی هرڅوک چې ووژنی یونفس بی له (عوض بدل د ) بل نفس نه یابی له فساده په ځمکه کنبې ) یعنی په سبب ددغې پیښې دقابیل اوهابیل اوظلم دقابیل پخپل وروربانډی مونږ پربنی اسرائیلوحکم کړې ووچې ددوئ نه یوڅوک کوم تن مظلوم ووژنی نه دقصاص په تور اونه هم په بل فساد ) ردت اویاقطع طریق له وجهې نه ﴿ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ ٱلنَّاسَ جَمِيعًا ﴾ نوګواکې وژلی یې دې خلګ ټول ،بیضاوې له یوحدیث څخه په روایت وایې چې ځکه هغه دوینودحرمت هتک (پرده درې ) وکړه اودوژلولاره یې جوړه کړه خلګ یې په وژلو روږدې اوزړورکړل اومقصدله دې نه دنفس دوژلوتعظیم اوپه زړونوکنبې یې سترتوب راژوندی کول دی ترڅو په یوچاتعدی اوتعرض ونکړل شی لکه چې ددې خبرې ترغیب هم دی چې دیونفس بایدساتنه اوپالنه وشې (²)﴿ وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَآ أَحْيَا ٱلنَّاسَ جَمِيعًا ﴾ اوهرچاچې ژوندی کړودغه یونفس (چې سبب دژوندون یې شې ) نوګواکې ژوندی کړی یې دی خلګ ټول ابن عباس ﷺ ددې آیت په تفسیرکنبې وایې: چاچې یوتن چې الله یې وژل حرام کړې وی وواژه داسی مثال لرې لکه چې ټول خلګ یې وژلی وی اوچاچې یوتن له هلاکت څخه وژغوره اوله وژلویې ممانعت وکړاوحرمت یې دالله له ویرې وساته هغه بیاداسی دی لکه چې ټول خلګ یې ژوندې کړې وې (³)﴿ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِٱلْبَيِّنَـٰتِ ﴾ اوخامخاپه تحقیق راغلی وودوئ ته رسولان زمونږ په حکمونوښکاره ) یعنی وروسته له دې چې په بنی اسرائیلومو ددغه سترتشدیدحکم کړې وواوزمونږ استازې په ځرګندونښانواوښکاره معجزاتوورته راغلی وو ﴿ ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم بَعْدَ ذَٰلِكَ فِى ٱلْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ ﴾ (بیاپه تحقیق سره ډیرله دوئ نه پس له دی دراتلود رسولانوهم) په ځمکه کنبې خامخاله حده تېریدونکې وې ) یعنی له دې ټولوویرونکوتهدیدونوسره سره بیاهم دوئ دوژلوپروانکوې ابن کثیروایې ددوئ لپاره په محرماتودعلم سره سره دارتکاب په هکله توبیخ دی اوامام رازې وایې چې: یهودانوسره له دې ستري مبالغې بیاهم دانبیاوو اوپیغمبرانو په وژلواقدام وکړاودابدې دلالت کوې چې ددوئ زړونه خوراسخت اودالله له طاعت نه بیخې لیرې وواوځرنګه چې ددې کیسوله یادولوڅخه مقصد درسول الله ﷺ دادینه وه

---

(¹) البیضاوی ۱۵۱
(²) مختصر ابن کثیر ۱/ ۵۰۹
(³) التفسیر الکبیر ۱۱/ ۲۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خكه دوئ په رسول الله ﷺ او اصحابانو باندې دوژونكي حملې عزم كړي وو نو دبني اسرائيلو تخصيص پدې ستړې مبالغې سره له كلام سره مناسب اودمقصودتائيددى (١) بيا الله تعالى دلارې شوكونكوجزاداسي بيانوي: ﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ بيشكه همداخبره ده چې جزادهغوكسانوچې جنگ كوي دوئ له شريعت دين او دوستانو دالله اودرسول دده سره ﴿ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا ﴾ اومنډې وهې په مځكه كښې لپاره دفساد (اوبد امنې وينې توييولو ) ﴿أَن يُقَتَّلُوٓا۟ ﴾ چې دوئ ووژلى شي (ددوئ دبغى په سبب ) ﴿ أَوْ يُصَلَّبُوٓا۟ ﴾ يعنى ووژل شى (اوپه داركړل شي ) صيغه دتكثيرلپاره ده چې دنورولپاره زجرڅرگندشي ﴿ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ ﴾ يادى پرې كړل شي لاسونه اوپښې ددوئ سره مخالفې ( ښي لاسونه اوكيڼې پښې ) ﴿ أَوْ يُنفَوْا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ﴾ يادى وشړلى شي له ځمكې (له يوه ښارنه بل ته (٢)) ﴿ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْىٌ فِى ٱلدُّنْيَا ﴾ دا(مذكوره جزاء دغو(غلوته ) رسوايي ده په دنياكښې ﴿ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ او(شته ) دغو(غلوته ) په آخرت كښې عذاب ډيرلوي (چې داورعذاب دى ) ځينوعلماوويلي دي چې دوخت حاكم اختيارلري كه يې وژني اوكه يې په داركوي اوكه يې خوښه وي لاس اوپښې دي ورغوڅې كړي اوكه يې غوښتل له ښارنه دى وشړي اودغه دامام مالك رحمه الله مذهب دى ابن عباس رضي الله عنه وايي ! ددغومحاربينودعمل سره سمه سزاگوښې گوښې ده كه چاوژل كړي وو ، وژل كيږي اوچې هم يې مرگ كړي وى اوهم يې مال وړي وى وژل كيږي اوله وژلووروسته په دارځړول كيږي اوچاچې يوازې مال وړي وي نولاس اوپښه دى مخالفې پرې كړل شي اوچې نه يې وژل كړي وي اونه يې مال وړى وى يوازې يې خلگ ترهولي اوويرولي دى هغه دى نفى ( وشړل شي ) اودغه دجمهوروعلماووقول هم دى ( ) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا۟ عَلَيْهِمْ ﴾ (مگرهغه كسان چې توبه وباسى پخوا له هغه چې قادرشئ تاسى په هغوي باندى يعنى هغه لارى وهونكى ستاسو تر برلاسى له مخه توبه وباسى ﴿ فَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ نوپوه شئ چې بيشكه الله ښه مغفرت كونكي ډيررحم والادى (ځوك چې له گناه وروسته توبه وباسى توبه يې مني اوگناه يې ښښي ) وروسته بيا الله تعالى مؤمنانوته دتقوى اونيك عمل دكولوامركوي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱبْتَغُوٓا۟ إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ ﴾ اى هغوكسانوچې ايمان يې راوړى دى ( اى مؤمنانو ) وويريږئ تاسي له الله اوطلب كړئ ده ته وسيله (په طاعت اوعبادت سره ) قتادة وايي: الله ته نژدې شئ په طاعت اوهغه عمل سره چې دالله خوښ وى ﴿ وَجَٰهِدُوا۟ فِى سَبِيلِهِۦ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ اوجهادوكړئ په لاره دده كښې (لپاره داعلاء كلمة الله) لپاره ددى چې په مرادورسيږي (اودتل ترتله نعمت خاوندان شئ ) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ

---

(١)امام شافعى وايي چې له يوښارنه بل ته دى وشړي اودنيولولته دى كوي ترڅوهغه په تيښته وى ابو حنيفه يې بندي كيدل بولى ابن جريروايي چې مراديې شړل اوبندي كول دى.

٢ الفخرالرازي ١١/ ٢١٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كَفَرُوا۟ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُۥ مَعَهُۥ ﴾ بيشكه هغه كسان چي كافران شوي دى كه وى دوئ ته هغه (اموال ) چي په ځمكه كښي دي ټول اوپه اندازه ددى نورهم ) له دى سره شي ﴿ لِيَفْتَدُوا۟ بِهِۦ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ دپاره ددى چي فديه كړي دوئ په هغه سره له عذابه دورځي دقيامت څخه نوقبوله به نكړه شى (دافديه ) له دوئ څخه اوشته دوئ ته عذاب ډير دردناك .

﴿ يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُوا۟ مِنَ ٱلنَّارِ وَمَا هُم بِخَـٰرِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴾ غواړى به دوئ چي ووزي دوئ له اوره (ددوزخ ) حال داچي نه به وي دوئ وتونكي له هغه اوره اوشته دوئ ته عذاب دائم (تل ترتله ) په حديث شريف كښي راځي: دقيامت په ورځ به كافرراوستل شي اوداسى به(دالله له لوري ) ورته وويل شي آياكه دى دادمځكې ټول مالونه درلودي هغه به دى ددي ورځې لپاره قرباني كړى واى ؟ هغه به وايې هو(بالكل به مي كړي واى) بيابه ورته وويل شي بيشكه له تاڅخه ترددي ډيرآسانه څه غوښتل شوي ووچي له ماسره شريك مه نيسه خوتاونه منل اوبياورته داور(په لور) لويدلوامرورکول شي([1]) ورپسى الله ﷻ دغله جزاداسې بيانوي: ﴿ وَٱلسَّارِقُ وَٱلسَّارِقَةُ فَٱقْطَعُوٓا۟ أَيْدِيَهُمَا ﴾ اوغل(نارينه ) اوغله ( ښځه ) نوپريكړئ تاسي لاسونه ددوئ دواړو ﴿ جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا ﴾ لپاره دجزاء دهغه (قبيح عمل ) چي كړى دى دوئ دواړو ﴿ نَكَـٰلًا مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ عذاب ( له جانبه د )الله ﴿ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ اوالله ډيرقوى ښه حكمت والادى (په ظلم سره دچادلاس پريكولوحكم نه كوي ﴿ فَمَن تَابَ مِنۢ بَعْدِ ظُلْمِهِۦ ﴾ نوهرچاچي توبه وايسته ( له غلاراوگرزيده ) ﴿ وَأَصْلَحَ ﴾ اوښه يې كړ(عمل خپل ) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ﴾ پس بيشكه الله يې توبه منى (په آخرت كښي عذاب نه وركوى ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بيشكه الله ډيرمغفرت والادى د(گناهونو ) ښه مهربان دى (په انعام داجراوثواب سره) ﴿ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ آيانه پوهيږي ( اى مخاطبه ) چي بيشكه الله لره دآسمانونواوځمكې ملكوت اوپاچهي ده دلته استفهام دتقريرلپاره دى ﴿ يُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ په عذابوي (الله) هرهغه څوك چي اراده وفرمايې (دعذاب يې ) اومغفرت كوى هرهغه چاته چي اراده وفرمايې (دمغفرت يې ) اوالله پرهرشي باندى ښه قادردى ( هيڅ شي يې مغلوب كولاى نشي ) .

**بلاغت:**

١ – طباق صنعت لكه په (قتل ...واحيا) او(يعذب ...يغفر) كلماتوكښي .

٢ – مجازلكه پدې كلام كښي چي : (يحاربون الله) دادمضاف په حذف سره راغلى ځكه له الله سره خوجنگ نشي كيداى اوتقديريې داسى دى چي ( يحاربون اوليآء الله ) .

٣ – استعاره لكه چي پدې قول كښي راځي : (ومن احياها) ځكه مقصددهغه پرېښودل اونه وژل دى اوژوندى كول وروسته له مرګه خويوازي دالله ﷻ په قدرت كښى ده بنده دغه توان نلري .

---

[1] أخرجه البخاري في كتاب الرقاب.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۴ - تمثیل چې پدی کلام کښې راځي: (ولو ان لهم مافي الارض جميعاومثله ليفتدوا به) زمخشري وایې چې پدی کښې دعذاب دلزوم تمثیل نغښتی دی یعنی په هیڅ شکل له اشکالوهم دوئ څنې نجات نشی موندلای (۱).

۵ - دسلبی طباق صنعت چې فرمایې: (لئن بسطت ... ما انا بباسط يدي) .

## فوائد اوګټې:

لومړی فائده: نفی له مخکې لکه څرنګه چې په شړلوترسره کیږي همداسی په بند محکومولو کښې هم راځي اودغه سبب دی چې امام مالک رحمه الله فرمایې: نفی معنابندی کول څکه هغه له پراخی دنیاڅخه یوې تنګې اومحدودې څیلخانې ته شړل دی.

دوهمه فائده: د(سارق) تر(سارقة) په ړومبی راوړلوکښې اود(زانية)تر(زاني) په ړومبی راوړلو کښې دارازپروت دی چې نارینه په غلاکولوکښې زړه وروي اوزناله ښځوڅخه خورابده اوشنیع وی نودهریوه یادونه یې په مناسب ځای کښې وکړه.[۲]

دریمه فائده: اصمعی وایې یوه ورځ می دغه آیت (والسارق والسارقة) لوستل اوترڅنګ می یواعرابی ناست وو ماسهوا داسی ختم کړچې: (والله غفور رحيم) اعرابی راته وویل داخه ډول کلام دی؟ ماورته وویل هودالله ﷻ کلام دی ده وویل دالله کلام هسی نه وی پوښتنه می څینی وکړه چې ستاقرآن زده دی لولی یې؟! ویل یې نه! راته ویې ویل چې بیایې ولوله ماچې راوګرزول متوجه شوم اوداسی می ولوست: (والله عزيز حكيم) نوویل یې همداسی دالله کلام دی ماورته وویل ته چې قرآن نشی لوستلای څرنګه وپوهیدی چې ماخطا تلاوت کړ؟! ویل یې عجیبه خبره کوی! دعزت اوغلبې خاونددی چې حکم یې وکړلاس دی غوڅ شي که چیری یې مغفرت اورحم فرمایلی وای نوبه لاس نه غوڅیدو (۲)

څلورمه فائده: څینی ملحدینو دالله په شریعت انتقادکړی دی چې ولی دغله لاس په لږڅه باندی پری کیږي په داسی حال کی چې دیت یې خورازیات دی؟ دحکمت خاوندانو علماوو ځواب ورکړی چې کله لاس امین وی هرڅو ارزی اوچې کله خائن شی بیاذلیل اوسپک خوار شی.

دغله دلاس پریکولو په هکله یوه لنډه خبره:

څینې لویدیزوال داسلامي شریعت پدې حکم چې دغله لاس باید غوڅ شي انتقاداوګوت نیونه کوي اوداسې ګومان کوي چې داهسې سخت عذاب له مدنې ټولنې سره سم نه دی اووایې چې په بندي خانه سزا ورکول کفایت کوي اوددغې فلسفې چې په هیڅ سلیم منطق باندی بناء نه وه پایله داښیې چې ورځ په ورځ جرائم زیات شول دداړه اچونکې مخنیوی نه کیږي بندیخانې په مجرمینو اولارې وهونکو (قطاع الطرق) خلکو باندی ډکې دی هغوئ امنیت ته ګواښ دی داستقرار دښمنان دی څکه کله چې غلاکوي له هیچانه ویریږي پدې بیغمه وی که بندی هم شي خوهلته به خوري اوڅښي جامې به ورکول کیږي اودوضعی قانون تاکلی موده چې تېره کړی بیابه بهرته داسی راوزی چې دجرم لپاره به

(۱) الکشاف ۱/ ۴۸۸

(۲) الفخرالرازی ۱۱/ ۲۱۲

Bawar.net
Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ډېرزړوراوډشرلپاره به پیاوړي شوي وی دغه خبره هغه څه چي مونږ یې لولواویایې اوروتأئیدوي اوهره ورځ دغه ناورین لاپسې زیاتیږي همدغه دبشري کوتاه عقل دعلاج هغه لاره ده چي دداسې یوې ستري ناروغۍ لپاره یې غوره کړي مګرداسلام مقدس دین وکړای شول چي شرله بیخه وباسي ، دیولاس پرې کول دټولومجرمینواوغلولپاره عبرت دی چي څوک بیادغسې اقدام هیڅکله نه کوي . هو ! څومره له حکمته ډکه تشریع اوتګلاره ده.

اللّٰه تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ لَا يَحْزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلْكُفْرِ مِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِأَفْوَٰهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ ۛ وَمِنَ ٱلَّذِينَ هَادُواْ ۛ سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ سَمَّٰعُونَ لِقَوْمٍ ءَاخَرِينَ لَمْ يَأْتُوكَ ۖ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ مِنۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهِۦ ۖ يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا فَخُذُوهُ وَإِن لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَٱحْذَرُواْ ۚ وَمَن يُرِدِ ٱللَّهُ فِتْنَتَهُۥ فَلَن تَمْلِكَ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ۚ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَمْ يُرِدِ ٱللَّهُ أَن يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ ۚ لَهُمْ فِي ٱلدُّنْيَا خِزْيٌ ۖ وَلَهُمْ فِي ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٤١﴾ سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ۚ فَإِن جَآءُوكَ فَٱحْكُم بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ۖ وَإِن تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيْـًٔا ۖ وَإِنْ حَكَمْتَ فَٱحْكُم بَيْنَهُم بِٱلْقِسْطِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴿٤٢﴾ وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِندَهُمُ ٱلتَّوْرَىٰةُ فِيهَا حُكْمُ ٱللَّهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٣﴾ إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُواْ لِلَّذِينَ هَادُواْ وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ بِمَا ٱسْتُحْفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ وَكَانُواْ عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُاْ ٱلنَّاسَ وَٱخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُواْ بِـَٔايَٰتِي ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴿٤٤﴾ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ أَنَّ ٱلنَّفْسَ بِٱلنَّفْسِ وَٱلْعَيْنَ بِٱلْعَيْنِ وَٱلْأَنفَ بِٱلْأَنفِ وَٱلْأُذُنَ بِٱلْأُذُنِ وَٱلسِّنَّ بِٱلسِّنِّ وَٱلْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِۦ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُۥ ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٤٥﴾ وَقَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم بِعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ ۖ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٦﴾ وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ ٱلْإِنجِيلِ بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فِيهِ ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴿٤٧﴾ وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ ۖ فَٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ ٱلْحَقِّ ۚ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَآ ءَاتَىٰكُمْ ۖ فَٱسْتَبِقُواْ ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٤٨﴾ وَأَنِ ٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ وَٱحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُصِيبَهُم بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ لَفَٰسِقُونَ ﴿٤٩﴾ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴾

المائدة: ٤١ – ٥٠

Bawar.net



## مناسبت اوتړاو:

کله چې الله دبنی آدم کیسه یاده کړه اوداچې یوه وروړله بل وروړسره کینه وکړه اوهغه یې وواژه نووروسته یې بیادغلا، چورچپاول اوتاړاک حکمونه بیان کړل وروسته یې دمنافقینواویهودانوهغه کینه چې له رسول الله ﷺ سره یې درلوده راوړه اوهغه ددوئ دبدوپیښواوحوادثوانتظارچې دپیغمبرﷺ اواصحابانورضی الله عنهم په هکله یې درلود ذکرکړ اورسول الله ﷺ ته یې امروفرمایه چې دانسانیت ددښمنانوله خوا په تکالیفولیدلو دی نه خواشینی کیږي الله ﷺ یې ددوئ له شرڅخه ژغوری اوددوئ له دوکوڅخه یې ساتی اوبیا الله تعالی دتورات نورانی احکام چې ددوئ شریعت وو بیان کړل.

## لغتونه:

(یحزنک) (حزن ) او(حَزَن) دواړه دخوښحالي ضداوخفګان په معنی دی (السحت) حرام څیزته وایې په دی ونومول شوڅکه دوئ طاعات له مینځه وړي اود(سحت) اصل هم هلاکت اوله بیخه ایستل دی الله فرمایې (فیسحتکم بعذاب) یعنی هلاک به کړی تاسي په عذاب سره (الاحبار) له (تحبیر ) څخه اخیستل شوي اوتحسین ته وایې مرادځینی علماء دی (وقفینا) وروسته واستاوومونږ(مهیمنا) مهیمن (څارونکي ) اوساتونکي له ( هیمن ) څخه اخیستل شوي اوڅارنې ته وایې اوپه یوشی باندی دلوړاوچت په معناهم دی. (شرعة) تګلاره (منهاجا) روښانه اوڅرګنده لاره.

## دنزول سبب:

براء بن عازب وایې چې یوه ورځ درسول الله ﷺ په وړاندی یویهودی راوستل شوچې مخ یې ورتورکړي وواوپه درو یې واهورسول الله ﷺ دوئ راوغوښتل ورته ویل یې آیاستاسوپه کتاب کښي دزانی لپاره هم داحد ټاکل شوي دی دوئ ویل هونوبې ددوئ له علماووڅخه یوڅوک راوباله اوورته ویل یې په الله ﷺ قسم درکوم هغه چې په موسی یې تورات نازل کړی آیاستاسوپه کتاب کښي دزانی لپاره هم دغه حددی هغه ویل نه اوکه چیری دی لوړه نه وای راکړی دغه حال به می نه څرګنداوو زمونږ په کتاب کښي دزانی (محصن ) لپاره رجم حددی خوزنازمونږ په اشرافو کښي ډیره رواج شوه نوکله چې به شریف په زناتورن شومونږ به پریښود اوکه به غریب اوبیوزله زناوکړه مونږ به حدورباندی جاری کاووبیامود افیصله وکړه چې یوداسی منځنی حدوټاکوچې په ټولو دتطبیق وړوي اودامودمخ په تورولواودرو وهلوبدل کړنورسول الله ﷺ وفرمایل: ( اللهم انی أول من أحیا أمرک اذ اماتوه ) الهی زه لومړنی څوک یم چې ستاهغه حکم چې دوئ وژلی وومابیرته ژوندی کړ) اوبیایې وړباندی امروکړاوپه رجم یې محکوم کړنوالله داآیت نازل کړ(یاایهاالرسول لایحزنک الذین یسارعون في الکفر)تردې پوری چې: (ان اوتیتم هذا فخذوه) دوئ به ویل چې محمدته ورشئ که یې دمخ په تورولواودرووهلوحکم درته وکړویې منئ اوکه یې په رجم کول درته حکم وکړ نومه یې منئ.(١)

---

(١) رواه مسلم.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تفسیر:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ لَا يَحْزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَـٰرِعُونَ فِى ٱلْكُفْرِ ﴾ ای (زما) رسوله (محمده !) په غم کښې دې نه اچوي تا (فعل د) هغوکسانوچې تلوارکوي (اوعناداً ځانونه غورځوی) په کفرکښې خطاب رسول الله ته دتسلیت په ډول دی ﴿ مِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِأَفْوَٰهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ ﴾ (له هغوکسانوچې ویل دوئ ایمان راوړي دی مونږ(تش) په خولوخپلوحال داچې ایمان نه وواوړي زړونو ددوئ) یعنی هغه منافقین چې ایمان یې له خولې څخه زړونو ددوئ ته تجاوزنه ووکړي ﴿ وَمِنَ ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ ﴾ (او ځینی له هغوکسانوچې یهودان دی ﴿ سَمَّـٰعُونَ لِلْكَذِبِ ﴾ ډیراوریدونکي دی (داباطیلواومنلو دافترا ګانوداحبارو)دپاره ددروغوویلو(په الله اوتحریف دکتاب دده)﴿ سَمَّـٰعُونَ لِقَوْمٍ ءَاخَرِينَ لَمْ يَأْتُوكَ ﴾ ډیراوریدونکي (منونکي) دی قوم بل ته چې نه دی راغلی تاته (دتکبر) دښمني اوبغض له کبله چې دخیبریهودیان ووا(سماعون للکذب) دبنی قریضه یهودوو ﴿ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ مِنۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهِۦ ﴾ اړوي دوئ کلمې د(تورات) وروسته له هغوځایونوخپلوڅخه (چې الله ایښي دي) اومراددالله داحکاموپه نورواحکاموباندي تحریف اوتغییردی ابن عباس ﷺ وایې چې داپه تورات کښي دالله حدوددی چې رجم یې په درووهلواومخ تورولواړولی وو﴿ يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَـٰذَا فَخُذُوهُ وَإِن لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَٱحْذَرُوا۟ ﴾ (اووایې دغه یهودان خپلواستازیوته)که درکړي شي تاسي ته دا (محرف حکم) نووایې خلئ اوکه چیري درنکړی شوتاسي ته داحکم نوووېرېږئ تاسي (له منلوېې) یعنی که محمد دجلد(په درووهلو) حکم درکړ وېې منئ اوکه رجم وو مه یې منئ الله ددوئ په ردکښي وفرمایل:

﴿ وَمَن يُرِدِ ٱللَّهُ فِتْنَتَهُۥ فَلَن تَمْلِكَ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ﴾ اوهرهغه څوک چې اراده وکړي الله دفتنې دده (ګمراه کول یې) نوله سره به مالک نشی ته (ای محمده) دده لپاره له الله نه دهیڅ شي (چې فتنه اوهلاک تري دفع کړي)! یعنی هیڅوک ددی توان نلري چې دده کفراوضلالت دفع کړي ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَمْ يُرِدِ ٱللَّهُ أَن يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ ﴾ دغه (یهودان اومنافقان) همغه کسان دی چې اراده نه ده فرمایلی الله چې پاک کړي زړونه ددوئ (له کفرضلالت نه) دددوئ دبدوکارونوله کبله ﴿ لَهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا خِزْىٌ ﴾ (شته) دوئ ته په دنیاکښي ذلت (وَلَهُمْ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ) اوشته دوئ ته په آخرت کښي عذاب ډیرلوي (ددوزخ په اورکښي) ابوحیان وایې چې آیت شریف درسول الله ﷺ دډاډیني لپاره راغلی چې له ده څخه هغه خواشینې سپکه کړي کومه چې :(دغه یهودان اومنافقان) به کفرته په منډه ورتلل اوبل داچې ورته وښیې چې ددوئ له فلاح اونجات څخه دی تمه وشکوي (۱)﴿ سَمَّـٰعُونَ لِلْكَذِبِ ﴾ ډیر اوریدونکي دي

---

(۱) البحر ۳ / ۴۸۸.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لپاره ددروغ ويلو (دغه يې دتاكيد او تفخيم لپاره مكرر راوور) ﴿ أَكَّٰلُونَ لِلسُّحۡتِ ﴾ ډير خوړونكي د
دحرامو (چي رشوت ، سود او يا نور دغسي شيان دي ) ﴿ فَإِن جَآءُوكَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُمۡ أَوۡ أَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ ﴾ نو ك
راغلل دوئ تاته نو پريكړه وكړه په مينځ ددوئ كښي يا مخ وګرزوه له دوئ نه (ته مختاره يې كه حكم كو
او كه ځينى مخ اړوي) ابن كثير وايې چي معنايې داده : كه دوئ تاته دفيصلې لپاره راغلل په تا باند
حتمى نه ده چي دوئ ته حكم واوروي ځكه دوئ دغه فيصله دحق دپيروى لپاره نه غواړي بلكه داس
فيصله غواړي چي ددوئ له خواهشاتو سره برابره وي (١) ﴿ وَإِن تُعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيۡـٔٗاۖ ﴾ او ك
مخ وګرزوي له دوئ نه ( او حكم ونكړي ) نو له سره به ضرر و نه رسوي دوئ تاته دهيڅ شي (ځكه الله د
ساتونكي او دخلګو له شر ځخه ژغورونكي دى.) ﴿ وَإِنۡ حَكَمۡتَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِٱلۡقِسۡطِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ
ٱلۡمُقۡسِطِينَ ﴾ او كه حكم (پريكړه ) دي كوله نو حكم (پريكړه ) كوه ددوئ په مينځ كښي په عدل سره ) ك
څه هم دوئ ظالمان او دحق له لاري څخه وتلى او ګمراهان وى ځكه بيشكه الله عادلان خوښوي (په حك
كښي چي دوئ ته ثواب وركوي) .وروسته الله تعالى ددوئ هغه دتورات له حكمو نو څخه مخالفت غند
او داسي فرمايي: ﴿ وَكَيۡفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِندَهُمُ ٱلتَّوۡرَىٰةُ فِيهَا حُكۡمُ ٱللَّهِ ﴾ ( او څرنګه به حكم ( منصف ) وګرځو
تا ( اى محمده ) حال دا چي په نزدددوئ تورات دى چي شته په هغه كښي حكم د الله ) يعنى اى محمد
دوئ به څنګه تا ( منصف ) كړى او حكم به دى ومنى حال دا چي ددوئ په وړاندي دتورات (آسمانى
كتاب دى هلته دالله حكم شته خودوئ وربا ندى عمل نه كوى امام رازى وايې چي دغه دالله له جانب
پيغمبر ته تعجب وركول دى چي څرنګه به يهود تا حكم وټاكى سره له دى چي په تورات كښي دزانى پ
حد باندى علم لرى او بيا دغه حكم نه منى نو دوئ له هغه حكمه چي عقيده يې ده دا حق ده ګرزيدلى هغ
حكم ته چي هغه دباطل په عقيده ګنى او دا رخصت بولي نو پدى باندى ددوئ دجهل او عناد څرګندو
كيږي (٢) ﴿ ثُمَّ يَتَوَلَّوۡنَ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَۚ ﴾ بيا ګرځى دوئ ( له هغه حكم ستا څخه ) پس له هغه ( چي دو
ته حق څرګند شو او ددوئ له كتابه سره موافق وو ﴿ وَمَآ أُوْلَـٰٓئِكَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ او نه دي دغه كسان باو
كونكي ) ځكه دوئ پخپل كتاب تورات ايمان نلري چي ستاله حكمه پداسي حال كښي چي ددوئ ل
كتاب سره موافق دي اعراض كوي په تسهيل نومي كتاب كښي وايې چي دغه ددوئ لپاره الزام دى
ځكه څوك چي دالله له كتاب څخه مخالفت كوي او بيا دعوى لري چي مسلمان دى دغه دعوه يې باطله د
(٣) الله تعالى دتورات صفت داسى څرګندوى چي: ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَا ٱلتَّوۡرَىٰةَ فِيهَا هُدٗى وَنُورٞۚ ﴾ بيشكه مونږ نازل
كړى دي تورات چي (شته په هغه كښي هدايت (لارښوونه حق ته ) او رڼاده ,چي شرعى احكام ورباندى
څرګنديږي او څوك په اشتباه كښي نه پريږدى ﴿ يَحۡكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسۡلَمُواْ ﴾ حكم به كاوه په هغه

---

(١) مختصر ابن كثير ١/ ٥١٩.
٢- الفخر الرازى ١١ / ٢٣
٣- التسهيل لعلوم التنزيل ١ / ١٧٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



سره انبیاوود(بنی اسرائیلو) هغوچي حکم منونکی وودوئ (دالله) ﴿ لِلَّذِينَ هَادُواْ ﴾ هغوکسانوته چي یهودیان وو) یعنی حکم به یې کاووپه تورات سره یهودانوته نه به یې پکښي څه تحریف کاوواونه به یې حکم بدلاوو ﴿ وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلۡأَحۡبَارُ ﴾ (اوحکم به کاوو) پرې رباني عالمانو فقهاوو ﴿ بِمَا ٱسۡتُحۡفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ (په سبب دهغه شي چي حفاظت یې شوی وو له دوئ څخه چي کتاب (دالله دی) یعنی په سبب دالله دحکم چي دوئ ته شوی وودالله کتاب به له ضائع کېدلو او تحریف څخه ژغوری ﴿ وَكَانُواْ عَلَيۡهِ شُهَدَآءَ ﴾ اووودوئ په هغه شاهدان (څارونکی چي تبدیل اوتغیرپکښي رانشی) ﴿ فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ وَٱخۡشَوۡنِ ﴾ اومه ویرېږئ تاسی له خلګونه (ای دیهودوعلماووچي دمحمدصلی الله علیه وسلم نعت پټ کړئ اویارجم) اوووېرېږئ له ما(په پټولو دحق کښي) ﴿ وَلَا تَشۡتَرُواْ بِـَٔايَٰتِي ثَمَنٗا قَلِيلٗا ﴾ اومه پېرئ تاسي په آیتونو زما قیمت لږ( چي رشوت اخلئ اویاپخپله رتبه ویرېږئ) ﴿ وَمَن لَّمۡ يَحۡكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ اوهرچاچي ونکړحکم په هغه شی چي نازل کړی (لیږلی) دی الله نودغه کسان (هرخومره چي وی) هم دوئ دی کافران زمخشری وایي څوک چي دالله په نازل شوی کتاب داستهزاء اوملنډی وهلوپه ډول حکم ونکړی نودوئ کافران ، ظالمان اوفاسقان دي دغه ددوئ دظلم وروستی پړاودی چي دالله په آیتونوملنډی وهی اوله احکامویې سرغړونه کوی په نورڅه حکمونه کوی ([1]) ابوحیان وایي چي ظاهردآیت که څه هم له سیاق څخه یې داسی څرګندیږي چي دیهودانوپه باب دي خوحکم یې عام دی اودټولولپاره دی ([2]) اوهرآیت چي دکفاروپه هکله نازل شوی وی دمؤمنانوعاصیان یې په ترڅ کښي راځي ﴿ وَكَتَبۡنَا عَلَيۡهِمۡ فِيهَآ أَنَّ ٱلنَّفۡسَ بِٱلنَّفۡسِ ﴾ اولیکلی (فرض کړی) وومونږ پردغویهودانو) پدې تورات کښي چي بیشکه نفس دی ووژل شی په (بدل دبل) نفس کښي ﴿ وَٱلۡعَيۡنَ بِٱلۡعَيۡنِ ﴾ اوسترګه دی (ړنده شی) په بدل دبلي) سترګي ﴿ وَٱلۡأَنفَ بِٱلۡأَنفِ ﴾ او پوزه دي پریکړی شي) په (بدل دبلی) پوزی کښي ﴿ وَٱلۡأُذُنَ بِٱلۡأُذُنِ ﴾ اوغوږدی (پریکړی شی) په (بدل دبل) غوږکښي ﴿ وَٱلسِّنَّ بِٱلسِّنِّ ﴾ اوغاښ دي وایستل شی په (بدل دبل) غاښ کښي ﴿ وَٱلۡجُرُوحَ قِصَاصٞ ﴾ اوپرهارونه قصاص د(بدل) دي برابر) یعنی قصاص دي اخیستل کېږي دپرهارونو په مثل د هغوله جنایت کونکي څخه په کوموکښي چي مماثلت ممکن وي اودهلاک وېره نه وي ﴿ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِۦ فَهُوَ كَفَّارَةٞ لَّهُۥ ﴾ (نوهرچاچي عفوه وکړه ددي قصاص نودغه عفوه کفاره ده ده ته) ابن عباس وایي چي څوک جانی ته عفوه وکړی دغه تصدق دمطلوب لپاره کفاره اودطالب لپاره اجردی ([3]) اوطبری وایي چي: معنایې داده

---

([1]) الکشاف ۱/۴۹۲

([2]) البحرالمحیط ۳/۴۹۲

([3]) مختصرابن کثیر ۱/۵۲۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



څوک چي صدقه وکړي دحق له خاوندانو اوعفوه وکړي نو دادهغوئ لپاره کفاره ده اودالله جل جلاله يې ګناهونه ورباندې رژوي څکه ده عفوه اودحق اسقاط کړی دي (١) ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾ اوهرچاچي ونکړحکم په هغه شی چي نازل کړی (ليږلی دی ) الله نودغه کسان هم دوئ دی ظالمان (چي د الله له شرعي څخه يې مخالفت کړی دي ) ﴿ وَقَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِم بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ ﴾ اوولیږه مونږ وروسته له دغوانبیاوو عیسی زوي دمریمي (یعنی دهغوئ دپښوپه منډودی هم روان وو ) حال داچي رښتياويونکي وودهغه کتاب چي پخواله ده وو له توراته ﴿ وَآتَيْنَاهُ الْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ ﴾ اوورکړی وو مونږ ده (عیسی ) ته انجیل حال داچي په هغه کښي هدایت وواورڼاوه (چي له شبهاتوڅخه سرې ته ښوونه کوي ) ﴿ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ ﴾ حال داچي رښتياکونکی وودهغه کتاب چي پخوادده وو له تورات) یعنی ددي اعتراف یې کاووچي دغه کتاب دالله له جانبه ده تکرار دتاکید لپاره راغلی دی ﴿ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ اولارښوونکی اوپندوودپاره دپرهیزګارانو ﴿ وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنجِيلِ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فِيهِ ﴾ او(فرمايلي ووالله ) حکم دي وکړی اهل (عالمان ) دانجیل په هغه شی چي نازل کړی دی الله په هغه (انجیل ) کښي ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴾ (اوهرچاچي ونکړحکم په هغه شی چي نازل کړی دی الله نودغه کسان هم دوئ دی فاسقان ) سرغړونکي اووتلي له ايمان اوطاعت دالله نه ﴿ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ ﴾ اوليږلی دی مونږتاته ( ای محمده ! ) کتاب ( قرآن ) په حقه سره ﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ ﴾ مصدق دی دهغوچي (نازل شوی دي ) په مخ دده کښي له (آسمانی) کتابونوڅخه ﴿ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ ﴾ اوساتونکی دی پر(مضامینود ) هغه اوحاکم دی په پخوانيو(آسمانی ) کتابونو زمخشری وايې چي څارونکی اورقیب دی په ټولوکتابونوڅکه داقرآن دهغود صحت اوثبات شاهدی ورکوي (٢)ابن کثیروایې دمهيمن نوم دی ته ورشامل دی او هغه په ټولوومبنیو کتابونوامین ، شاهد اوحاکم دی پدی کتاب (قرآن ) کښي الله دپخوانیوکتابونومحاسن خوندی کړی اونور زیات مزایا اوکمالات یې ورکړي چي په نوروکښي نشته ﴿ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ ﴾ نوحکم کوه (ای محمده ! ) په مینځ ددوئ (خلګو) کښي په هغه شی چي ليږلی دی الله (تاته) (له دغه سترکتاب نه ) ﴿ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ ﴾ (اومه کوه متابعت د آرزوګانوددوئ ( اومه اوړه ) له هغه شی څخه چي راغلی دی تاته له حق څخه ) یعنی ددوئ دفاسدو غرضونو موافقت مه کوه چي له قرآنی احکاموڅخه اوړی ابن کثیر وایې معنايې داده چي له حق څخه مخ

---

(١) الطبری ١٠/ ٣٦٩

٢ - الكشاف ١/ ۴۹۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مه اړوه چي دناپوهانو اوبدمرغه کسانوله هواسره سم ددوئ متابعت وکړې (١) ﴿ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ﴾ (هرچاته مقررکړې مونږله تاسو(اى امتونو) يوشريعت اولاره روښانه ) ابوحيان وايي ديهودو لپاره شريعت لويه لاره اودنصاراوو لپاره ځانله شريعت او روښانه لاره چي په احکامو کښي به يې توپيردرلود خومعتقدات به يې سره متحدووچي دالله توحيد ، په پيغمبرانو اوټولو کتابونو اودآخرت په ورځ اوجزاباندى ايمان لرل وو(٢)﴿ وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً ﴾ ( اوکه اراده فرمايلى وي الله نوخامخابه يې گرځولى وئ تاسى يوامت ) په يوه شريعت باندى چي هيڅ احکام به يې دبل نه منسوخ کول ﴿ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَآ ءَاتَىٰكُمْ ﴾ ( اومگر(بيل بيل يې کړل ) ځکه چي وازمويي تاسى په هغه کښي چي تاسى ته يې درکړى دي) چي آيادوئ الهى احکاموته غاړه ايږدى اوکه ځنى غاړه غړوى ؟ نويې دشرائعوترمينځ اختلاف راوړچي مطيعين له گنهگارانوڅخه جلاکړي ﴿ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَٰتِ ﴾ پس وړاندى شئ تاسى يوتربله نيکيوته ) هغه چي ستاسوپه باب خيروى دالله له طاعت نه اودشريعت له متابعت نه ﴿ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴾ ( خاص طرف دالله ته بيرته ورتله دي ستاسي دټولو ) نوخبربه کړي تاسى (په قيامت کښي ) په هغه ( امرددين ) چي وى تاسى په هغه کښي به مواختلاف کاوو )اوجزابه درکړي ستاسى په عملونوباندى ﴿ وَأَنِ احْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ ﴾ (اوليږلى يې مونږاوداحکم مودرته فرمايلى دى ) چي حکم کوه په مينځ ددوئ کښي په هغه شى چي نازل کړى دى الله اومه کوه متابعت دآرزوگانو ددوئ ) يعنى داهل کتابوپه مينځ کښي په همدې قرآن حکم کوه ددوئ دناکاره آرزوگانواوهيلو پيروى مکوه ﴿ وَاحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ ﴾ اوويريه کوه ! له دوئ نه چي وانه اړوى تاله ځينى هغه شى چي نازل کړى دى الله تاته (اى محمده !) ځکه دوئ خائنان ، کافران اودروغجنان دي ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُصِيبَهُم بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ ﴾ نوکه وگرزيدل دوئ ( له نازل شوو حکمونو ) پس پوه شه ته ( اى محمده ! ) چي بيشکه همدا خبره ده چي اراده لرى الله چي ورسوى دوئ ته سزاپه دنياکښي ) په سبب دځينو گناهونو ددوئ ﴿ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ لَفَٰسِقُونَ ﴾ ( اوبيشکه چي ډيرله خلگوڅخه خامخافاسقان دى ) دالله له طاعت څخه وتلى دحق نه منونکى اوپه گناهونو کښي غوپه دى ) ﴿ أَفَحُكْمَ الْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ﴾ (آياپس حکم دجاهليت غواړى دوئ ؟ استفهام دانکارلپاره دى معنايي داچي آيادوئ ستاله حکمه غاړه غړوى اودالله له حکم نه پرته هغه حکم غواړى کوم چي دجاهليت دى ﴿ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴾ اوڅوک دى ډيرښه له الله څخه له جهته دحکم هغه قوم ته چي يقين لرى(په الله يعنى هيڅوک ښه نه دى) يعنى بل څوک شته ؟ تر الله (ج) ښه

---

٢ -مختصرابن کثير ١/ ٥٢٤
٣ -البحر المحيط ٣/ ٥٠٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عادل په حکم کښې اوترهغه ربښتونی په بیان کښې اودښه حکمت خاوند په تشریع کښې دهغه چالپاره چې په (العلی الحکیم ) ذات ایمان لری !!

بلاغت:

١-(يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ) درسالت په لفظ سره خطاب دتشريف اوتعظيم لپاره دی.

٢ - (يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡكُفۡرِ ) دلته د( الی ) پرځای د(فی ) کلمه راوړل شوی چې دې ته اشاره وشی دوئ په کفرکښې تل ترتله اوسی هغه کله هم نه پرېږدی اوله يوفن څخه بې بل فن ته په تلواره ليږدی(١)

٣ - (سَمَّٰعُونَ لِلۡكَذِبِ ) دفعال صيغه دمبالغې لپاره راوړل شوی دی يعنی دوئ ددروغوپه اوريدولوکښې زياته مبالغه کونکی دی.

۴ - (لَهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا خِزۡيٞ ) د(خزی ) تنکيردتفخيم لپاره اود(لهم ) مکررراوړل دتأکيدلپاره دی همدارازد(الدُّنيَا .. والآخرة ) د کلماتو په مينځ کښې د طباق صنعت دی.

٥ - ( وَكَيۡفَ يُحَكِّمُونَكَ ) دلته تعجب درسول الله صلی الله عليه وسلم له تحکيم اومنصف کولوڅخه دی پداسې حال کښې چې دوئ وربادی ايمان نه درلوداونه يې کتاب مانو .

٦ - (وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ) دلته اشاره دبعيدلپاره پدې راغلی چې ددوئ دسرکښې اوکبرله کبله درجه ډيره ليری ده.

٧ - (فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ ) خطاب ديهودانومشرانواوددوی علماووته دالتفات په صنعت کښې راغلی چې اصل يې: (فلايخشوا) دی.

٨ - (فَٱسۡتَبِقُواْ ٱلۡخَيۡرَٰتِۚ ) پدې کښې استعاره ده څکه دلته يې دنيکی کونکومشابهت له مسابقې کونکوسره کړی هغوئ چې په آسونوسپاره وي او هريوغواړی تربل دمخه شی چې مقصودته ورسيږي (٢)

فوائداوګټې:

امام فخرالرازی وايې: الله پاک محمدصلی الله عليه وسلم ته په ډيروځايونوکښې په (يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ ) سره خطاب کوي اويوازې په دوه ځايونوکښې يې په: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ ) سره ورته خطاب کړی چې يويې دلته: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ لَا يَحۡزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡكُفۡرِ ) اودوهم يې هم پدې سورت کښې چې: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغۡ مَآ أُنزِلَ ) اودغه خطاب يې له شکه چې دتعظيم اوتشريف لپاره دی.

---

١ - ابوالسعود٢ / ٢٧

٢ -تلخيص البيان ص/ ٣١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



**تنبیه:**

داسلام شهید سید قطب (رحمه الله) الله دی وبښي پخپل ظلال القرآن تفسیر کښي ددې قرآني آیت په رڼا کښي چې فرمايي: ( أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ) داسي راوړي وايي چې دغه دبشر حکم او دیوبنده لپاره دبل بندګی ده ، چې دالله الوهیت نه منی اودهغه له مریتوب څخه دبنده مریتوب ته غاړه ایږدی ؛ دغه دلاري مفرق (بیلتون ځای) دی چې یابه دالله حکم وی اویادجاهلیت ، ددوئ ترمینځ بله لاره اوبدیل نشته یابه دالله (جل جلاله) شریعت دخلګو په ژوند کښي نافذیږی اویابه دجاهلیت حکم یعنی دهوا اوهوس شریعت اودغیرالله عبادت اومریتوب دجاهلیت زمانه داسی یوه تاکلی موده نه وه بلکه هغه پرون هم وه نن هم شته اوسبابه هم وی اوخلګ به یادالله شریعت منی اوورته به غاړه ایږدی نو پدې وخت کښي به مسلمانان وی اویابه دبشرجوړکړی (وضعی) قوانین په ځان دشریعت په توګه حاکموی چې پداسی حال کښي دوئ دالله له شریعت څخه وتلی اوپه جاهلیت کښي ګډ دی (۱)

## الله تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ ۚ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِىَ بِٱلْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِۦ فَيُصْبِحُوا۟ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ نَٰدِمِينَ ﴿٥٢﴾ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَهَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَقْسَمُوا۟ بِٱللَّهِ جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۚ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فَأَصْبَحُوا۟ خَٰسِرِينَ ﴿٥٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ فَسَوْفَ يَأْتِى ٱللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُۥٓ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ يُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٥٤﴾ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَٰكِعُونَ ﴿٥٥﴾ وَمَن يَتَوَلَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَإِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴿٥٦﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَٱلْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ ٱتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴿٥٨﴾ قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ هَلْ تَنقِمُونَ مِنَّآ إِلَّآ أَنْ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلُ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٥٩﴾ قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ ٱلْقِرَدَةَ وَٱلْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ﴿٦٠﴾ وَإِذَا جَآءُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا وَقَد دَّخَلُوا۟ بِٱلْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا۟ بِهِۦ ۚ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا۟ يَكْتُمُونَ ﴿٦١﴾ وَتَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ وَأَكْلِهِمُ ٱلسُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٦٢﴾ لَوْلَا يَنْهَىٰهُمُ ٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ عَن قَوْلِهِمُ ٱلْإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ ٱلسُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ﴿٦٣﴾

---

۱ – فی ظلال القرآن ۲ / ۱۸۳ په لندډول.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ يَدُ ٱللَّهِ مَغْلُولَةٌ ۚ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا۟ بِمَا قَالُوا۟ ۘ بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ ۚ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَٰنًا وَكُفْرًا ۚ وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ ٱلْعَدَٰوَةَ وَٱلْبَغْضَآءَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ كُلَّمَآ أَوْقَدُوا۟ نَارًا لِّلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا ٱللَّهُ ۚ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا ۚ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّقَوْا۟ لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ وَلَأَدْخَلْنَٰهُمْ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا۟ مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم ۚ مِّنْهُمْ أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ۖ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴿٦٦﴾ المائدة: ٥١ - ٦٦

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی داهل کتابو هسی یادونه وکړه چي دوئ په تورات اوانجیل عمل کول پری اینبي وواوپدوئ باندی بې دکفرظلم اوفسوق حکم صادرکړنوو روسته الله تعالی پدې آیتونو کښي دیهودواونصاراووله دوستی څخه منع وفرمایله اوورپسی بې دیهودانو هغه جرمونه کوم چي الله (ج) بې په بدو اقوالواوافعالو باندی متهم کاوو وشمیرل.

## لغتونه:

(دائرة) مفرداوجمع بې دوائرراځي اوهغه دزماني اوبنتل اوبلاګانی دی (حبطت) باطل اومحو کیدل (تنقمون) تاسی منکریږئ اوعیبونه بې وایاست (السحت) حرام اوپخواتیرشو (مغلولة) په اتکړیو کښي تړل شوی اوله بخل څخه کنایه ده (اطفاها) مړه کړی بې ده څوچي اثربې پاتی نشی (مقتصدة) عادله میانه روی ته قصد څخه اخیستل شوی اوهغه عدل ته وایې.

## دنزول سبب

أ: - ابن عباس رضی الله عنه وایې چي: (رفاعة بن زید) او(سویدبن الحارث) اسلام ښکاره کړ خوبیامنافقان شول اوځینی مسلمانانوله دوئ سره ددوستی تعلقات ساتل بیاالله تعالی داآیت نازل کړ: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَٱلْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ ﴾ (١) دآیت ترپایه

ب: - ابن عباس رضی الله عنهما وایې چي څه کسان دیهودانو څخه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل اوځنی وبې پوښتل چي په کومو پیغمبرانو علیهم السلام ایمان لری؟ نورسول الله صلی الله علیه وسلم داسی وویل: ﴿ اومن بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَآ أُوتِىَ ٱلنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٦﴾ ﴾ البقرة: ١٣٦ معناداچي په الله ایمان لرم اوپه هغه کتاب چي مونږته بې رالیږلی اوچي ابراهیم اواسماعیل ته بې راستولی آن تردی چي وبې لوستل (وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ) کله چي بې عیسی علیه السلام ذکرکړدوئ بې له نبوت څخه انکاروکړاوویې ویل: زمونږدی په الله سوګندوی که به دهیڅ بل دین خلګ په دنیااوآخرت کښي ترتاسی خواران وی اویابه ستاسو تردین

---

١- اسباب النزول للواحدی ١ / ١١٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

بد تر بل دین وی نو الله دا آیت نازل کړ: ﴿ قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ ٱلْقِرَدَةَ وَٱلْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ﴿٦٠﴾ ﴾ (۱)

تفسیر:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ﴾ ای هغو کسانو چي ایمان يې راوړی (ای مؤمنانو) مه نیسئ تاسی یهودیان او نصرانیان دوستان (چي ورسره موالات کوئ) دوئ ته مرسته ورکوئ اوله دوئ څخه مرسته غواړئ اوله دوئ سره داسی مخالطت کوئ لکه له مؤمنانو سره (۲) ﴿ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ ﴾ ځینی ځینی ددوئ دوستان دی دځینو نورو (ځکه ټول یوموټی او تاسو ته گردمتفق دی) لکه چي وایي (ملة الکفرواحدة) ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ ﴾ اوهرچاچي دوستی وکړه له دوئ سره له تاسی ځینی نو بیشکه چي دی له همدوئ څنی دي او دده حکم ددوئ حکم دی زمخشری وایي چي دغه دالله له جانبه دهغه چاپه هکله چي ددین مخالف وی تشدید او تغلیظ دی ځکه هغه له دین څخه گوښه شوی دی اولکه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی چي (ولاترآءی ناراهما) دوي دي يو دبل اورونه سره ونه ویني (۳) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (بیشکه الله هدایت نه کوی قوم ظالمانوته) یعنی دایمان لورته ورته لارښوونه نه کوی ﴿ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ ﴾ نووبه وینی ته هغه کسان چي په زړونو ددوئ کښي رنځ د(نفاق) دی چي ځغلی به په (دوستی) د(دوئ کښي) لکه د(منافقینو رئیس) عبدالله ابن أبی ابن سلول اودده ملگری دوئ به له یهودانو سره دوستانه تعلقات او ددوئ مرسته به يې په خورامنده کوله ﴿ يَقُولُونَ نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ ۚ ﴾ (وایي به دوئ (دعذرپه ډول) چي ویریږو له دی نه چي وبه رسیږي مونږته کومه حادثه) یعنی دوئ وایي چي مونږ دژوندله ناخوالوویریږوچي گنې یهودان به په مسلمانانو برلاسی شی اودمحمد په لاس کښي به هیڅ هم نه وی الله ددوئ دفاسد وگومانونو په رد کښي فرمایي: ﴿ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِىَ بِٱلْفَتْحِ ﴾ نونژدی ده چي الله به راتله وکړی په بری (درسول خپل په تقویت داسلام سره) اودغه رسول الله صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو ته دمکې دفتح بشارت اوزیری دی (۴) ﴿ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِۦ ﴾ یا (به راوړی بل) یوحکم له خپل جانبه چي په هغه کښي به دمخلوقاتو هیڅ دخل نه وی لکه ددوئ په زړونو کښي دویری اچول کوم چي دنبی النضیرپه زړونو کښي يې واچوله ﴿ فَيُصْبِحُوا۟ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ نَٰدِمِينَ ﴾ نواوبه

---

۱-القرطبی ۶/ ۲۳۳ ، مجمع البیان ۳ / ۲۱۴
۲-البحر۳ / ۵۰۷
۳-الکشاف ۱ / ۴۹۹
۴-داد(السدی) قول دی او ابن عباس رضی الله عنه وایي چي مراد بری د پیغمبر او مسلمانانو په ټولو خلگو دی.

Bawar.net



گرزی دوئ په هغه شی چي پټ کړی دی دوئ په نفسونوخپلوکښي (له دوستي دالله ددښمنانویهودانواونصرانیانوڅخه) ﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَهَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَقۡسَمُواْ بِٱللَّهِ جَهۡدَ أَيۡمَٰنِهِمۡ إِنَّهُمۡ لَمَعَكُمۡۚ ﴾ اووایي هغه کسان چي مومنان دی (له تعجبه) آیاداهغه کسان دی چي قسمونه کول دوئ په الله سخت قسمونه خپل چي بیشکه دوئ خامخاله تاسی سره دي (په مرسته او کومک کښي) لکه چي الله له دوئ څخه حکایت کوي(وَإِن قُوتِلۡتُمۡ لَنَنصُرَنَّكُمۡ) ﴿ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فَأَصۡبَحُواْ خَٰسِرِينَ ﴾ (نوفرمایي الله) (باطل شول عملونه ددوئ نو وګرځیدل دوئ زیانکاران) یعنی ددوئ عملونه دنفاق په سبب باطل شول اودوی خسرالدنیاوالآخرة وګرځیدل ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَن يَرۡتَدَّ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ ﴾ (ای هغوکسانوچي ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) هرڅوک چي مرتدشو(وګرزیدو) له تاسی نه له دین خپل څخه) خطاب دتحذیر(ویرولو) اووعید په ډول دی اومعناداچي څوک له خپله حقه دینه وګرزی اوپه بل دین یې بدل کړی یعنی له ایمان څخه کفرته وګرزی([1]) ﴿ فَسَوۡفَ يَأۡتِي ٱللَّهُ بِقَوۡمٖ يُحِبُّهُمۡ وَيُحِبُّونَهُۥٓ ﴾ نوعنقریب به راولی الله داسی یوقوم چي محبت کوی (الله) له هغوئ سره اومحبت کوی دوئ له الله سره ﴿ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ يُجَٰهِدُونَ ﴾ متواضع او مهربان به وی په مؤمنانوغالب او زبر دست به وی په کافرانوابن کثیروایي چي همدغه دکاملومؤمنانو صفات دي چي خپل مؤمن وروړته متواضع او مهربان اوپه کافرباندی سخت اوزوروروی لکه چي الله فرمایي: ﴿ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡۖ ﴾ [الفتح: ٢٩] اودالله د محبت نښه دمؤمن په باب داده چي مهربان اوخواخوږی وی نورومؤمنانوته اوپه کفارومنافقینوباندی زره ور اوغالب قهرمان وی ﴿ يُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوۡمَةَ لَآئِمٖۚ ﴾ جهادبه کوی دوئ په لاره دالله کښي (لپاره داعلاء کلمة الله اونه به ویریږی دوئ له ملامتیادهیڅ ملامت کونکی ، ځکه دوئ به دالله په دین خورامضبوط وی دالله په لاره کښي په خدمت کولوبه له هیچاڅخه نه ویریږي ﴿ ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ ﴾ دا(مذکوره صفات محموده) فضل دالله اوتوفیق دی ورکوی یې هغه چاته چي اراده وکړی ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله پراخ دی (فضل، رحمت ، احسان دده) ښه عالم (خبردارپه تولواحوالو(چي څوک یې مستحق دی) وروسته څرنګه چي الله دوئ دکفاروله موالات څخه وویرول دلته یې دایادونه وکړه چي څوک ددوستانه تعلقاتوپه جوړولو حقداره دی؟ نوویې فرمایل: ﴿ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ بیشکه هم داخبره ده چي دوست ستاسی (خاص).الله اورسول دده دي اوهغه

---

١ – په آیت شریف کښي دځینی مسلمانانودارتدادخبرتیاده اودغه تریخواله پیښدلوڅخه یي اعلام بالغیب دی اوپه تحقیق سره چي له اسلام څخه ډیری ډلګی مرتدې شوی دی ځینی درسول الله (ص) په زمانه کښي ځینی دابوبکرالصدیق (رض) په خلافت کی اودمسیلمة الکذاب تبر بنوحنیفه مرتدان شول اومسیلمة رسول الله (ص) ته داسی ولیکل: (دمسیلمة رسول الله له طرفه لپاره دمحمدرسول الله امابعد: مځکه نیمایي ستاونیمایي زماده) رسول الله صلی الله علیه وسلم داسی ځواب ورکړ دمحمدرسول الله له خوالپاره دمسیلمة الکذاب امابعد: (فان الارض لله یورثهامن یشاء من عباده والعاقبة للمتقین).

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کسان دي چي مؤمنان دی یهوداونصاری ستاسی دوستان نه دی ﴿ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَٰكِعُونَ ﴾ او(صفت کوو ) دهغوکسانوچي قائموی لمونځ اوورکوی دوئ زکات اوهم دوئ رکوع کونکی دي اوعاجزی کونکی دی په (لمانځه اوزکات خپل کښي ) دالله لپاره ,په تسهیل نومی کتاب کښي وايي چي الله (ج) دولِی لفظ مفردذکرکړ چي دالله (ج) دافراد سره سم وی اوبیایي دالله په نوم باندی رسول اومؤمنان دتبعیت په توګه عطف کړل اوکه چیری یې داسی فرمایلی واي چي (اِنَّمَا اَوْلِيَاۤءُكُم اللهُ وَرَسُوْلُهُ)نوپه کلام کښي به اصل اوتبع څرګند نه وو(۱)﴿ وَمَن يَتَوَلَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَإِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴾ اوهر څوک چي دوستي کوي له الله اورسول دده سره اوله هغوکسانوسره چي مؤمنان دي نوبیشکه چي ډله دالله همدوئ دي غالبان (په دښمنانوباندي) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا ﴾ اي هغوکسانوچي ایمان یې راوړی دی ( ای مؤمنانو ) مه نیسئ هغه کسان چي نیولی دي دوئ دین ستاسي مسخره اولوبي (یعنی هغه ددین دښمنان چي ستاسي په دین ملنډي وهي دوستان مه نیسئ ﴿ مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَٱلْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ ۚ ﴾ (له هغو کسانوڅخه چي ورکړی شوی دی دوئ ته کتاب پخواله تاسی څخه او(مه نیسئ ) کافران (دوستان) یعنی له دغوملنډي وهونکوڅخه یهودیان ، نصرانیان اوټول کافران پداسي حال کښي چي ستاسي دښمنان دي په دوستي یې مه نیسئ بلکه په تاسی لازم دی چي ورسره بغض اوعداوت وکړئ ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ اوویریږئ له الله څخه(په ترک ددوستی دفجارواوکفاروکښي) که یئ تاسی مؤمنان په رښتیاسره) وروسته الله ددوئ مسخرې څه داډول بیانوي﴿ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ ٱتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ۚ ﴾ اوکله چي غږکوئ تاسی (خلګ رابولئ) لمانځه ته (یعنی اذان کوئ )نونیسی دوئ هغه لمونځ یاآذان مسخرې اولوبي ، په البحرالمحیط کښي وایې چي یهودانوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره تردې اندازې پوری حسداورخه درلوده چي کله به یې اذان واوریدونوبه یې ویل دانوی کار(بدعت) ده پیل کړی چي پخوانیوانبیاوونه کاوودغه نارې دي دڅه وي ؟ ! همغسي لکه چي خر(العیاذبالله ) نارې وهی څومره بده چیغه اوناره ده نوالله جل جلاله داآیت نازل کړ(۲) نوالله (جل جلاله) ددی تنبیه وفرمایله چي څوک په لمانځه ملنډې وهی هغه په دوستی کولونه ښایي بلکه هغه بایدورټل اووشړل شی دغه آیت لکه دپخوانی آیت تاکید غوندی دی ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴾ دا(په سبب ددي چي بیشکه دوئ یو قوم دی چي هیڅ عقل نلري ) یعنی دغه کړنه ددوئ ... سبب ددي دي چي دوئ فاجران خلګ دی د لمانځه حکمت ورته معلوم نه دي اونه هم دلمانځه په پایله او عاقبت پوهیږي چي څرنګه نفوس سپیځلی اوپاکوی عقل یې څکه ځنی نفی کړچي دوئ په دیني اموروکښي

---

۱- التسهیل ۱/ ۱۷۱

۲ -البحر ۳/ ۵۱۵ . ابوالسعودوایي چي روایت کیږي په مدینه منوره کښی یونصراني ووکله چي به یې دمؤذن له خولې دغه کلماتی واریدی چي (اشهد ان محمدا رسول الله) نوویل به یې الله دی دروغجن وسوخوی هغه ووچي یوه ورځ یې خادم کورته اوردننه راووراویوبخرکی (سپرغی ) ځنی والوت دوئ ویده وونوپخپله نصرانی اوټوله کورنۍ یې وسوځیدله.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ورڅخه ګټه نه ده اخیستی که څه هم دوئ داسی عقلونه خولری چي دژوندد نیوی مصالح ورباندی پیژنی ﴿ قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ هَلْ تَنقِمُونَ مِنَّآ ﴾ ووایه ای محمده ! ) چي ای اهل کتابو آیاعیب ګڼئ تاسی له مونږه اوکینه کوئ ؟ (یعنی نه کوی ) ﴿ إِلَّآ أَنْ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلُ ﴾ مګرپه سبب ددی چي ایمان راوړی دي مونږپه الله(ج) اوپرهغه کتاب چي لیږلی شوی دی مونږته اوپرهغوکتابونوچي لیږلی شوی دي پخواله دی نه/ابن کثیروایې چي معنایې داده آیاپه مونږباندی ستاسی له خواله دی پرته بل پیغوراو عیب شته ؟ اوداخوهیڅ عیب اوبدی نه ده نوپدې ډول به استثناء منقطع وبلل شی (١) ﴿ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَٰسِقُونَ ﴾ او(بل په سبب ددي ) چي بیشکه زیات له تاسی فاسقان دي )یعنی له سمې صافی لاري وتلی دي ﴿ قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ ﴾ ووایه ای محمده ( دوئ ته ) آیاخبرکړم تاسی په هغه چاچي ډیربد(عیب لری) له دي چي تاسویې زمونږعیب ګڼئ ) ﴿ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِ ﴾ له جهته دجزاپه نزد دالله(ج) په تسهیل نومی کتاب کښي وایې چي ثواب اوجزایې دعقاب اوعذاب په ځای دتهکم لپاره راوړی ده لکه چي الله فرمایي (فبشرهم بعذاب اليم) ﴿ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ ﴾ (٢) (ډیربد ) هغه څوک دی چي الله ورباندی لعنت کړی دي ( له رحمته یې شړلی دي) ﴿ وَغَضِبَ عَلَيْهِ ﴾ ( اوغضب یې کړی دی پرهغه )په سبب دکفر دده او په ګناهونوډوبیدل دهغه سره له دي چي څرګند دلائل ورته راغلي وو ﴿ وَجَعَلَ مِنْهُمُ ٱلْقِرَدَةَ وَٱلْخَنَازِيرَ ﴾ اوګرزولی یې دي له ځینودوئ څخه بیزوګان (اوله ځینودوئ څخه ) خنزیران ﴿ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَ ﴾ ( اوګرځولی یې دي له ځینودوئ څخه ) هغه کسان چي بندګی یې کړی ده دشیطان په طاعت کولوسره ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ همدا(ملعونان) ډیربددی له جهته دځای (چي دوزخ دي) اوډیرګمراه دي له سمې صافی لاري د(حق دین څخه) ابن کثیروایې معناداچي ای کتابیانوچي زمونږپه دین کښي هغه چي دالله توحید منواوپه عبادت کښي دالله افرادکووعیب ګڼئ نوله تاسوڅخه به داڅرنګه صادرشی پداسی حال کښي چي تاسوپورتنی ذکرشوی ټول کارونه ترسره کړی دي(٣) قرطبی وایې چي کله داآیت نازل شونومسلمانانو دوئ ته وویل ای دخنزیرانواوبیزوګانوورونو ! نودوئ به سرونه کوزو ځړول . ﴿ وَإِذَا جَآءُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا ﴾ ( اوکله چي راشي دا(منافقان له یهودو ) تاسي ته وایې دوئ چي ایمان راوړی دی مونږ) اسلام څرګندوي ﴿ وَقَد دَّخَلُوا۟ بِٱلْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا۟ بِهِۦ ﴾ حال داچي ننوتلی دي دوئ ( ستاسی په مجلس کښي) په کفرسره اودوئ په تحقیق وتلی هم دي( ستاسی له مجلسه ) په کفرسره ) دوئ ته ستاپه ویلوهیڅ علمی ګټه نه ده رسیدلی اونه ستا پنداونصیحت په دوئ څه اغیزه کړي ده ﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا۟

١ -مختصرابن کثیر١/ ٥٣٠
٢ -التسهیل١/ ١٨٢
٣ -ابن کثیر١/ ٥٣١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



يَكْتُمُونَ ﴾ او الله ښه عالم دي په هغه چي وودوئ پټول به يې ( له نفاقه ) او کفر څخه او پدې کښې ددوئ لپاره سخت وعيد دی ﴿ وَتَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ) او ته به وينی ډيرله دغو منافقانو ) څخه چي منډې به وهي په ګناه کښې او په ظلم کښې (وَأَكْلِهِمُ ٱلسُّحْتَ ) او په خوراک ددوئ حراموله ﴿ لَبِئْسَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ ( خامخا بددی هغه کارچي کاووبه دوئ ) يعنی بددی اعمال او اخلاق د دوئ ﴿ لَوْلَا يَنْهَىٰهُمُ ٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ ﴾ ولی نه منع کوي دوئ ربانی عالمان او عارفان (عَن قَوْلِهِمُ ٱلْإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ ٱلسُّحْتَ ﴾ له ويلودوئ دګناه (ددروغو خبرو ) او له خوړلو ددوئ د حرامو ﴿ لَبِئْسَ مَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ﴾ خامخا ډير بددی هغه کارچي دوئ به کاوو(يعنی سکوت يې له نهی کولو دمنکر کارونو ) ابن عباس وايې چي په ټول قرآن کښې تردي خوراسخت دتوبيخ بل آيت دعلماوولپاره نشته ابوحيان وايې چي پدې آيت کښې دعلماوو او عارفانو په چوپتيا کله چي دګناهونو او محارمو په وړاندی يې غوره کوي توبيخ نغښتی دی ابن مبارک داسي شعرپېيلی د ی وايي:

وهل أفسد الدين الاالملوك واحبار سوء ورهبانها؟

يعني ايا پرته له پاچهانو او بي عمله عالمانو او په نامه عارفانو بل چاهم دين ته هومره زيان رسولی دی ؟يعنی نه يې د ي رسولي(١)﴿ وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ يَدُ ٱللَّهِ مَغْلُولَةٌ ﴾ ( اووو ايې يهودان لاس دالله بند کړی شوی دي ) يعنی يهود ملعونان وايې چي الله بخيل دي بندګانو ته تنګه روزی ورکوی ابن عباس وايې چي د(مغلولة) معنا(بخيلة) ده هسی نه چي دوئ ويل دالله لاس تړلي بلکه قصدېې داوو چي هغه بخيل دي (٢)﴿ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ تړل شوی دی لاسونه ددوئ (دادښيرا په توګه چي دوئ دی په فقر او مذموم بخل او تنګه روزي اخته وي﴿ وَلُعِنُوا۟ بِمَا قَالُوا۟ ﴾ او لعنت کړی شوی دی پردوئ په سبب دهغه چي وايې دوئ .

﴿ بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ ﴾ بلکه ( يدين ) دده غځول شوی دي يعنی هغه سخی او انعام ورکونکی دي هررنګه چي اراده وفرمايي ﴿ يُنفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ ﴾ روزی ورکوی ) (هرچاته او صرفوی يې ) هررنګه چي اراده وفرمايې ) ابوالسعود وايې : دروزی تنګسيادهغه په فيض کښې دکمبود په معنانه ده بلکه دهغه نفقه ورکول دهغه دارادې تابع ده هغه چي په حکمتونو بناوي او دحکمت تقاضا او غوښتنه داده چي ددوئ دګناهونو دبدی په وجه تنګه روزی ورکوی(٣)﴿ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَٰنًا وَكُفْرًا ﴾ او خامخا زياتوی هرمرو ډيروته له دوئ نه هغه (قرآن) چي نازل کړی شوی دی تاته له ربه ستاسرکښي او کفر؛ ځکه هرکله چي کوم آيت نازل شی دوئ ورباندی کافران کيږي او سرکښي يې زياتېږي لکه څرنګه چي خواره دروغ رمتې کسانولپاره وی او دناروغانو ناروغی زياتوی طبری وايې چي الله پاک خپل نبی

---

١- البحر المحيط ٥٢٢/٣.
٢ - الطبری ٤٥٢/١٠
٣ -ابوالسعود ٢ / ٤٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(عليه السلام) پدې پوهولي دي چې دغه مذكوركسان دسركښي اوعصيان خاوندان دي حق ته غاړه نه ايږدي كه څه هم په ربښتنولي يې پوهيږي خودوئ دعنادله مخې هغه نه مني اوپدې كښې دمحمدرسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره داديته ده چې پدې خوابدې نشي چې دوئ له الله څخه ليرې تللي اودده تكذيب يې كړيدی(١) ﴿ وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ ٱلْعَدَٰوَةَ وَٱلْبَغْضَآءَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ (اوغورځولی دی مونږپه مينځ ددوئ كښې عداوت( دښمنی)اونفرت تروزخې دقيامت پوری) نوددوئ خبره يوه نه ده زړونه يې سره بيل بېل دي يودبله سره دښمنان دي اودابه ترقيامته همداسې وي ﴿ كُلَّمَآ أَوْقَدُواْ نَارًا لِّلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا ٱللَّهُ ﴾ هركله چې بلاوودوئ اورلپاره دجنګ (درسول الله نو) مړكاووبه هغه (اور) الله ﴿ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا ﴾ اوځغلي دوئ په ځمكه كښې لپاره دفساد اچولويعنې دوئ داسلام اومسلمانانولپاره دوكې او چلونه جوړوی اودمسلمانانوترمينځ دښمنی راپاروی ابن كثيروايې چې ددوئ په ختې كښې داشته چې په مځكه كښې به فسادكوی ﴿ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ اوالله نه خوښوی فسادكونكې، يعنې هغه څوک چې دايې صفت وی دالله خوښ نه دی (٢) ﴿ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ ءَامَنُواْ وَٱتَّقَوْاْ ﴾ اوكه بيشكه اهل كتاب ايمان راوړی وي په (محمدصلى الله عليه وسلم ) اوپرهيزيې كړی وی ( له معاصيوڅخه ) چې محرمات يې نه كولی ﴿ لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ ﴾ نوخامخا ليرې كړی به وي مونږله دوئ څنی ګناهونه ددوئ(هغه چې ترسره كړی يې دي) ﴿ وَلَأَدْخَلْنَٰهُمْ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ (اوخامخانې ايستلی به وومونږدوئ جنتونودنعمتونو ته ) له دې سره سره ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُواْ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ ﴾ ( اوكه بيشكه دوئ درولی وَی (احكام ) دتورات اوانجيل (داحكاموپه تعميل سره يې ) اوهغه (كتاب) چې نازل كړی شوی دی دوئ ته له (جانبه د ) رب ددوئ (دمحمدصلى الله عليه وسلم په وسيله ) يعنې دالله دامريې امتثال يي كولی اوپه هغواحكاموچې په تورات اوانجيل كښې راغلی اوهم يې پدغه ستركتاب چې په خاتم الانبياء نازل شوی عمل كولی ﴿ لَأَكَلُواْ مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم ﴾ نوخامخاخوړلی به يې ( ميوې) له پاسه د(سرونو ) خپلو او(غلې) له لاندی دپښوخپلو (دځمكې نه ) يعنې الله به پراخ نعمتونه وركړی وو ﴿ مِّنْهُمْ أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ﴾ (ځينی له دوئ نه يوامت مقتصد( ميانه تلونكی) دي ) يعنې له دوئ څخه يوتولګی مستقيم اومعتدل دي چې نه غلوكوی اونه هم تقصيراوكوتاهی او دوئ هغه كسان دي چې په محمدصلى الله عليه وسلم يې ايمان راوړی دي لكه عبدالله ابن سلام ، نجاشي اوسلمان (رضى الله عنهم اجمعين) ﴿ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴾ ( اوډيرله دوئ څخه بددي هغه كارچې چې كوی يې دوئ ) يعنې ډيرددوئ اشراردي اوبددي هغه اقوال اوافعال چې دوئ يې كوی.

---

١-الطبری ۱۰/ ۴۵۷
٢-مختصرابن كثير ۱/ ۵۳۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## بلاغت:

۱ - (أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ ) دلته د(أَعِزَّةٍ ) او(أَذِلَّةٍ ) ترمينځ دطباق صنعت دي اوهمداراز د(مِن فَوْقِهِمْ) او(وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ ) دالفاظو ترمينځ هم چي داد بديع له محسناتو ګڼل کيږي.

۲ - (لَوْمَةَ لَائِمٍ) ددي دواړو کلماتو په نکره راوړلو کښي مبالغه ده ځکه چي (لَوْمَةَ) دلوم ښځه دکرت په معنا ده.

۳ - (إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ) دادتهيج اوپاروني لپاره راغلی ده.

۴ - (هَلْ تَنقِمُونَ مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا) داهغه صنعت دی چي دبيان دعلم علمايې (تاکيد المدح بمايشبه الذم ) بولی اوهمداراز پرعکس ددي ځکه دلته په دين منګولی لګول اودايمان ساتل دعيب اوپيغور موجب ګڼل شوی اوواقعيت يې برعکس دي.

۵ - (مَثُوبَةً عِندَ اللَّهِ مَن لَّعَنَهُ اللَّهُ ) دادتهکّم په توګه راوړل شوی ځکه ثواب يې دعقاب په ځای استعمال کړی دي.

۶ - (شَرٌّ مَّكَانًا ) دشرنسبت يې دلته مکان ته کړی خوپه حقيقت کښي هغه دمکان د اهل لپاره دي اودغه ته ( مبالغه فی الذم ) وايې.

۷ - (يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ ) دلاس تړل له بخل څخه کنايه اودلاس غوړيدل اوغځول دسخاڅخه کنايه راغلی دي.

۸ - (أَوْقَدُوا نَارًا لِّلْحَرْبِ ) ( داوربلول له جنګ جګړې څخه يوه استعاره ده ځکه جنګ خواورنلري خوهغه يې له اورسره مشابه وګڼل لکه چي اورخس اوخاشاک سوځی همداسی جنګ دجنګ خلګ تباه کوی.

۹ - (لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ ) دلته هم استعاره راغلی چي دغه يې ګواکي له پراخ رزق اوروزي څخه اراده کړی لکه چي ويل کيږي هغه يې په نعمت کښي له سره ترپښوونغاړه.

### فوائداوګټي:

**لومړی فائده** : روايت کيږي چي ابوموسی آشعری يونصرانی ليکونکی پخپل حکومت کښي په دنده ګومارلی وواوکله چي حضرت عمرخبرشونويې ابوموسی ته وليکل تاسی نصاراوته عزت مه ورکوئ چي الله سپک کړی دي ، دوئ ته امانت مه سپارئ چي دوئ الله خائنان بللی دی ؛ دوئ ځانته مه نژدی کوئ چي الله (ج) ليری کړی دي، نوابوموسی ورته وويل: بصره په همدې سړی باندی تکيه ده حضرت عمرورته زياته کړه که نصرانی مړشوبيابه څه کوئ ؟[۱]

**دوهمه فائده** : کله چي دابوبکرالصديق رضی الله عنه دخلافت په دوره کښي مسيلمة الكذاب دوحشی په لاس ووژل شونوبه وحشی ويل مادجاهليت په وخت کښي ترټولوخلګوغوره سړی وژلی

---

۱ -البحرالمحيط ۳/ ۵۰۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوهمدارازپه اسلام کښې مې بياترټولوخلګوشريراوبدسړی وژلی دده به قصدپه غوره سړی سره حمزه (رضي الله عنه ) اوپه شريرسره مسيلمة الکذاب وو(۱)

دريمه فائده : مفسرين وايې چې د( عسی) کلمه چې دالله په کلام کښې راشي واجب ګڼل کيږي ځکه الله کريم ذات دی اوچې کريم چاته طمع ورکړی هغه به هرومروترسره کوي نودادزيری دوعدې په شان دي چې نفس ورپسی تعلق نيسي.(۲)

څلورمه فائده : بيضاوی وايې چې دالله (جل جلاله ) پدې قول کښې چې فرمايي : ﴿لَوْلَا يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ﴾ ددوئ دعلماوو هڅونه ده چې له داسې کولوڅخه يې منع کړي (تکاسلي ونکړي) ځکه کله چې (لولا) په ماضي باندې داخله شي نوتوبيخ بې معناده اوکه چيرې په مستقبل باندې داخله شي نوبياهغه تحضيض افاده کوي

الله تعالی فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ۖ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُۥ ۚ وَٱللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ ٱلنَّاسِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٦٧﴾ قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ ۗ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَٰنًا وَكُفْرًا ۖ فَلَا تَأْسَ عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٦٨﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلصَّٰبِـُٔونَ وَٱلنَّصَٰرَىٰ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٩﴾ لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ رُسُلًا ۖ كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُهُمْ فَرِيقًا كَذَّبُوا۟ وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ﴿٧٠﴾ وَحَسِبُوٓا۟ أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا۟ وَصَمُّوا۟ ثُمَّ تَابَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا۟ وَصَمُّوا۟ كَثِيرٌ مِّنْهُمْ ۚ وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٧١﴾ لَقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ ۖ وَقَالَ ٱلْمَسِيحُ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ رَبِّى وَرَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُۥ مَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ ٱلْجَنَّةَ وَمَأْوَىٰهُ ٱلنَّارُ ۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿٧٢﴾ لَّقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ ثَالِثُ ثَلَٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّآ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۚ وَإِن لَّمْ يَنتَهُوا۟ عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى ٱللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُۥ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧٤﴾ مَّا ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ ٱلرُّسُلُ وَأُمُّهُۥ صِدِّيقَةٌ ۖ كَانَا يَأْكُلَانِ ٱلطَّعَامَ ۗ ٱنظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ ٱلْءَايَٰتِ ثُمَّ ٱنظُرْ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٧٥﴾ قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ۚ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٧٦﴾ قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لَا تَغْلُوا۟ فِى دِينِكُمْ غَيْرَ ٱلْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوٓا۟ أَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا۟ مِن قَبْلُ وَأَضَلُّوا۟ كَثِيرًا وَضَلُّوا۟ عَن سَوَآءِ

---

۱ - محاسن التاويل ۲/ ۲۰۳۴

۲ - الرازی ۱۲/ ۱۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



السَّبِيلِ ﴿٧٧﴾ لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۚ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿٧٨﴾ كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧٩﴾ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ أَن سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿٨٠﴾ وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٨١﴾ ﴾ المقدة: ٦٧ - ٨١

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله مؤمنان دکفارو له موالات څخه وویرول او څرنګه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د رسالت په ترڅ کښي دکفارو داحوالو پیغور او دمخالفینو عیوب راتلل نو دا لامل وو چي دوئ بې د رسول الله او دهغه داتباعو دښمنی ته درولی وو څکه الله تعالی پدې آیتونو کښي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دبلني د تبلیغ امرکوی او ورسره جوخت بې دساتنی او مرستی وعده ورکوی بیاالله پاک داهل کتابو فاسد عقائد اوناکاره ګروهي یادوی اوپه ځانګړی توګه دنصاراوو عقیده چي دوئ حضرت عیسی (ﷺ) په ألوهیت مانو او هغه بې د دریو دریم ګڼه ددوئ دغه ناکاره عقیده بې په څرګندو دلائلو رد کړه.

## لغتونه:

(يَعْصِمُكَ) عصمت ،ساتنی اوحمایت ته وایې (طُغْيَانًا) په ظلم کښي له حدڅخه تجاوزته طغیان وایې (فَلَا تَأْسَ) مه خواشینی کیږه ( أسی ) غمګینی ته وایې (خَلَتْ ) دتېرشو په معنادي (صِدِّيقَةٌ) صدیق هغه چاته وایې چي په صدق اوربښتنولی کښي دمبالغې حدته رسیدلی وی لکه چي ویل کیږي (رَجُلٌ سِكِّيتٌ )یعنی خورا چُپ اویا( رَجُلٌ سِكِّيرٌ ) یعنی خورامست (يُؤْفَكُونَ ) له حق څخه ګرزیدونکی اوله همدې څخه دی داچي :( اجئتنا لتافكنا) (تَغْلُوا) له غلوڅخه اخیستل شوی اوپه یوکارکښي تشدد کول اوله حدڅخه تجاوزکولوته وایې لکه چي دیوچاپه باب وویل شی (غلافي دينه غلوا) یعنی سخت دریزه شوپه خپل دین کښي آن تردې چي له اندازې بهرووت.

## دنزول سبب:

أ – ابن عباس (رض) وایې چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل کله چي الله تعالی په خپل استازیتوب وټاکلم نوهوسانه وم اوپدې وپوهیدم چي ځینی له خلګوڅخه به مې تکذیب کوی وروسته الله دا آیت نازل کړ: ﴿ يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ۖ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ ۚ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴾ (١).

ب: - اوهمدارازابن عباس (رض) وایې چي دیهودانویوه ډله نبی صلی الله علیه وسلم ته راغله ورته ویل یې: آیاته پدې اقرارنکوي چي تورات دالله له لوري نازل شوی اوحق دي ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته

١-اسباب النزول / ۱۱۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ونرمایل هوزه همداسی اقرارکوم نودوئ ورته وویل مونږپه همدی تورات ایمان لرولـه هغه پرته په هیڅ کتاب ایمان نه راوړوبیاالله دا آیت نازل کړ: ﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ ۗ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَـٰنًا وَكُفْرًا ۖ فَلَا تَأْسَ عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾

تفسير:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ۖ ﴾ (ای رسوله (زما) ورسوه ته هغه شی چي نازل کړی شوی دی تاته له (جانبه د) ربه ستا) دغه دتعظیم اوتشریف نداا وچیغه ده چي الله پاک په خوراسپیڅلو صفتونو رسول الله (ﷺ) ستایلی چي دخپل رب استاذیتوب (پیغام) ورسوه دهیچاانتظارمه کوه له هیچاڅخه مه ویرېږه چي تاته به زیان ورسوی ﴿ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُۥ ﴾ اوکه دې و نه رساوه (تول) نونه دی رسولی تاهیڅ پیغام دده) دغه دابن عباس رضی الله عنهما غوره کړی معناده (۱) اوپدې کښي دامت دعلماوولپاره تأدیب دی چي دشریعت له احکاموڅخه هیڅ هم ونه سپموئ اوپټ یې نکړئ ﴿ وَٱللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ ٱلنَّاسِ ۗ ﴾ اوالله ساتی تا(له شره) دخلگو؛زمخشري وایي چي دادالله (جل جلاله) له لوري دساتني اوحمایت زیری ورکول دي معنایې داده چي الله (جل جلاله) ستادساتني ستاله دښمنانوڅخه ضمانت کوي نوبیاستاسوددوئ په مراقبت کښي څه عذرشته ؟ روایت کیږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به تردي دمه دساتونکوله خواڅارل کېدوکله چي داآیت نازل شونوله خېمې څخه یې سردباندی راویوست اووېي ویل ای خلگو ! بیرته ستانه شی بیشکه چي زه الله عز وجل پخپل عصمت کښي وساتلم (۲) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ بیشکه الله نه بنیي (سمه لار) قوم کافرانوته ) یعنی په تاباندی یوازی تبلیغ اورسول دی اوالله (جل جلاله) هغه ذات دي چي لاربنوونه کوي چاته چي اراده یې وشی اودچالپاره چي د کفرفیصله یې شوی وي هیڅکله به لاره ونه مومی ﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ ﴾ ووایه ته (ای محمده) چي ای کتابیانونه یئ تاسی پر هیڅ شی (له حقه دینه ) ترهغه پوری چي قائم کړئ تاسی ( ټول احکام ) د(تورات ) اوانجیل ) په بشپړه توگه او دهغوئ له قائمولوڅخه یوداهم دي چي په محمد صلی الله علیه وسلم باندی ایمان راوړئ ﴿ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ ۗ ﴾ اوهغه (کتاب ) چي نازل کړی شوی دي تاسوته له (لوری ) دربه ستاسی ) ابن عباس رضی الله عنه وایي یعنی قرآن کریم ﴿ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَـٰنًا وَكُفْرًا ۖ ﴾ اوخامخا زیاتوي هرومرو ډیروته له دوئ څخه هغه شي چي نازل کړی شوی دی تاته له جانبه درب ستا( قرآن زیاتوی دوئ ته ) سرکښيږاو کفر) لام دقسم لپاره دی معناداچي زه قسم کوم چي دغه پرتامنزل قرآن دوئ ته په انکار

---

۱ – القرطبی ۶/ ۲۴۲

۲ –الکشاف ۱/ ۵۱۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او ستا دنبوت په تکذيب کولو اودوئ ته په کفراوگمراهی کښي زياتوب ورکوی(۱) ﴿ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَٰفِرِينَ ﴾ (نومه خفه کيږه (افسوس مکوه) په قوم دکافرانو) يعنی پدوئ مه خفه کيږه ځکه د انبياوو تکذيب ددوئ عادت اودوددی دغه درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره دادينه اوتسلا اوله غمگينی څخه نهی نه ده(۲) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّٰبِـُٔونَ وَالنَّصَٰرَىٰ ﴾ بيشکه هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی (په الله اورسول الله (ص) باندی چي مسلمانان دي) اويهوديان اوهغه ترسايان(دنصاراوو هغه ټولی ته چي دستوروعبادت يې کاوو) اونصرانيان چي دعيسی عليه السلام پيروان دي ( ددوئ حکم هم داسی دي) ﴿ مَنْ ءَامَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْءَاخِرِ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ هرڅوک چي ايمان راوړي په الله اوپه ورځ آخره (دقيامت) اوعمل وکړی نيک (چي الله ته يې ښڅدی کړي) ﴿ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ (نونشته (هيڅ قسم) ويره په د وئ باندی اونه به دوئ (هيڅکله) خفه کيږي) يعنی نه به دوئ دقيامت دورځي له کړاوونو ويريږي اونه به کله چي دالله له لوزی پراخ نعمتونه اوثوابونه ووينی په هغه پاتی شوودنيايې ځيزونوخوابدی کيږي(۳) ابن کثيروايې چي هره ټولی به داسی وی چي په الله اودقيامت په ورځ ايمان راوړی صالح اعمال ترسره کړی خودا پردی شرط چي دمحمدی شريعت سره موافق وي هغه چي انسانانواوپيريانانوته راغلی دي نوکله چي داسی ايمان ولری اواعمال ترسره کړی بيابه نه په قيامت ويريږي اونه به خوابدی کيږي چي ترشايې څه پري اينبي وی (۴) ﴿ لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (خامخاپه تحقيق اخيستی ده مونږ وعده ټينگه له بنی اسرائيلو) يعنی مونږله يهودوڅخه ټينگ عهداخيستی چي په الله اودهغه په پيغمبرانوبه ايمان راوړی په البحرکښي وايې چي دغه دعهدنقض اوماتول ديهودانو داسلافو او پخوانيو څخه اخباردي کوم چي دوئ دالله سره کړی وعده ماته کړی اوسترگناهونه يې کړی انبياء عليهم السلام يې دروغجن بللی اوځينی له هغوئ څخه يې وژلی دي دغه يهودان هم دهغوئ اولاددي نوځکه دارسول الله (صلی الله عليه وسلم) ته ضرراوځوررسول اويايې له امرڅخه عصيان ددوئ داسلافومنل شوی دوددي(۵) ﴿ وَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ رُسُلًا كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُهُمْ ﴾ اوليږلی وومونږ دغوبنی اسرائيلو ) ته رسولان ( چي ددين امورورونبيې اوسمې لاري ته يې رهبری کړی ) هرکله چي به راغی دوئ ته کوم پيغمبرپه (هغه شرعی حکم ) سره چي نه خوښاوو( هغه حکم ) نفسونوددوئ ( اومخالف به ووله شهوتونوددوئ سره ) ﴿ فَرِيقًا كَذَّبُوا وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ﴾ ځينی ( رسولان ) يې دروغجن وگڼل اوځينی رسولان به يې وژل بيضاوی وايې چي د (قتلوا)

---

۱- الطبری ۱۰/ ۴۷۴
۲- القرطبی ۶/ ۲۴۵
۳- الطبری ۱۰/ ۴۸۶
۴- مختصرابن کثير۱/ ۵۳۵
۵- البحرالمحيط ۳/ ۵۳۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



پرځای یې (یقتلون) کلمه ځکه راوړه چي دماضي حال حکایت داستحضارلپاره وشي ترڅودقتل اووژلو فضاعت څرګنداوپدې تنبیه راشي چي دغه ددوئ پخواني عادت دی په راتلونکي کښي به یې هم وي اودآیتونو دپیل موافقت هم پکښي مراعات شوی دي ﴿ وَحَسِبُوٓاْ أَلَّا تَكُونَ فِتۡنَةٞ ﴾ (اوګومان کړی دغو(بنی اسرائیلو) ددې چي نه به وی (نه به رسیږي دوئ ته) هیڅ فتنه) یعنی دوئ) بنی اسرائیلو) داسی انګیرله چي دانبیاوو په وژلو اود پیغمبرانو په دروغجن ګڼلو دوئ ته هیڅ بلاوعذاب نه رسیږي دوئ دالله په مهلت ورکولو غره شوی دی ﴿ فَعَمُواْ وَصَمُّواْ ﴾ پس ړانده اوکانه شول یعنی دوئ په فساداوسرکښي کښي دومره غوپه شول چي د حقي لاري لیدلوڅخه ړانده اودحق له اوریدلوڅخه کاڼه شول دغه ددوئ سمي لاري ته نه رهبري کیدل یې له ړندوکڼوسره تشبیه کړی دی ﴿ ثُمَّ تَابَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمۡ ﴾ (بیارجوع (په رحمت سره) وکړه الله په دوئ باندی) قرطبی وایي چي په کلام کښي اضمار(پټ توری) شته هغه داچي الله دوئ ته فتنه ورولیدله اودوئ توبه وکښله الله یې توبه قبوله کړه (١)﴿ ثُمَّ عَمُواْ وَصَمُّواْ كَثِيرٞ مِّنۡهُمۡۚ ﴾ (بیاړانده اوکاڼه شول (دحق له لیدلواواوریدلو څخه) ډیرله دوئ څخه) یعنی وروسته دحق له څرګندیدلودوهم ځلي بیاړانده اوکاڼه شول ﴿ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ بِمَا يَعۡمَلُونَ ﴾ (اوالله ښه لیدونکی (عالم) دي په هغوکارونوچي کوي یې دوئ) دادوئ لپاره وعیداو تهدیددی له دي وروسته الله تعالی دګمراه نصرانیانو عقائدداسي څیړي ﴿ لَقَدۡ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَۖ ﴾ (خامخاپه تحقیق کافران شوی دي هغه کسان چي وایي دوئ (له ډیره جهله) چي بیشکه الله همدغه مسیح زوي دمریمي دی) ابوالسعودوایي چي دغه دیهودانوله قبائحو وروسته دنصرانیانو په تفصیل شروع اوپیل دی چي ددوئ دفاسدواقوالوبطلان دي هغوئ (یعقوبیه) ډلګی به ویل چي (مریمي) اله وزیږاوو اوداسی ګومان یې کاووچي الله تعالی دحضرت عیسی په ذات کښي منحل او ورسره متحد شو(تعالی الله عن ذلک علوّاکبیرًا) (٢)﴿ وَقَالَ ٱلۡمَسِيحُ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمۡۖ ﴾ (اوویل به مسیح چي ای (اولاددیعقوبه !) عبادت کوئ تاسی (یوازی دهغه) الله چي رب دی زمااوستاسی) هغه ذات چي هرڅه دده په وړاندی ذلیل اوهرموجود ورته عاجزاوخاشع دی ابن کثیروایي چي لومړنۍ هغه کلمه چي حضرت عیسی ﷺ په کوچنيوالی کښي وویله داوه چي (انی عبدالله) اوداسی یې ونه ویل: (انی انا الله) اویا (ابن الله) بلکه ویل یې: (انی عبدالله اتانی الکتاب وجعلنی نبیا) (٣) قرطبی وایي چي الله (جل جلاله) په دوئ باندی په غوڅه توګه دلیل راووړچي دوئ وړباندی اقرارکوی نوویې ویل: ﴿ وَقَالَ ٱلۡمَسِيحُ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمۡۖ ﴾ نوکله چي مسیح وایي یارب یاالله بیابه

---

١-القرطبی ٦/ ٢۴٨

٢-ابوالسعود ٢/ ۴٩

٣-ابن کثیر ١/ ۵٣٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

څنګه خپل ځان په الوهيت ستايې ؟ دغه محال دی (۱) ﴿ إِنَّهُۥ مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ ﴾ بيشکه شان دادی هرڅوچي شريک ونيوله الله سره (په عبادت کښي بل شی) نوپه تحقيق حرام کړی دي الله په ده باندی جنت) يعنی څوک چي دغيرالله په ألوهيت عقيده لری نوهغه به هيڅکله جنت ته داخل نشی ځکه جنت دموحدينو هستوګنځي دی ﴿ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُ ﴾ اوځای دده اورود(دوزخ ) دی ﴿ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ ﴾ ( اونشته ظالمانوته هيڅ مدد کونکی) له اوره ژغورونکی چي عذاب ځنی دفع کړی ﴿ لَّقَدۡ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ ثَالِثُ ثَلَٰثَةٖ ﴾ ( خامخاپه تحقيق کافران شوی دي هغه کسان چي وايې دوئ بيشکه الله دريم له دريو (معبودانو) څخه دی ) دوئ نصرانيانويوه ډله ده چي النسطوريه اوملکانيه يې بولی چي عقيده لري الهيت (ددريوتنوترمينځ مشترک دی ) الله ، عيسی اومريم اوهريوله دوئ ځنی اله دی ځکه نوددوئ دغه خبره چي وايې ( الاب والابن وروح القدس ) مشهوره شوی دی (۲) ﴿ وَمَا مِنۡ إِلَٰهٍ إِلَّآ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ ﴾ حال داچي نشته بل هيڅ لائق د عبادت مګر(خو شته) معبوديو( چي الله دی ) په وحدانيت موصوف اوله سيال اومثال نه منزه او متعال دی ﴿ وَإِن لَّمۡ يَنتَهُواْ عَمَّا يَقُولُونَ ﴾ اوکه وانه وښتل دوئ له هغې خبري چي وايې ( يعنی دتثليث له عقيدې) ﴿ لَيَمَسَّنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ (نوخامخاوبه رسيږي هرومروهغوکسانوته چي کافران شوي دی له دوئ ځنی عذاب دردناک) په دنيااوپه آخرت کښي ﴿ أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى ٱللَّهِ وَيَسۡتَغۡفِرُونَهُۥ ﴾ آيانوتوبه نکوی دوئ الله ته اونه غواړی ښښنه له ده څخه ؟) استفهام دتوبيخ لپاره دي معناداچي آياله دغوباطلوعقائدوڅخه توبه نکوي او له دي ناروااويلوچي الله ته داتحاداوحلول نسبت کوي ښښنه نه غواړی ؟ ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ (اوالله ښه مغفرت کونکی ( د خطيئاتو ) ډيرمهربان دي ) يعنی مغفرت ورته کوي اوورباندی رحم کوی که دوئ توبه وباسی بيضاوی وايې چي پدی استفهام ﴿ أَفَلَا يَتُوبُونَ ﴾ کښي ددوئ په کفرباندی داصرارکولوڅخه تعجيب دي ﴿ مَّا ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَ إِلَّا رَسُولٞ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِ ٱلرُّسُلُ ﴾ (ندی مسيح زوي دمريمې مګريورسول دي ( اوخدای نه دی اګرکه پلارنلري اومړی ژوندی کوي) په تحقيق تېرشوی دي پخواله ده څخه ( نورډير) رسولان ) يعنی ندی مسيح مګررسول لکه نورپيغامبران چي دي مړی ژوندي کوی همداسی به دموسی عليه السلام په لاس کښي لکړه ژوندي کيدله هغه به ښامارجوړه شوه هغه تردي خوراعجيبه وه اوکه دی بې پلاره زيږيدلی اوپيداشوی دي نوپه تحقيق سره چي آدم عليه

---

۱-القرطبی ۲/ ۲۴۹

(۲) سدی وايې چي دغه آيت ددوئ په هکله نازل شوی چي دوئ به مسيح اومورېې له الله سره دوه خدايان يوځای کول نو الله به يې ددريومعبودانودريم ګڼه اوپه البحرالمحيط کښي وايې چي يوجوهراودرې اقانيم (اب ، ابن ، روح القدس ) اودغه درې سره يو(اله)دي لکه چي لمر،وړانګو ، تکی اوتودوخی ته شامل دی دوئ ګومان کاوه چي پلاراله اوزوی اله اوروح القدس اله اوداټول ييايو اله دي دغه خبره خوپه ښکاره توګه باطله ده ځکه درې عددونه يونشي کيدای اونه هم ديوه عدد درې کيدلای شی.

Bawar.net



السلام بې له موره اوبې له پلاره پيدا شوى اودازيات نادره اوغريبه پيښنه وه داهرڅه تول دالله (ج) له لوري اودغه موسى اوعيسى عليهما السلام دالله تعالى دافعالواوشئونومظاهردي ﴿ وَأُمُّهُۥ صِدِّيقَةٌ ﴾ اومورد ده ډيره رښتنى ) وه دغه په رښتنولى كښې مبالغه ده ﴿ كَانَا يَأْكُلَانِ ٱلطَّعَامَ ﴾ وودوى دواړه (موراوزوي ) چې خوړه به يې طعام ( په شان (دنوروم‌خلوقاتو ) يعنى هغه لكه نورمخلوقات غوندي مخلوق وولـه هډوكو، غوښواورگونو، پلو(اعصابو ) څخه جوړوو پدې كښې باريكه اشاره دې ته ده چې هرهغه څوک چې خواړه خورى نوبه اورمرود هغوبيرته ايستلوته اړوي اوڅوک چې همداسى وي نوبياله عبادت كولو سره نه ښايي چې په خدايې ونيول شي اوياڅنگه به څوک فكركوي چې هغه اِله دى ؟ ﴿ ٱنظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ ٱلْـَٔايَـٰتِ ﴾ ( وگوره څرنگه بيانوو مونږدوئ ته دلائل د(توحيد ) يعنى دغه ددوئ دحال څخه تعجب كول دى چې څرنگه يې د (عيسى )(عليه السلام) اومورد هغه دالوهيت دعوى كوى وگوره چې څرنگه مونږددوئ دعقيدې دبطلان څرگنددلائل دوئ ته بيانوو ﴿ ثُمَّ ٱنظُرْ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴾ بياوگوره ( دوئ ته ) چې څرنگه گرزيدونكى دي ( له حقه ) يعنى دحق له اوريدلوڅخه اوپه هغه كښې له تأمل كولوڅخه څرنگه گرزى ؟ سره له دغه څرگندبيانه لكه دځكندي غرمې لمرچې روښانه وي بياهم دوئ اعراض كوي ﴿ قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴾ ووايه اي محمده ! دوئ ته چې ) آياعبادت كوئ تاسى بې له الله څخه دهغه شى چې مالک نه دي دپاره ستاسى د(دفع كولو ) دضرراونه د( رسولو ) دنفعي ( گټې ) (١) ﴿ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ اوالله هم دى ښه اوريدونكى (ستاسودااقوالو ) ښه عالم (ستاسوپه احوالو ) دآيت په ترڅ كښې ددوئ ترټنه راغلى چې دوئ دهغه چاعبادت كاووچې دضررله دفع كولواوډگټې له رسولوڅخه عاجزوو ﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَا تَغْلُوا۟ فِى دِينِكُمْ غَيْرَ ٱلْحَقِّ ﴾ ووايه اى محمده ! چې اى اهل كتابومه كوئ تجاوزله حده په (خبره) ددين خپل كښې اوداسى مبالغه اوافراط مكوئ لكه چې ستاسوپخوانيوبه كاووچې تاسى به وايا ست چې عيسى اِله دى اوداله زوي دى قرطبى وايې چې ديهودانوغلودحضرت عيسى په هكله داوه چې هغه حلالونى زوي نه دي بلكه دزنازوي (حرامزاده ) دى ( العياذبالله ) اودنصاراووغلوبياداده چې ويل بې هغه اله دى ؟ (٢) ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوٓا۟ أَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا۟ مِن قَبْلُ ﴾ اومه كوئ متابعت دځتى خواهشاتود هغه ) قوم چې (له ډيره جهله) په تحقيق گمراه شوى دي په خوا(له دى نه ) يعنى تاسودخپلو اسلافواو امامانوپيروي مه كوئ كوم چې درسول الله صلى الله عليه وسلم تربعثت پخوالاگمراهان وو ﴿ وَأَضَلُّوا۟ كَثِيرًا ﴾ اوگمراهان كړى دي دوئ ډيرخلک (وَضَلُّوا۟ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ) اوگمراه شوي دي دوئ له سمي صافى

---

١ – په البحر المحيط كښې وايې چې كله الله تعالى په عقلى اونقلي دلائلودحضرت عيسى الوهيت باطل كراودوئ يې توبې كولوته راوغوښتل خوچې ښنه وغوارى بيايې و فرمايل عيسى (عليه السلام) دنفعي رسولواوزيان دفع كولوتوان نلري څوک چې داسى وي هغه بياهډوكله هم له الوهيت سره ورنه دى دوئ يې په دي خبره چې اله يې بولى وترټل. البحر ۳/۵۳۸
٢ – القرطبى ۶/۲۵۲

Bawar.net



لاري قرطبي وايې چي د(ضلوا) دكلمې تكرارددي اشارې لپاره دى چي دوئ پخوااووروسته گمراهان شوي وو له دوئ څخه مراددیهودانو او نصرانيانو اسلاف دي هغه چي دگمراهي لاره يې جوړه كړي وه اوبياور باندى تلل اوعمل يې كاوو(۱)﴿ لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ﴾ ( لعنت كړى شوى دي په هغو كسانوچي كافران شوي دي له بنى اسرائيلو څخه په ژبه دداؤدسره او(په ژبه د ) عيسى زوي دمريمې ) يعنى الله عزوجل دوي په زبوراوانجيل كښي ملعون گڼلي دي ابن عباس وايې چي دوئ په هره ژبه په لعنت ككړدي دموسى عليه السلام په وخت كښي په تورات، دداود عليه السلام په وخت كښي په زبوردعيسى عليه السلام په عهدكښي په انجيل اودرسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كښي په قرآن كښي دوئ معلون بلل شوي دي(۲) مفسرين كرام وايې چي كله هم اصحاب السبت دشنبې په ورځ تجاوزوكړنو حضرت داؤدعليه السلام ښېراورته وكړه الله هغوئ بيزوگان مسخ كړل او اصحاب المائده چي كله په عيسى عليه السلام كافران شول نوعيسى عليه السلام ورته ښېراوكړه او خنزيران جوړشول ﴿ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴾ دا(لعنت پردوئ ) په سبب ددي ووچي نافرمانى يې كوله ( له احكامودالله څخه ) اووودوئ چي تېريدل به( له حدودالله څخه ) وروسته الله تعالى ددوئ بدحال داسي بيانوى ﴿ كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ ﴾ ووددوئ چي يوبل به يې نه سره منع كول له هغه بدعمله چي دوئ به كاوو﴿ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴾ قسم دى ( خامخا ) بدووهغه كارچي دوئ به كاوو؛ زمخشري وايې داددوئ دبدكارپه هكله تعجيب دي چي په قسم باندى مؤكدراغلى نوافسوس دمسلمانانوپه حال چي دوئ هم له نهى عن المنكرڅخه داسى مخ اړولى ته به واهيځ شى نه دى له دي سره چي دالله په كتاب كښي پدى باب مبالغې لولى(۳) په البحرالمحيط كښي راوړي چي دغه ددوئ منكرفعل په څرگند كول اودهغه مخنيوى نه كول الله په قسم سره بدوگڼه اوگناه چي وكول شى ښايې چي پټه كړل شى څكه حديث شريف داسى راځي چي: ( من ابتلي منكم بشئ من هذه القاذورات فليستتر) څوک چي مبتلا شي له تاسى څخه په دغوپليتوباندي نو هغه دي پټ كړي ) كله چي په ښكاره توگه گناه كول كيږي خلگ ورسره عادت نيسى اوڅوک يې مخنيوى نكوي نودغه گواكي دگناه په كولوهڅونه اودهغې د خورولواودېرولوسبب دى (۴)﴿ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ ( ته به وينى ډيرله دوئ چي دوستى به كوى له هغو كسانو سره چي كافران شوي دي ) يعنى ته به ډيريهودان وينى چي له مشركانوسره به دوستى پالى اودا په سبب دبغض اوكينې له رسول الله صلى الله عليه وسلم اومؤمنانوسره مرادله دغوكسانوڅخه (كعب بن الاشرف ) اودهغه ملگري دي اوملگري دي

۱-القرطبى ۲۵۲/۲
۲-البحر ۵۳۹/۳
۳-الكشاف ۵۱۹/۱
۴-البحرالمحيط ۵۴۰/۳

Bawar.net



﴿ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ ﴾ ( بیاقسم دي چي) خامخابد ووهغه شی چي پخوالیږلی دوئ ته خانونو ددوئ ) یعنی بددی هغه اعمال چي دوئ دآخرت لپاره استولي دي ﴿ أَن سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾ (چي هغه شي موجب وو ددي ) چي په غضب شوالله پردوئ دغه (مخصوص بالذم ) دي یعنی بددی هغه څه چي دوئ دآخرت لپاره لیږلی دالله قهراوغضب پردوئ باندي ﴿ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴾ اوپه عذاب کښي به دوئ تل وي ﴿ وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ ﴾ اوکه وي دوئ چي ایمان یې راوړی وي پرالله اونبی اوپه هغه کتاب چي نازل شوی دی ده ته نوبه یې دامشرکان دوستان نه وونیولی یعنی که یهودانوپه الله اونبی باندی په رښتنوالی ایمان راوړی واي اوپرهغه کتاب چي دوئ ته نازل شوي دي نوبه یې مشرکان په دوستی نه نیول ﴿ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴾ اولیکن ډیر(کسان) له دوئ څني فاسقان دي یعنی دایمان له دائرې اودالله له طاعت څخه وتلي دي.

بلاغت:

۱- (لَسْتُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ )پدې تعبیرکښي دومره تحقیراوتصغیردي چي تري پورته نشته؟([1]).

۲- (وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ) دالله (جل جلاله) دربوبیت یې دوئ ته په دعوت کې دتلطف لپاره نسبت کړي دي.

۳ - (فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ) دلته یې اسم ظاهرپه مضمرباندی غوره کړځوچي پدوئ باندی دکفر رسوخ تثبیت شی.

۴- (بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ) دمضارع صیغه یې ترماضی چاڼ کړه ترڅودماضی حال استحضاروشی چي ددوئ فضاعت انځورکړي اودآیتونودسرونو رعایت وشی.

۵ - (فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ ) دالله (جل جلاله) اسم جلیل ظاهردضمیرپه ځای راوړل شوي چي دامر هیبت اوپه زړونو کښي ویرونه وروزي.

۶ - پدې کلام کښي چي فرمایې : (فَعَمُوا وَصَمُّوا ) استعاره راغلی اوددوئ اعراض له هدایت اوایمان څخه یې له ړندوالی اوکوڼ والی سره تشبیه کړي دي.

۷ - (انظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ ) (ثُمَّ انظُرْ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ) ابوالسعودوایې چي د(انظر) یعنی دکتلو امر یې په تعجب کښي مبالغې ته اشاره ده اود(ثم) کلمه بیاددواړوکتلو ترمینځ تفاوت ښیې یعنی دغه زمونږدآیتونوبیان یوبدیع اوخورانادراوزښته څرګنداوواضح دي اوددوئ اعراض تردي لاهم عجیبه اونادردي ([2]).

---

۱-ابوالسعود۲/ ۵۰

۲-ابوالسعود۲/ ۵۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۸- (لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ) ددوئ دبدو اعمالو تقبيح او تعجب دي چي په قسم سره ستايل شوي

**فوائد او ګټي:**

ځينو محققينو دالله (جل جلاله) پدي قول کښي چي فرمايي: (قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا) وايي چي څرنګه دعيسى عليه السلام په حق کښي داسى راغلى نو بيا ستادولى په شان کښي څه خيال دي چي آيا هغه دنفع او ضرر خاوند کيداي شي ؟!.

**تنبيه:**

ابن کثير وايي چي دغه آيت کلماتي چي فرمايي: (وَأُمُّهُ صِدِّيقَةٌ) پدي دلالت کوي چي حضرت مريمه نبى نه ده لکه چي ابن حزم ګومان کوى او يا نورڅوک وايي چي (ساره) او يا دموسى (عليه السلام) مورنبى وه دوئ استدلال کوي چي ملائکو هغوئ (ساره) او (مريمي) ته خطاب کړى خو هغه څه چي جمهور علماو ايي دادي چي الله پاک پرته له نارينه وو څخه پيغمبر او نبى نه دى راستولى (وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِمْ) او الاشعري پدي وروستى خبره باندي اجماع رانقل کړى ده[۱]

**الله تعالى فرمايي:**

﴿ ۞ لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا ۖ وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٨٢﴾ وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ۖ يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿٨٣﴾ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ ﴿٨٤﴾ فَأَثَابَهُمُ اللَّهُ بِمَا قَالُوا جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٥﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿٨٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿٨٧﴾ وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنتُم بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ الْأَيْمَانَ ۖ فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ ۖ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ۚ ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ ۚ وَاحْفَظُوا أَيْمَانَكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٨٩﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٩٠﴾ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

---

۱- ابن کثير ۱/ ۵۳۷

Bawar.net

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴿٩١﴾ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٩٢﴾ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوا وَّآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوا وَّآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٤﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ﴿٩٥﴾ أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩٦﴾ المائدة: ۸۲ - ۹۶

دنزول سبب:

أ - ابن عباس رضى الله عنهما وايي يو سړي رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ته راغي ورته ويل يې: اى دالله پيغمبره ! زه چي كله غوښه وخورم دښځولپاره تيارشم اوشهوت مې په سرواخلي اوبيشكه چي مانورغوښه په ځان حرامه كړه الله پاک دا آيت نازل (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ) ([1])

ب: - انس رضى الله عنه وايي هغه ورځ چي دشرابو دحرمت حكم نازليد وماخلكوته شراب ورويشل اوددوئ ساقي وم مونږ د(ابى طلحة ) په كوركښي ناست وو دپخو اوخامو خرماوواودانګورو(فضيخ) شراب ووچي يوغږكونكى داسي چيغه وكړه ؛ بيشكه چي شراب حرام شول نو(انس ) (ﷺ) وايي چي خلكودمديني منوري په كوڅوكښي شراب توى كړل (ابوطلحة ) ووېل ولاړشه اوشراب بهرتوى كړه ځيني كسانوووېل چي هغه كسان بدمرغه دي چي په ګيډه كښي يې شراب وي نو دا آيت نازل شو چي:

(لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا) .

تفسير:

﴿لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ (خامخاومي به ته ډيرسخت له ټولوخلكوله جهته دعداوته له هغوكسانوسره چي مؤمنان دي يهوديان اوبل هغه كسان چي مشركان دي) لام دقسم لپاره دي يعنى قسم دي اى محمده چي ډيرسخت دښمنان دمسلمانانو يهوداومشركان دي

﴿وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ﴾ (اوخامخاومي به ته ډيرنژدي له ټولوخلكوڅخه له جهته ددوستى له هغو كسانوسره چي مؤمنان دي هغه كسان چي وايي بيشكه مونږنصارى يو) دادحبشي دپاچانجاشي او ملګروپه باب رانازل شوي دي زمخشري وايي چي الله

1 - اسباب النزول ص / ۱۱۷ - القرطبى ۲ / ۳۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تعالی د یهودانو هغه دحق نه منلو لپاره سخت دریز او د نصاراوونرم دریزاو اسلام ته آسانه میل وستایل اویهودان یې دمشرکانو سیالان وبلل چې له مسلمانانو سره سخته دښمني لري بلکه ترهغوئ لازیات دي ځکه چې ترهغوئ یې دمخه ذکرکړل (۱) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا ﴾ ( دا دوستي) په سبب ددي چې بیشکه ځینی له دوئ ربنتیني عالمان اوزاهدان پوهان دي) ځکه نو مسلمانانو ته نژدې دي . ﴿ وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾ اوبیشکه چې دوئ نه کوی تکبراولویې (دحق له منلو ځخه ) لکه یهودان غوندی متکبرنه دي بیضاوی وایې پدې کښې دادلیل نغښتی دی چې دعلم اوعمل لاره خپلول اوله شهواتو ځخه ځان ساتل دستاینی وړکاردي که څه هم له کافرځخه ترسره شی ﴿ وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ ﴾ ( اوکله چې واوري دوئ هغه (کلام دالله) چې نازل شوی دي طرف دپیغمبر ته ) یعنی کله چې قرآن کریم چې په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی کتاب دي اوري ﴿ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ ﴾ ( نووینی به ته سترگی ددوئ چې بهیږي (تویوي ) له اوښکو )دالله له ویري او دزړونودنرمي له وجهي چې دالله جل جلاله کلام وربandi اغیزه کوي ﴿ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ﴾ ( له جهته ددي چې وپیژانده دوئ له حق ځخه ) یعنی له جهته ددې چې دغه دالله کلام اوحق دي ﴿ يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا ﴾ ( وایې دوئ ای ربه زمونږایمان راوړی دي مونږ) یعنی دوئ وایې ای زمونږ ربه مونږایمان راوړی ستاپه نبی اوکتاب اودهغه موتصدیق کړی دي ﴿ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴾ ( نوولیکه مونږ له شاهدانو(منونکو ) یعنی له محمدی امت سره موملگری کړه هغوئ چې دقیامت په ورځ په نورو امتونو باندی شاهدی وایې ابن عباس رضی الله عنه وایې چې دغه آیت دنجاشی اودهغه دملگروپه هکله نازل شوي کله چې جعفربن ابی طالب ﷺ په حبشه کښې دوئ ته دقرآن کریم آیتونه ولوستل نوهغوئ وژړل آن تردي چې ږیری یې په اوښکولمدې شوي (۲) ﴿ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ ﴾ (اوڅه باعث دي پرمونږچې نه به راوړوایمان په الله اوپه هغه چې راغلی دي مونږته له حق ځخه (چې رسول او قرآن دي) یعنی دوئ به ویل ولی به مونږایمان نه راوړو؟ پداسی حال کښې چې حق راته ځرگند اوښکاره شودوئ دغه خبره دهغه یهودوپه ځواب کښې کوله چې دوئ ته یې داسلام په راوړلو پیغور ورکاووپه البحرالمحیط کښې وایې چې دغه انکاراواستبعاددوئ له نه ایمان راوړلوځخه سره له دي چې موجبات یې شته دحق پیژندنی په معناده (۳) ﴿ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ ﴾ حال داچې طمع (هیله ) لروددي چې داخل به کړی مونږ رب زمونږسره له قوم صالحانو(جنت ته چې محمدی امت دي ) ﴿ فَأَثَابَهُمُ اللَّهُ بِمَا قَالُوا ﴾(پس بدل به ورکړی دوئ ته الله په سبب دهغه څه چې ویلی دوئ ) یعنی په ایمان اوتصدیق اودحق په اعتراف

---

۱-الکشاف۱/ ۵۳۱
۲-ابن کثیر۱/ ۵۳۹
۳-البحر۴/ ۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کولوسره به الله داسی بدل ورکړی ﴿ جَنَّـٰتٍ تَجۡرِی مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَـٰرُ خَـٰلِدِینَ فِیهَاۚ ﴾ جنتونه چي بهيږي له لاندي (دونواومانيو) ددئ ويالې چي تل به وی په هغوکښي ﴿ وَذَ ٰلِكَ جَزَاۤءُ ٱلۡمُحۡسِنِینَ ﴾ (اودا(جنت) جزادنيکی کونکوده) چاچي نيک عمل کړی اونيت يې صفاکړی دی بيا وروسته الله جل جلاله دبدمرغ کسانوحال داسی بيانوی ﴿ وَٱلَّذِینَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔایَـٰتِنَاۤ أُو۟لَـٰۤىِٕكَ أَصۡحَـٰبُ ٱلۡجَحِیمِ ﴾ اوهغه کسان چي کافران (منکران) شوی دي اونسبت ددروغويې کړی آيتونوزمونږته همدغه کسان صاحبان ددوزخ (جحيم) دي ابوالسعودوايې چي ددوئ ذکرکول دالله دآيتونودمصدقينوپه مقابل کښي دترغيب اوترهيب لپاره دي (١)﴿ یَـٰۤأَیُّهَا ٱلَّذِینَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَیِّبَـٰتِ مَاۤ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكُمۡ ﴾ (ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دي (ای مؤمنانو) مه حراموئ تاسی پاک لذيذ له هغوشيانونه چي حلال کړي دي الله لپاره ستاسی) طبری له عکرمه رضی الله عنه څخه روايت کوی چي دنبی صلی الله عليه وسلم په اصحابانوکښی ځينی داسی کسان ووچي قصديې وکړخان(خصی) کړی اوله غوښوخوړلواوخپلوميرمنوسره له جماع (کوروالی) کولوڅخه ډډه وکړی اوحرام يې وګڼی نودغه آيت نازل شوچي تاسی داسی مکوئ چي دزهداوتقوی په پلمه حلال شيان دپرېښودلوپه مبالغه حرام بولئ ﴿ وَلَا تَعۡتَدُوۤا۟ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا یُحِبُّ ٱلۡمُعۡتَدِینَ ﴾ اوتېری مکوئ (له حدودو دالله څخه)چي حلال حرام کړي يعني افراط اوتفريط مکوي ﴿ وَكُلُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ حَلَـٰلࣰا طَیِّبࣰاۚ ﴾ اوخورئ تاسی له هغه څيزه چي روزی درکړی ده تاسی ته الله جل جلاله (چي) حلاله پاکيزه (ده) په التسهيل کتاب کښي وايې چي معناداچي له حلال خوراک اوميرمنواونوروشيانوڅخه خوندواخلی اوچي خوراک يې ځانګړی ذکرکړڅکه هغه دانسان ترټولوسترحاجت اواړ تياده (٢)﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ٱلَّذِیۤ أَنتُم بِهِۦ مُؤۡمِنُونَ ﴾ (اووويرېږئ له هغه الله څخه چي تاسی ورباندی ايمان لرونکی يئ !) دغه خبره دتقوی لپاره په خورانرمه لهجه بلنه اودعوت دی لکه چي هغه فرمايې: تاسوخپل ايمان دالله د طاعت دتقصيرپه وجه له لاسه مه ورکوئ چي بيابه دغه ستاسودافسوس اوارمان سبب وی څکه ايمان په الله تعالی له الله څخه دتقوی اوپرهيزګاري دمبالغي موجب وي ﴿ لَا یُؤَاخِذُكُمُ ٱللَّهُ بِٱللَّغۡوِ فِیۤ أَیۡمَـٰنِكُمۡ ﴾ (نه نيسی تاسی الله په لغوه سره په قسمونوستاسی کښي) يعنی الله پاک ستاسی په بيهوده قسمونوچي واياست (لاوالله) اويا(بلی والله) نه مؤاخذه کوي چي ستاسی ژبه بې له قصده ورباندی ګرېدلی وي (بی اختياره موله خولې وتلی وي) ﴿ وَلَـٰكِن یُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ ٱلۡأَیۡمَـٰنَۖ ﴾ وليکن نيسی تاسی (په ماتولود)هغه (عهد) سره چي کلک کړی وي تاسی قسمونه (پرهغه دزړه له قصده) کله چي حانث شی ﴿ فَكَفَّـٰرَتُهُۥۤ إِطۡعَامُ عَشَرَةِ مَسَـٰكِینَ مِنۡ أَوۡسَطِ مَا تُطۡعِمُونَ أَهۡلِیكُمۡ ﴾ نوکفاره (دماتولو) ددې قسم طعام ورکول دی لسومسکينانوته له اوسطي (درجې) دهغو خوړلوچي طعام ورکوئ تاسی (په هغه سره) خپلوکورنيوته

---

١-ابوالسعود٢/ ٥٥

٢-التسهيل ص/ ١٨٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ابن عباس رضی الله عنه يې د(اعدل) په معنابولی او ابن عمر رضی الله عنه وايې چې اوسط طعام ډوډۍ اوخرماده اوډوډۍ اوكشمش (زبيب ) دي اوتر ټولوغوره چې مونږيې خپلوخپلوانوته طعام وركووهغه ډوډۍ اوغوښې دي([1]) ﴿ أَوْ كِسْوَتُهُمْ ﴾ ياجامې وركول دي (دغولسومسكينانوته) چې دهريوه لپاره يوه جامه ده چې بدن يې پټ كړي ﴿ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ ﴾ ياآزادول د(يوې ) غاړې دي (دمريې ) دالله لپاره په البحرالمحيط كښې وايې چې د علماوو اجماع پدې راغلی چې (حانث) ته اختياردي كه ډوډۍ مسكينانوته وركوی كه جامې وركوي اوكه مريې آزادوي([2]) ﴿ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ﴾ نوهرڅوک چې ونه مومی (له دغومذكوره شيانوڅخه يوهم ) نو روژه نيول ددريوورځو دي([3])(دغه (ذكر شوی)شيان كفارت دقسمونوستاسی دي كله چې قسم يادكړي (اوبيايې مات كړی) ﴿ وَاحْفَظُوا أَيْمَانَكُمْ ﴾ اوو ساتی تاسی قسمونه خپل (له هرډول نقصانه ) يعنی له ضرورته پرته قسمونه مه اخلئ ابن عباس رضی الله عنهما يې داسی معنا كوي چې قسم مه آخلئ !ابن حجروايې معناداچې قسمونه مه پريږدئ بغيرله تكفيره ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ داسي (چې ديمين احكام يې بيان كړي ) بيانوي الله تاسي ته آيتونه خپل دشرعی احكامو) لپاره ددي چې شكروكاري دالله په هدايت اوتوفيق دركولوتاسوته) ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ ﴾ ای هغوكسانوچې ايمان يې راوړی دي (ای مؤمنانو ) بيشكه همدا خبره ده چې شراب اوقمار ، ابن عباس رضی الله عنه وايې خمرټولوهغومشروباتوته ويل كيږي چې نشه لري او ميسر قمارته وايې چې دجاهليت په وخت كښې به يې كاوو ﴿ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ ﴾ (اوبتان اوغشی ) يعنی هغه بتان چې دعبادت لپاره درول شوی اوغشی هغه چې دبيت الله له واكمنواودبتانوله خادمانوسره به ايښودل شوي ووابن عباس او مجاهدرضی الله عنهما وايې چې(انصاب)هغه تيږي وې چې دوئ به خپل خيراتونه هلته حلالول او(ازلام) بياهغه دفال غشی وو([4]) ﴿ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ ﴾ (داخلورواړه ټول ) پليت دي له كارودشيطان څخه دي. داسی مردارشيان دي چې عقل يې نه خوښوي اوشيطان يې خلكوته ښايسته كوي ﴿ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ نوځان وساتئ تاسی له دي (پليتو ) څخه لپاره ددي چې نجات ومومئ تاسی (پدې ځان ساتلوسره ) اوسترثواب موپه برخه شی ﴿ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ﴾ بيشكه چې هم داخبره ده غواړی شيطان چې واچوي په مينځ ستاسی كښې دښمنی اوكينه په (څښلو) دشرابواو(كولو ) دقمارسره

---

[1]-ابن كثير١/ ۵۴۳

[2]-البحر۴/ ۱۱

[3] - دحنفي مذهب اوحنبلی مذهب علماء د(ايمانود ) كفارت روژې پرله پسی بللی امام شافعی اوامام مالک رحمهما الله يې پرله پسی شرط نه گڼی طبری وايې چې هرډول يې ونيولی روادي ۱۰/ ۵۲۲

[4]-البحرالمحيط ۴/ ۱۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ ﴾ ( او اړوي تاسی له یاده دالله اولمانځه څخه) یعنی پدې شرابواوقماروهلوتاسی شیطان دالله له یادولوچي په هغه ستاسی ددنیا اوآخرت سمون راځي اوهمدارازله لمانځه څخه چي هغه ستاسی ددین ستنی ده منع کوي ابوحیان وایې چي الله تعالی په شرابواوقمارکښي دوه ورانې (مفسدې) ذکرکړې چي یوه یې دنیوی اوبله اُخروي ده دنیوی یې داچي شراوکینه ځینی راپورته کیږي اوځوک چي یې څښي بالآخره یې شلون اوتقاطع ته مجبوروي اوقماربازسړي یومخ ایزه فقرته رسوي ترهغوقمارکوي چي له شتویې خلاص کړي آن تردې چي پخپل اهل اوعیال هم قمارکوي اودینی ورانی یامفسدې یې داده چي: شراب له ډیری مستی اوطرب څخه سړئ دالله له ذکرڅخه باسی (۱)﴿ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴾ آیایئ تاسی منع کیدونکی ؟ اوښتونکی له دې بدوکارونویعنی واوړئ ) صیغه استفهام لپاره ده خومعنایې امردې ځکه نوحضرت عمررضی الله عنه وویل : (انتهینا ربنا انتهینا) یعنی منع شوای پروردګاره امنع شوو په البحرالمحیط کښي وایې چي دغه استفهام ترنهی لا أبلغ دې لکه چي ورته ویل شوي دي :پرتاسوهغه څه ولوستل شول چي مفاسدیې درلودل هغه چي دمنع کیدلوموجبات یې موجودي نوآیاتاسومنع کیږئ اوکه پخپل حال پاتی کیږئ ؟

﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا ﴾ اوومنئ تاسی (حکم د ) الله اوومنئ تاسی (حکم د ) پیغمبراووساتئ ځان تاسی (له مخالفت ددوئ نه) ﴿ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ ﴾ پس که وګرځیدلئ تاسی (له احکامو ددوئ اوورباندی موعمل ونکړ﴿ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴾ نوپوه شئ چي بیشکه هم داخبره ده چي پررسول زمونږ(محمدصلی الله علیه وسلم ) هم دارسونه (دپیغام ) ده ښکاره (روښانه په ښه وجه سره ) یعنی دهغه په ذمه ستاسي هدایت نه بلکه یوازی رسونه اوتبلیغ دي اوستاسی جزابه زه درکوم طبری وایې چي دغه دالله جل جلاله له لوري هغه چاته چي دالله امراونهی نه مني وعیددی لکه چي الله تعالی ورته داسی وایې: که زماله امراونهی څخه وګرځیدی نوزمادعذاب انتظاروباسئ اوزماقهراوغضب ته سترګي په لاراوسئ (۲) ابوحیان وایې چي پدی کښي له مبالغې ډک وعیددی ځکه په ترڅ کښي یې دادي چي ستاسوعقاب به مرسل (استونکی) درکوي نه رسول (استازي) (۳)﴿ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا ﴾ (نشته پرهغو کسانوچي ایمان یې راوړي اوکړي یې وي ښه (عملونه )هیڅ ګناه په هغه شی کښي چي خوړلی دي دوئ (له حرمت څخه پخوا )ابن عباس وایې کله چي دشرابودحرمت آیت نازل شو نویو چا ویل چي دهغو به څه حال وی چي شراب به یې خوړل اومړه شول اویابه یې دقمارڅخه خوراک کاوونو داآیت نازل شو چي ګواکي ګناه اوبدي دګناهونوپه کولوپوری تړلی اودوئ چي تر تحریم پخوامړه شوي ګناهګاران نه دي﴿ إِذَا مَا اتَّقَوا وَّآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ کله چي راتلونکوڅخه ځان وساتی او ټینګ وي په ایمان کښي اوکوی ښه (عملونه) نوپه دوئ

---

۱-البحرالمحیط ۴/۱۵
۲-الطبری ۱۰/۵۷۵
۳-البحر ۴/۱۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

د تیروشو وخوړلو ، څښلو ګناه نشته ﴿ ثُمَّ اتَّقَوا وَءَامَنُوا ﴾ بیا خان ټینګ کړي (له محرماتو څخه چي په حرمت یې عقیده لري ﴿ ثُمَّ اتَّقَوا وَأَحْسَنُوا ﴾ بیا (وروسته له هغه) پرهیز کوي (له شبهاتوهم ) او احسان کوي (ښه کړي خپل عملونه ) یعنی دوئ دالله دتقوی استمرار خپل کړي له محارمو څخه یې خان ژغوري هغه نیک عملونه کوي چي الله ته یې نژدی کوي ﴿ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴾ او الله خوښوي نېکي کونکی په تسهیل نومی کتاب کښي وایې دتقوی تکرارېې دمبالغې لپاره وکړچابیاویلی چي لومړي څل تقوی له شرک څخه دوهم څل له ګناهونو دریم څل بیا له هغو اعمالو څخه چي (لابأس به) وي څکه دوئ ویرېږي چي پدې کښي به (بأس) وي[1] ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ ﴾ ای هغو کسانو چي ایمان یې راوړی دي (ای مؤمنانو ) خامخا ازمويی تاسی هرومرو الله په یوه شی له ښکاره (په وخت د احرام کښي) چي رسیږي دخینو ) دهغوته لاسونه ستاسی (چي واړه وي ) او دخینو وهغوته نېزې ستاسی چي غټ وي بیضاوي وایې چي دغه آیت دحدیبې په کال نازل شوا وسبحانه وتعالی دوئ وازمویل هلته ښکار دوئ ته دومره نژدې او ډیروو چي په لاسونو او نېزو سره هم دهغوئ اخیستل اوول ممکن ووپه داسی حال کښي چي دوئ محرمین وو[2] په البحرالمحیط کښي وایې چي ښکار هغه څه ووچي دعربو دژوندانه او معیشت اړتیاوي یې پوره کولی او په کولو به یې خونداخیست پدی هکله دوئ ډیراشعار ویلي او ستایلي دي[3] ﴿ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ﴾ (لپاره ددي چي ښکاره کړی الله هغه څوک چي ویرېږي له ده نه په غیب سره ) یعنی ددي لپاره چي الله جلا کړي ویریدونکی دقوی ایمان خاوندان له ضعیف الایمانو څخه ﴿ فَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ نو هرهغه چي له حده تېري وکړی (په کولو دښکار په احرام کښي )پس له دي (منعي دښکاره) نو دي ده ته عذاب دردناک ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ﴾ ای هغه کسانو چي دوئ ایمان راوړي (اي مؤمنانو ) مه وژنئ تاسی ښکار حال داچي تاسی محرمان اوسئ (په حج او عمره باندی ) ﴿ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ ﴾ او هرهغه چي ووژنئ دا ښکار له تاسی څخه په قصدسره نو(پري) بدل دي په مثل دهغه چي وژلی یې دي له چارپایانو څخه (چي اوښ ، غوایې او پسه دي ﴿ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ ﴾ چي حکم به کوي په هغه سره دوه خاوندان دعدل( انصاف) له تاسی (مسلمانانو) څخه ﴿ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ ﴾ پدې حال چي هغه د(بدل حیوان) دنذر په ډول ورسولی شی کعبې ته (هلته حلال کړی شی او په مسکینانوو ویشل شی او که چیرته دښکار لپاره بیامثل له چارپایانو څخه نه وي لکه چوغکه (مرغی) او ملخ بیانو بیه یې ورکول کیږي ﴿ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ ﴾ (یا او ریاندی کفاره ده خوراک د(څوتنو) مسکینانو ) یعنی که چیری محرم هسی څه

---

١-التسهيل ١/ ١٨٧
٢-البيضاوي ص/ ١٢٠
٣-البحر ٤/ ١٢

Bawar.net



دتیروشووخورلو ،ځښلوګناه نشته ﴿ ثُمَّ اتَّقَوا وَّءَامَنُوا ﴾ بیاخان ټینګ کړي (له محرماتوڅخه چي په حرمت یې عقیده لري ﴿ ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا ﴾ بیا(وروسته له هغه) پرهیز کوي (له شبهاتوهم ) اواحسان کوي (ښه کړي خپل عملونه ) یعنی دوئ دالله دتقوی استمرارخپل کړي له محارموڅخه یې ځان ژغوری هغه نیک عملونه کوي چي الله ته یې نژدی کوي ﴿ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴾ اوالله خوښوی نېکي کونکی په تسهیل نومی کتاب کښي وایې دتقوی تکرارېې دمبالغې لپاره وکړچابیاویلی چي لومړي ځل تقوی له شرک څخه دوهم ځل له ګناهونودریم ځل بیاله هغواعمالوڅخه چي (لابأس به) وي څکه دوئ ویریږي چي پدې کښي به (بأس) وي[١] ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ ﴾ ای هغوکسانوچي ایمان یې راوړی دي (ای مؤمنانو) خامخاازمویی تاسی هرومروالله په یوه شی له ښکاره (په وخت داحرام کښي) چي رسیږي دځینو ) دهغوته لاسونه ستاسی (چي واړه وي ) اود ځینووهغوته نېزې ستاسی چي غټ وي بیضاوي وایې چي دغه آیت دحدیبې په کال نازل شواوسبحانه وتعالی دوئ وازمویل هلته ښکار دوئ ته دومره نژدې اوډیرووچي په لاسونواونېزوسره هم دهغوئ اخیستل اوونل ممکن ووپه داسی حال کښي چي دوئ محرمین وو[٢] په البحرالمحیط کښي وایې چي ښکار هغه څه ووچي دعربودژوندانه اومعیشت ارتیاوي یې پوره کولی اوپه کولوبه یې خونداخیست پدی هکله دوئ ډیراشعارویلي اوستایلي دي[٣] ﴿ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ﴾ (لپاره ددي چي ښکاره کړی الله هغه څوک چي ویریږي له ده نه په غیب سره ) یعنی ددي لپاره چي الله جلاکړي ویریدونکی دقوی ایمان خاوندان له ضعیف الایمانو څخه ﴿ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ نوهرهغه چي له حده تېري وکړی (په کولودښکارپه احرام کښي )پس له دي (منعي دښکاره) نودي ده ته عذاب دردناک ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ﴾ ای هغه کسانوچي دوئ ایمان راوړي (اي مؤمنانو ) مه وژنئ تاسی ښکارحال داچي تاسی محرمان اوسئ (په حج اوعمره باندی ) ﴿ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ ﴾ اوهرهغه چي ووژنئ داښکارله تاسی څخه په قصدسره نو(پري) بدل دي په مثل دهغه چي وژلی یې دي له چارپایانوڅخه (چي اوښ ، غوایې اوپسه دي ﴿ يَحْكُمُ بِهِۦ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ ﴾ چي حکم به کوي په هغه سره دوه خاوندان دعدل( انصاف) له تاسی (مسلمانانو ) څخه ﴿ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ ﴾ پدې حال چي هغه د(بدل حیوان) دنذرپه ډول ورسولی شی کعبې ته (هلته حلال کړی شی اوپه مسکیناتوووېشل شی اوکه چیرته دښکارلپاره بیامثل له چارپایانوڅخه نه وي لکه چوغکه (مرغی) اوملخ بیانوبیه یې ورکول کیږي ﴿ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ ﴾ (یاورباندی کفاره ده خوراک د(څوتنو ) مسکینانو ) یعنی که چیری محرم هسی څه

١-التسهیل ١/ ١٨٧
٢-البیضاوي ص/ ١٢٠
٣-البحر ۴/ ١٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ونه مومي چي ښکار کړي يې دي نو به هغه ښکار شوي بيه کړي او په هغه قيمت به يې خوراک رانيسي او په مسکينانو به يې وويشي هريوه ته به يوه پيمانه (مد) ورکول شي ﴿أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ﴾ ياپه برابري دهغه (طعام) روژه نيول دي لپاره ددي چي وڅکي سختي دعمل خپل داچي داحرام د حرمت يې هتک کړي دی په تسهيل نومی کتاب کښي وايې چي الله تعالی دمحرم دښکار کولو يادونه داسی وکړه چي لومړي يې دښکارپه مثل دڅارپايانو بدل وفرمايه بياخوراک ورکول (اطعام) اوبيا وروسته روژه نيول دامام مالک او جمهورو علماوو دامذهب دي چي دی اختيارلري اوداهغه خبره ده چي د(او) په توری عطف يې هم غوښتنه کوي اوابن عباس (رضی الله عنه) وايې چي داپه ترتيب سره دي (١)﴿عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ﴾ عفوه کړي ده الله له هغه شي چي پخواتېر شوي دي (پخواله تحريم څخه يې ښکاروي) ﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ﴾ اوهرهغه چي بيرته وګرځيده (ښکارکولوته په احرام کښي) نو کسات به واخلي الله له ده څخه په آخرت کښي ﴿وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ﴾ اوالله ښه قوی غالب دي څښتن دبدل اخيستو دي (له ګناهکارانو څخه) ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ﴾ (حلال کړي شوی دي تاسی ته ! (ای مسلمانانو) ښکاردبحراوطعام د(بحر) يعنی ای خلګوتاسی ته دسيندښکاراوخواړه که محرمين ياست اوکه نه روادي خواړه هغه لکه ماهی اونور ﴿مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ﴾ لپاره د نفع اخيستوستاسی اودپاره دنورو (مسافرانو) چي توښه يې کاندي ﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ اوحرام کړي شوي دي په تاسی ښکاردوچي څوچي اوسئ تاسی محرمان ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ اوويريږئ تاسی له الله هغه چي هم ده ته به ورټول کړل شئ (تاسي) دقيامت په ورځ اوستاسی په اعمالوبه جزادرکړی پدې کښي وعداو وعيد نغښتي دي.

**بلاغت:**

١- د(عداوة) او(مودة) ترمينځ دطباق صنعت دي چي له بديعی محسناتوڅخه ګڼل کيږي.

٢ - (تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ) يعنی له اوښکوپيمانه اوډکی شي اوددي لپاره يې بيا(فيض) خوتېدل توئيدل استعاره راوړه چي مبالغه يې وشی اويا داچي سترګي پخپله له ډيری ژړا راخوتېږي (٢)

٣ - (تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ) پدې کلام کښي مرسل مجاز دي جزء يې راوړي مرادخني کل دي يعنی دغاړي له ازادولو څخه مقصد دمريې آزادول دي.

۴ - (فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ) دلته استفهام اومرادخني امردي چي معنايې داسی راځي ځني منع شئ اوداترنهی أبلغ ده ابوالسعودوايې چي دخمراوميسردحرمت تاکيدپدې آيت کښي په څوتوکو راغلی دي يوداچي په (إنما) توري سره يې مصدره کړه اوبل داچي له بتانواوازلاموسره يې سيال وبلله بل داچي

---

١-التسهيل١/ ١٨٨

٢-وګوره دکشاف حاشيه١/ ٥٢١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دشیطان کاراوپلیت عمل بې وباله اودهغوئ له (عین) څخه يې داجتناب کولوامروفرمایه اودابې دخلاصون سبب وګڼل اوبیايې په هغوئ کښې چې څومره دنیوي اواخروي مفاسد شته هغه يې په ګوته کړل وروسی يې له هغوئ څخه منع کیدل د استفهام په صیغه راوړل چې (فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ) يې وفرمایل چې دوي ته خبرداري ورکړي چې دغه امرپه زجراوتهدید کښې خپلې وروستۍ مرحلې ته رسیدلی دی.

فائده:

دالله جل جلاله پدې قول چې فرمايې (فَاجْتَنِبُوهُ) تعبیرکول په حرمت کښې نص دي خوپه نهی اوتحریم کښې د(حرم) ترلفظ خورا ابلغ دی ځکه معنايې په بشپړه توګه له هغه څخه لیرې کیدل دي لکه دالله جل جلاله داقول چې فرمايې (وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ) ځکه کله چې نزدیکت یوشی ته حرام شي نوپخپله هغه شی خوپه طریقه اولی حرام دي همداسی پدې ځای کښې.

تنبیه:

په قرآن کریم دشرعي احکامو تعلیل نه بیانېږي اوکه چیرې بیا بیان هم شي نوهغه دلنډيزپه توګه وي خودلته الله جل جلاله په تفصیل سره علت بیان کړداسې يې وفرمایل چې دشرابو خوړلواوقمارو هلو په وجه دمؤمنانو ترمینځ کینه اوعداوت پیداکیږي دالله جل جلاله له لاري اوذکرڅخه سړی راګرزوي له لمانځه څخه يې غافل کوي همدارازشراب اوقماريې داسی وسایل چې دغه دشیطان عمل اوپلیت کاردي اوشیطان غواړي انسانان پدې سره وتښتوي اوبرمته يې کړی اوداټول ددي لپاره چې ددي دواړو رذیلو خویونواوکارونوضررونه اوخطرونه ځرګند شي وګوره دقرآن کریم اسرار وته([1])

الله تعالی فرمايې:

﴿جَعَلَ اللَّهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَائِدَ ذَٰلِكَ لِتَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٩٧﴾ اعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ وَأَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩٨﴾ مَّا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴿٩٩﴾ قُل لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٠٠﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ وَإِن تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ عَفَا اللَّهُ عَنْهَا وَاللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٠١﴾ قَدْ سَأَلَهَا قَوْمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا كَافِرِينَ ﴿١٠٢﴾ مَا جَعَلَ اللَّهُ مِن بَحِيرَةٍ وَلَا سَائِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ وَلَٰكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٠٣﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ قَالُوا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٠٤﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ تَحْبِسُونَهُمَا مِن بَعْدِ الصَّلَاةِ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ إِنِ

---

[1] - روائع البیان ۱/ ۵۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَرْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الْآثِمِينَ ﴿۱۰۶﴾ فَإِنْ عُثِرَ عَلَىٰ أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا إِثْمًا فَآخَرَانِ يَقُومَانِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْأَوْلَيَانِ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِن شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَا إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الظَّالِمِينَ ﴿۱۰۷﴾ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن يَأْتُوا بِالشَّهَادَةِ عَلَىٰ وَجْهِهَا أَوْ يَخَافُوا أَن تُرَدَّ أَيْمَانٌ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاسْمَعُوا وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿۱۰۸﴾ ﴾ المائدة: ۹۷ - ۱۰۸

## مناسبت اوترړاو:

کله چې الله تعالی په تېرو آيتونو کښې وفرمايل چې ښکار کول په محرم باندی حرام دي او په دي نزغ کښې يې دمرغانو او وحوشو له ښکار څخه منع وکړه پدي آيتونو کښې يې بيا دا وفرمايل چې کعبه شريفه الله پاک دخلکو لپاره باعث دقيام او انتظام گرځولی ترڅودوئ په زړونو کښې دهغې تعظيم واجوي او دهغې په وړاندی يو څوک هيڅ ته هم زيان ونه رسوي نو ځکه چې حرم دمرغانو او ښکارويو لپاره دامن ځاي ده همدارازد خلکو لپاره دامن سبب دي چې له آفاتو او مخافاتو څخه يې ژغوري او په دنيا او آخرت کښې نيکمرغي اوخوښي ورپه برخه کوي

## دنزول سبب:

أ - ابن عباس رضی الله عنهما وايي ځينو خلگو به له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه دملنډو په توگه پوښتني کولی مثلاً ورته ويل به يې زما پلار څوک دي ؟ چابه بياورته وويل زما اوښه ورکه شوي هغه چيرته ده ؟ نو الله جل جلاله بيا دا آيت نازل کړچې ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ وَإِن تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ عَفَا اللَّهُ عَنْهَا وَاللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿۱۰۱﴾ قَدْ سَأَلَهَا قَوْمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا كَافِرِينَ ﴾ (۱)

ب: - ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې (تميم داري) او(عدي بن بداء) مکې ته د تللو په لاره وود (بني سهم) له قبيلې څخه يو ځوان له دوئ سره ملګري شو او په لاره کښې هسی ځاي وفات شوچې هلته مسلمان څوک نه وو نو دوئ دواړو ته يې وصيت وکړاو خپل مال اسباب يې دوارثانو لپاره ورته پريښود هغوئ يې مال سامان وارثانو ته تسليم کړي وازی يو دسپينو زرو جام يې چې سره زر پکښې کارشوي وو ځنې ستون کړ بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم دوئ دواړو ته لوړه ورکړه چې دنوموړی دمال څخه موځه پټ کړي نه دي اونه يې په ورکه خبرياست !! خودغه جام بيا په مکه کښې وموندل شود (سهمی) له قبيلې دوه تنه وارثان ورغلل او ويل يې دغه جام د(سهمی) دي دمکې خلګو ورته وويل دغه مونږ له (عدی) او تميم ) څخه رانيول وارثانو ورته قسم واخيست چې زمونږ ګواهي دهغوئ ترشهادت حقداره او مونږ څه تجاوز نه دی کړی جام يې ځني ترلاسه کړاو دا آيت شريف ددوئ په هکله نازل شوچې: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ

---

۱- اسباب النزول ص/ ۱۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

فِي ٱلۡأَرۡضِ فَأَصَٰبَتۡكُم مُّصِيبَةُ ٱلۡمَوۡتِۚ تَحۡبِسُونَهُمَا مِنۢ بَعۡدِ ٱلصَّلَوٰةِ فَيُقۡسِمَانِ بِٱللَّهِ إِنِ ٱرۡتَبۡتُمۡ لَا نَشۡتَرِي بِهِۦ ثَمَنٗا وَلَوۡ كَانَ ذَا قُرۡبَىٰ وَلَا نَكۡتُمُ شَهَٰدَةَ ٱللَّهِ إِنَّآ إِذٗا لَّمِنَ ٱلۡأٓثِمِينَ ﴾.

لغتونه:

(البحيرة) له بحرڅخه اخيستل شوي اوهغه شق ته وايي ابوعبيده وايي چي هغه داسې اوښه وي چي پنځه خلې لنگه شي اوپه آخرخل يې نارينه جونگړی وزيږی نوبيايې غوږونه ورڅيری کړی اوخوشي يې کړی نه څوک وربانديی سپريږي اونه يې هم شيدې لوشي (١) (السائبة) هغه په نذراويامثل دهغه پري ايښي شوي اوښې ته وايي (الوصيلة) هغې مېږې ته وايي چې اوه خله لنگه شي اوپه اووم خل غبرگوني يونراوبل ښځه وزيږوي نودوئ وايي چې دې خپل ورور وصل کړبياهغه نه حلالوي (٢) (حام) هغه فحل ته وايي چي له نسل څخه يې لس ځله اوښې بلاربې شوي وي نودوئ وايي چې ملايې وساتله نوروسته نه څوک وربانديی سپريږي اونه يې له خوراک ځښاک څخه راگرزوي هرچيرته چې وغواړي ځښې اوڅري (عثر) څرگنديدل ويل کيږي (عثرت منه على خيانة) زه دده په خيانت خبرشوم (ماته يې خيانت څرگند شو) .

(اوليان) د (أولى) تثنيه اودحقداره په معناده.

تفسير:

﴿ جَعَلَ ٱللَّهُ ٱلۡكَعۡبَةَ ٱلۡبَيۡتَ ٱلۡحَرَامَ قِيَٰمٗا لِّلنَّاسِ ﴾ گرځولی ده الله کعبه چې کوټه ده دبزرگۍ (اوعبادت) (باعث) دقيام (اوانتظام) لپاره دخلگو) يعنى الله پاک کعبه مشرفه چې بيت الله الحرام ده دخلگو دصلاح اومعاش لپاره ددوئ ددين اودنياداموروقيام لپاره سبب گرځولې اوددوئ دمعاش اومعاد انتظام پکښې کېږي ويريدونکی پکښې پناه اخلی کمزوري ورته راځغلي سوداگران پکښې مالی گټې وټی کوي دحج اوعمرې اداکونکی ديندارہ خلگ ورته رادرومي. ﴿ وَٱلشَّهۡرَ ٱلۡحَرَامَ ﴾ (اومياشته بزرگه هم) يعنی بزرگې مياشتی لکه ذی القعده ، ذی الحجة ،محرم اورجب المرجب هم باعث دقيام دي چي له جنگه يې منع کوي ﴿ وَٱلۡهَدۡيَ وَٱلۡقَلَٰٓئِدَۚ ﴾ اونذرشوي مذبوحه کعبې ته (هم) اوامېل داره چارپايان (هم) چي دکعبې دحرم له ونوورته امېل غوندي غاړه کی اچول شوي وي هغه اوڅښتنان يې په امن دي داهم الله سبب دقيام لپاره دخلگوگرځولی ﴿ ذَٰلِكَ لِتَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَأَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ ﴾ دا(تېربيان) دپاره ددي دي چي پوه شي تاسی چي بيشکه الله عالم دې په هرهغه شي چي دي په آسمانونوکښې اوپه هرهغه شي چي دی په ځمکه کښې اوبيشکه الله په هر شی باندی ښه عالم دی) يعنی دغه دبيت الله الحرام حرمت اودبزرگومياشتواونذرشوي ، اميل داره مذبوحې احترام ددې لپاره دي چي تاسووپوهېږئ چي الله جل جلاله دځمکي اواسمانونوداموروپه تفاصيلو پوهيږي او ستاسی مصلحتونه ورته معلوم دي ځکه يې حرم دامن ځای کړچي هرڅه پکښې واوسيږي د الله لطف اومهرباني

---

١-القرطبی ٦/ ٣٤٢

٢-غريب القرآن ص/ ١٤٧

ته په بنده ګانو باندی و ګورئ سره له دي چي ځيني ددوي په کفراو ګمراهي کښي دي ﴿ اَعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ پوه شئ تاسي چي بيشکه الله ډير سخت دي عذاب د ده د (هغه چالپاره چي ځني سرغړوي) او بيشکه الله ښه مغفرت کونکی دي (هغه چاته چي توبه کاږي اورجوع کوي) نو م يې له نقمت څخه بيغمه کيږي اونه هم له رحمت څخه ناهيلی ﴿ مَّا عَلَى الرَّسُولِ اِلَّا الْبَلٰغُ ﴾ نشته (په غاړه ، ذمه ) درسول (زما ) مګر رسونه د(پيغام) ده ) اوپه تحقيق سره چي خپل واجب يې سرته رسولی هيڅوک عذرنلري چي خبرنه وم ﴿ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴾ (اوالله عالم په هغه شی چي ښکاره کوئ يې تاسي اوپه هغه شی (هم) چي پټوئ يې ) يعنی الله ستاسی په احوالو او اعمالو عالم دي وربانديې جزادرکړي ابوحيان وايې چي پدې جمله کښي تهديد پټ دی ځکه چي الله داسی اخبارو کړ چي هغه دبندګانو په پټو رازونو اوڅرګندو احوالو خبردار دي په هغوبه جزاورکوي که ثواب وي اوکه عذاب (۱) ﴿ قُل لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ ﴾ ووايه (ای محمده ! دوئ ته ) نه برابريږي ناپاک او پاک اګرکه ښه درښکاره شي تاته (ای سامعه) ډيروالی دناپاک) داهسی مثال دي چي الله پاک دحلال اوحرام د جلاوالی په هکله فرمايلي اويادمطيع اوعاصی ترمينځ توپيردی ياد کړه اوناکاره بيلتون ښيې قرطبی وايې چي دا لفظ عام اوپه ټولو امورو کښي راځی ددي انځورپه کسبونو ، اعمالو، خلګو اوعلومو کښي راځي نو ناپاک له دي ټولوڅخه بدمرغه دي انجام يې ستايلی نه وي که څه هم ډيروی اوپاکيزه که څه هم لږوي ګټه يې زياته ،پايله يې غوره اوعاقبت يې ښکلی وي (۲) ابوحيان وايې چي پاک اوناپاکه دواړه عام راغلی اوحلال ، حرام طاعت عبادت اوګناه ښه خلګ اوناکاره دسمې عقيدې والا اودناکاره عقيدې خلګ ټول پکښي راځي لکه پدي آيت شريف کښي ﴿ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُۥ بِاِذْنِ رَبِّهِۦ وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ﴾ الأعراف ۵۸ (۳) ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يَٰٓاُولِي الْاَلْبَٰبِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ نوويريږئ تاسی له الله ای خاوندانو د (صافو ) عقلونو لپاره ددي چي تاسي نجات ومومئ ) دالله رضوان اوتل ترتله نعمتونه موپه برخه شی ﴿ يَٰٓاَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَسْـَٔلُوا عَنْ اَشْيَآءَ اِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ﴾ (ای هغو کسانوچي ايمان يې راوړي دي ( ای مؤمنانو ) تاسی پوښتني مکوئ له (هغو ) شيانو که ښکاره کړشي تاسي ته (ځواب د هغو ) نوخپه به کړي تاسی (هغه ځواب ) يعنی ای مؤمنانوله بی ضرورته پوښتنوڅخه ځان وژغورئ که درته ځواب ملاوشي نوبه موخپه کړي زمخشري وايې چي معناداچي له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه ډيری پوښتنی مکوئ آن تردي چي له سختوتکاليفوڅخه يې پوښتنه که چيري يې فتوی درکړه اوورباندی مکلف شوئ بيابه غمجن اوهغه به بياپرځای کولائ نشئ اوپه پوښتلوبه يې پښيمانه شئ (۴) ﴿ وَاِن تَسْـَٔلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْءَانُ تُبْدَ لَكُمْ ﴾ (اوکه پوښتنی وکړئ تاسی له

---

۱- البحرالمحيط ۴ / ۲۷

۲- القرطبی ۶ / ۳۲۷

۳- البحرالمحيط ۴ / ۲۷

۴- الکشاف ۱ / ۵۳۳

Bawar.net

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



حاله د(هغوشيانو) پداسی وخت کښې چې نازل کاوه شی قرآن (وحی راځي نو) ښکاره به کړل شی تاسي ته ) يعنی که تاسي له دغو سختوتکاليفوځخه دوحی دنزول په وخت کښې پوښتنی کوئ نوپرتاسوبه ځرګند(اوفرض شي) بيابه خفه شئ نوله هغوئ ځخه سوال اوپوښتنه مکوئ(١) ﴿ عَفَا ٱللَّهُ عَنۡهَاۗ ﴾ عفوه کړي ده الله (له تېرو پوښتنو ځخه ) بيادغسی مکوئ ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٞ ﴾ اوالله ښه ښنونکی دګناهونو اوډيرتحمل والادي (په تأخيرد عقوبت (لپاره دانابت اوتوبې ) ﴿ قَدۡ سَأَلَهَا قَوۡمٞ مِّن قَبۡلِكُمۡ ﴾ په تحقيق پوښتنه کړي وه دداسی خبرويوقوم پخواله تاسی ) خوکله چې ورباندی فرض شول نو بې پرځای کولائ نشوورباندي کافران شول ځکه فرمايي ﴿ ثُمَّ أَصۡبَحُواْ بِهَا كَٰفِرِينَ ﴾ بيا وګرځيدل پري کافران (منکران) يعنی په هغه باندی دعمل نه کولو په سبب کافران شول اودا په بنی اسرائيلو کښې ووچې له انبياووبه يې استفتاوي کولی چې هغوئ به ورته امروکړبيابه يې پرينبودنوبه هلاک شول ﴿ مَا جَعَلَ ٱللَّهُ مِنۢ بَحِيرَةٖ وَلَا سَآئِبَةٖ وَلَا وَصِيلَةٖ وَلَا حَامٖ ﴾ (ندي رواکړي الله له هيڅ بحيری اونه سائبې او نه وصيلی اونه حام ) دجاهليت په زمانه کښې به کله چې اوښه پنځه ځله بلاربه اوجونګي به يې وزيږاوو نودوئ به يې غوږونه ورڅيري کړل او ورباندی سپريدل به يې حرام کړل دي ته به يې (بحيره) ويله اويوسړي به په ځان داسی نذراېښودل چې که چيری له دي ناروغی ځخه جوړشوم اويا له سفره ځخه په خيريت راستون شوم نوزمااوښه (سائبه) خوشي ده لکه د(بحيری) غوندی هيڅ ګټه به يې ځينی نه اخيستله اوکه به چيری مېږي (وری ) وزېږوله هغه به ددوئ وه اوکه به يې نر(وری) وزيږاووهغه به دبتانوپه نامه وواوکه به غبرګونی لنګه شوه نر اوښځه دواړه به يې وزيږول دوئ به ويل ورورېې وصل کړ(وصيله) به يې بلله اوکه به بيادنارينه (فحل) اوښ ځخه لس ځله اوښه بلاربه شوه نودوئ به ورته ويل چې ملايې وژغورله اوبيابه يې ورباندی سپرلي نه کوله دی ته به يې (حام) وايواودايې ټول حرام کړی ووکله چې اسلام راغی دغه دجاهليت ګردرسوم يې باطل اعلان کړل نونه بحيره نه سائبه نه وصيله نه حام الله رواکړی بلـــــکه:

﴿ وَلَٰكِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يَفۡتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَۖ وَأَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ ﴾ ولکن هغه کسان چې کافران شوي دی تړی دوئ په الله دروغ (بهتان) اوډيرله دوئ ځينی نه پوهيږي (په حق اوباطل) يعنی هغه کسان چې کافران دي دوئ په الله دروغ تړي اودالله لوری ته دحرمت نسبت کوي وايي چې مونږته دغه امرالله کړي دي خوډيرددوئ په دې نه پوهيږي چې دغه افتراء ده ځکه دوئ دپلرونو تقليد کوی لکه چې الله فرمايي:

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡاْ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ ﴾ اوکله چې وويل شی دوئ ته چې راشئ تاسي هغه شي ته چې نازل کړي (راليږلی ) دي الله او(راشی) په لوري د(حکم) درسول (کوم چې ستاسولپاره يې حرام

١ - ابن عباس رضی الله عنه وايي چې دآيت تفسيرداچې تاسی ډيری پوښتنی مکوئ چې دهغوئ داخبارپه ترڅ کښې به تاسی غمجن کړئ ياداچې شرعي تکاليف به درباندی راشی اويا داسی خبرچې تاسی به خواشيني کړي مثلاچې پوښتنه کوئ زمادپلاربه څه حال وي ؟ (جنتی ده که دوزخي ؟) اوکه چيري قرآن نازليږي يو امرراځي تاسی يې پوښتنه کوئ نو ځرګندېږي البحرالمحيط ۴/ ۳۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوحلال تاكلي دي) ﴿ قَالُوا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ ﴾ نووايې دوئ بس دي مونږته هغه دين چي موندلی دي مونږپه هغه (دين ) پلرونه خپل ﴿ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾ (آيا(بس دي دوئ ته ؟) اگركه ووپلرونه ددوئ چي نه پوهيدل په هيڅ شي اونه به يې لاره موندله وحق ته ) همزه دلته دانكارلپاره دي اوغرض ځنی توبيخ دي يعنی آيادوئ هلته هم دپلرونومتابعت كوي كه څه هم هغوی گمراهان ، په دين ناپوهان اوحق ته لاره نه موندونكی وي ؟﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ (ای هغوكسانوچي ايمان يې راوړی دي (يعنی ای مؤمنانو) لازمه ونيسئ پرخانونو(ساتنه اواصلاح ) دخانونوخپلواو گناهونه مكوئ ) ﴿ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا ٱهْتَدَيْتُمْ ﴾ هيڅ زيان نه رسوی تاسی ته (گمراهي) دهغه چاچي گمراه شوي دي كله چي تاسی په صافه سمه لاره اوسئ زمخشري وايې چي مسلمانانوبه ډيرحسرت كاووچي كاشكی كافران هم په اسلام كښي داخل شوي وای نو دوئ ته به وويل شول چي تاسوپخپله په سمه لاره اوسئ اوځانونه اصلاح اوله گناهونوژغوری كه تاسی په سمه لاره روان واست ددوئ گمراهی تاسوته څه زيان نه رسوي لكه چي الله پاک خپل استاذي ته فرمايي: ﴿ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَٰتٍ ﴾ ([1]) ابوالسعود وايې چي هيڅوک دي ددي توهم نه كوي چي په آيت شريف كښي دامربالمعروف اونهی عن المنكر دپريښودلو په هكله څه رخصت شته ځكه داهتداء په ضمن كښي داده چي له منكرڅخه نهی وشی اوروايت كيږي چي ابوبكرصديق رضی الله عنه يوه ورځ په منبرد پاسه ويل چي ای خلكوتاسی دغه آيت شريف لولئ خو پخپل ځای كښي يې نه لگوئ بيشكه چي ماله رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اوريدلی چي ويل يې: كله چي خلگ منكراوبد كاروگوري اومنع يې نكړي الله به دوئ ټول په عذاب كښي راونغاړي ([2])﴿ إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا ﴾ خاص بيرته دالله طرف ورتله ستاسي دي دټولو﴿ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ نوخبربه كړي الله په قيامت كښي ) تاسی په هغوعملونو چي وئ تاسي چي كول به مو(په دنياكښي ) بيضاوی وايې چي دغه ددواړودلو(نيكانواوبدانو ) لپاره وعداووعيدی اوداتنبيه وركوي چي يو تن دبل په گناه نه نيول كيږي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا شَهَٰدَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ حِينَ ٱلْوَصِيَّةِ ﴾ ای هغوكسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو ) شهادت په مينځ ستاسی كښي كله چي حاضرشي يوه دستاسی ته (علامې د ) مرگ په وخت دوصيت كښی (شهادت ) كول ﴿ ٱثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ ءَاخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ ﴾ (ددوتنودي چي دواړه خاوندان دعدل وي له تاسي (مسلمانانو ) څخه يادوه تنه نورشاهدان غيرله تاسی ( مسلمانانو ) (كه مو پيدا نكړل ) ﴿ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِى ٱلْأَرْضِ فَأَصَٰبَتْكُم مُّصِيبَةُ ٱلْمَوْتِ ﴾ ( كه تاسی سفركاوه په ځمكه كښي بياورسيږي تاسی ته مصيبت د

---

١-الكشاف١/٥٣٤

٢ - ابوالسعود٢ / ٢٥ ددغي خبري تائيد داحديث هم كوي چي : أئتمروابالمعروف وتناهواعن المنكرحتى اذارأيت شحا مطاعًا و هوى متبعا ودنيامؤثرة واعجاب كل ذی رأی برأيه فعليک نفسک ) اخرجه الحاكم

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مرگ) اودخانکندن علامې ﴿ تَحْبِسُونَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلَوٰةِ ﴾ چي بندوي به تاسی دغه دواړه وروسته له لمانخه (دمازيگر) ځکه دغه دخلگو داجتماع وخت وي اوهم داسی درسول الله صلی الله عليه وسلم فعل ووچي (عدی) او(تميم) ته يې له منبره سره مازيگرله لمانځه وروسته لوړه (قسم ) ورکړ ﴿ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ﴾ نوقسم دي وکړي دواړه په الله که شکمن يې تاسی (په شهادت ددوئ کښي ) اووايي به ) نه بدلووپدې قسم سره مال اګرکه وي دامشهودله خاوندخپلوي (هم) ابوالسعودوايي که چيری په دوئ دواړه شاهدانو وارث شکمن شي چي خيانت به يې کړي وی اويابه يې له ترکي څخه څه پټ کړی وي نودوئ ته به په الله لوړه ورکړي(¹) چي دوئ قسم کوی وايي به مونږپخپله شاهدی کښي دچاپلوي نکوواونه پدې سره دمال بدلولوهڅه کووچي په دروغوشاهدي ديوچاسره دخپلوي په تړاوو وايواومال ترګوتوکړو ﴿ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الْآثِمِينَ ﴾ اونه پټوومونږشاهدی دالله بيشکه مونږپه وخت دپټولودشهادت کښي خامخاله ګناهکارانو به يو ﴿ فَإِنْ عُثِرَ عَلَىٰ أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا إِثْمًا ﴾ نوکه اطلاع حاصله کړه شوه پردې چي بيشکه دا دواړه مستحق شوي دی دګناه (دحقي خبري په پټولواوخيانت کولوسره) ﴿ فَآخَرَانِ يَقُومَانِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْأَوْلَيَانِ ﴾ ( نونوردوه کسان دي ودريږي په ځای ددي دواړوله هغو کسانوچي ثابت شوي پرهغو (وصيت ياشاهدي) له قريبانودميت نه ) يعنی دوه نورکسان دی د مستحقووارثانوله ډلې ددي خائنوشاهدانو پرځای ودريږي ﴿ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِن شَهَادَتِهِمَا ﴾ ( نوقسم دی وکړي دادواړه په الله چي خامخا شاهدي زمونږ بنه حقه (اوربنتيا ) ده له شاهدی دهغو (ړومبنو ) څخه) نوزمونږ شاهدی واوروئ چي ددي خائنانو ترشاهدی داعتبارور او ربنتيا ده ﴿ وَمَا اعْتَدَيْنَا إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ اوڅه تجاوز موندي کړي بيشکه مونږپه دغه وخت (دتجاوز) کښي خامخا له ظالمانوبه يو (که موخيانت وکړاوياموډروغ وويل ) ﴿ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن يَأْتُوا بِالشَّهَادَةِ عَلَىٰ وَجْهِهَا ﴾ (داتيرحکم (چي ردکول دقسم دي پروارثانو ) ډيرنژدي دي دي ته چي راتله وکړي دا(شاهدان) په شاهدی سره په هغه شان چي حق دي ) پرته له تغيراوتبديل څخه ﴿ أَوْ يَخَافُوا أَن تُرَدَّ أَيْمَانٌ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ ﴾ او(نژدي دي دي ته ) چي وويريږي دوئ له دي نه چي بيرته به ردکړل شی قسمونه (په ورثه وو) پس له قسمونوددغو( وصيانو ) او دوي به رسوا شي ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاسْمَعُوا ﴾ او وويريږئ له الله نه تاسی (په دروغوقسم مکوئ )اوواورئ تاسی ( دالله احکام دزړه په غوږونوسره ) ﴿ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴾ اوالله نه ښيي سمه صافه لاره د(خيراوجنت ) قوم فاسقانوته ( هغوئ چي دالله له طاعت څخه وتلي وي.

---

۲-ابوالسعود۲ / ۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## بلاغت:

۱ - پدې قول کښې چې فرمايې ( الهدى والقلائد) عطف دقلائدپه هدى باندى عطف دخاص پرعام باندى دي اودايې په يادولوسره خاص اوځانګړي څکه کړه چې ثواب پکښې زيات اودحج سمبالښت پکښې څرګند دي.

۲ - ( ماعلى الرسول الا البلاغ ) دلته يې بلاغ مصدررااوړاومقصدځنې تبليغ دي دادمبالغې لپاره.

۳ - پدې کلماتوکښې چې: ( الخبيث والطيب ) دطباق صنعت اوپدې کلماتوکښې چې: (اصابتكم مصيبة) د اشتقاق جناس دي اودادواړه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کيږي.

۴ - (شهادة بينكم) داخبريه جمله په لفظ کى اوپه معنى کښې انشائيه ده چې مرادځني امردي يعنى ګواهي دي اداکړي ستاسى ترمينځ.

## فوائد اوګټې:

لومړۍ فائده: داچې امام شاطبى وايې ډيرى پوښتنى کول ښه کارنه دي اودډيرخايونه دي چې مونږ يې لس ځايه دلته غورچاڼ کوو.

۱ - هغه پوښتنه چې په دين کښې څه ګټه نلري لکه ديوچاپوښتنه چې زماپلارڅوک دى ؟.

۲ - هغه چې له اړتيازياته پوښتنه وشى لکه ديوسړي سوال دحج څخه چې (أكل عام؟) يعنى اى پيغمبره حج کول هرکال فرض دي ؟.

۳ - داسى پوښتنه کول چې سمدستي ورته هيڅ اړه نه وي لکه چې رسول الله فرمايې: ( ذروني ماتركتكم).

۴ - داچې دسختومسائلوپوښتنه کوي لکه چې داغلاطاتوڅخه سوال کوي اوله هغه منع شويده.

۵ - لکه چې دحکم له علت څخه پوښتى لکه دروژې قضايې راوړل په حائضه ښځه باندى پرته دلمانځه له قضايې څخه.

۶ - داچې په سوال کښې هغه حدته ورسيږي چې تکليف اوتعمق غواړي لکه دبنې اسرائيلوپوښتنى دغواپه هکله چې کومه غواده ؟ څه رنګ لري ؟او.........

۷ - کله چې له پوښتنوڅخه دکتاب اوسنت معارضه څرګنده شى څکه نويوچاته سعيد وويل آياته عراقى يې ؟ !

۸ - له متشابهاتوڅخه پوښتنى لکه چې له امام مالک رحمه الله څخه داستواء په هکله وپوښتل شول چې هغه په ځواب کښې ورته وويل استواء معلومه اوکيف غيرمعلوم دي.....ترپايه.

۹ - له هغوپيښواوشخړوڅخه پوښتنې چې دسلف صالحينوترمينځ پيښى شوي اوعمربن عبدالعزيز پدې باب داسى وايې: داهغه توى شوي وينى دي چې الله جل جلاله ورباندى زمونږلاس له ککړتيا څخه ساتلى نوزه خپله ژبه هم ورباندى نه ککړوم.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



١٠- په پوښتنو کښې تعنت او مجادله کول ترڅو غلبه ومومي په حديث شريف کښې راغي ( ابغض الرجال الى الله الالد الخصم ) ترټولو کرکجن سړى د الله په نزد هغه دي چي په خصومت او مجادله کښې خوراټينګار کوي(١)

الله تعالى فرمايي:

﴿ يوم يجمع الله الرسل فيقول ماذا أجبتم قالوا لا علم لنا إنك أنت علام الغيوب (١٠٩) إذ قال الله يعيسى ابن مريم اذكر نعمتي عليك وعلى والدتك إذ أيدتك بروح القدس تكلم الناس في المهد وكهلا وإذ علمتك الكتب والحكمة والتورىة والإنجيل وإذ تخلق من الطين كهيئة الطير بإذني فتنفخ فيها فتكون طيرا بإذني وتبرئ الأكمه والأبرص بإذني وإذ تخرج الموتى بإذني وإذ كففت بني إسرءيل عنك إذ جئتهم بالبينت فقال الذين كفروا منهم إن هذا إلا سحر مبين (١١٠) وإذ أوحيت إلى الحواريين أن ءامنوا بي وبرسولي قالوا ءامنا واشهد بأننا مسلمون (١١١) إذ قال الحواريون يعيسى ابن مريم هل يستطيع ربك أن ينزل علينا مائدة من السماء قال اتقوا الله إن كنتم مؤمنين (١١٢) قالوا نريد أن نأكل منها وتطمئن قلوبنا ونعلم أن قد صدقتنا ونكون عليها من الشهدين (١١٣) قال عيسى ابن مريم اللهم ربنا أنزل علينا مائدة من السماء تكون لنا عيدا لأولنا وءاخرنا وءاية منك وارزقنا وأنت خير الرزقين (١١٤) قال الله إني منزلها عليكم فمن يكفر بعد منكم فإني أعذبه عذابا لا أعذبه أحدا من العلمين (١١٥) وإذ قال الله يعيسى ابن مريم ءأنت قلت للناس اتخذوني وأمي إلهين من دون الله قال سبحنك ما يكون لي أن أقول ما ليس لي بحق إن كنت قلته فقد علمته تعلم ما في نفسي ولا أعلم ما في نفسك إنك أنت علام الغيوب (١١٦) ما قلت لهم إلا ما أمرتني به أن اعبدوا الله ربي وربكم وكنت عليهم شهيدا ما دمت فيهم فلما توفيتني كنت أنت الرقيب عليهم وأنت على كل شيء شهيد (١١٧) إن تعذبهم فإنهم عبادك وإن تغفر لهم فإنك أنت العزيز الحكيم (١١٨) قال الله هذا يوم ينفع الصدقين صدقهم لهم جنت تجري من تحتها الأنهر خلدين فيها أبدا رضي الله عنهم ورضوا عنه ذلك الفوز العظيم (١١٩) لله ملك السموت والأرض وما فيهن وهو على كل شيء قدير (١٢٠) ﴾ المائدة: ١٠٩ - ١٢٠

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله د اجل درانژدي کيدلو په وخت کښې د وصيت کولو يادونه وکړه او د الله د تقوى او طاعت کولو امريې وفرمايه ورپسي يې د هغي هيبت لرونکى ورځي ذکر راووړ چي هغه د قيامت ورځ او الله به پکښې رومبنى او وروستنى راټول کړي ښو ورسره حساب کتاب وکړي او په جزايې ورسوى بيايې هغه معجزاتې بيان کړي چي خپل بنده او استازى حضرت عيسى عليه السلام ته يې ورکړي دي چي يوه يې

١- محاسن التاويل للقاسمى ٢/ ٢١٧٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هم له آسمانه (مائدة) راتلل وواوبيايې مبارک سورت دحضرت مسيح عليه السلام د الوهيت له دعوی څخه په برائت ورکولو پای ته ورساوو.

لغتونه:

(کففت) يعنی منع می کړل اوله دي څخه کفيف هم راغلی چي له رؤيت اوليدلو څخه منع دي (أيدتک) ټينګ کړی می وي ته له تائيد څخه دي چي هغه قوت ته وايې (أوحيت) وحی په پټه توګه په نفس کښي ديوې معنا اچولوته وحی وايې اودا په درې ډوله ده يوه وحی دالهام په معنابله داعلام په معنی چي په وينبه اوخوب کښي وي دريمه وحی دحضرت جبريل عليه السلام درا استولو په معنادی چي پيغمبرانو ته به راتو[1] (مائدة) ددسترخوان په معنی هغه چي وربandی خواړه (طعام) اينبي وي که خواړه وربandی نه وي مائده نه بلل کيږي [2] (الرقيب) دافعالوڅارونکی (ابدا) تل ترتله پرله پسی (بلاانقطاع).

تفسير:

﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللَّهُ الرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَا أُجِبْتُمْ﴾ يادکړئ (ای خلګو) هغه وخت چي جمع به کړي الله ټول رسولان (اوخلګ دحساب لپاره) پس وبه وايې (الله رسولانو ته) چي څه ځواب درکړي شوي ووتاسو ته (له طرفه دامتيانوستاسی کله چي ايمان اوتوحيدته موررابلل؟) ﴿قَالُوا لَا عِلْمَ لَنَا﴾ وبه وايې (ګرد رسولان الله ته) نشته هيڅ علم مونږته (ستاد علم په مخکښي) ابن عباس وايې زمونږ هيڅ علم نشته مګرهغه علم چي ترمونږته وربandی زيات عالم يې ﴿إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ (بيشکه ته چي يې هم ته يې لوئ عالم په غيبو (اسرارو) يعنی ته په هغه څه پوهيږي که پټ وي اوکه ښکاره چي مونږ وربandی نه پوهيږو، ابوالسعود وايې چي پدې کښي دشکايت څرګندونه اودامرسپارښتنه دالله علم ته ده چي پروردګاره! ته پوهيږې چي مونږ له خپلو قومونو څخه څومره ناخوالی ليدلی ده اوڅومره تکاليف موګاللی دي اوالله ته پناه وروړل دي چي ددوئ کسات له هغوئ څخه واخلي [3] ﴿إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ﴾ يادکړي (هغه وخت چي) وبه فرمايې الله ای عيسی زوي دمريمي يادکړه احسان زما پرتا اوستا پرمور بandی ابن کثير وايې چي الله دهغه نعمت يادونه کوي کوم چي پخپل بنده اورسول يې کړي اوده په لاس يې معجزې اوخوارق څرګند کړي وويعنی يادکړه هغه نعمت زما پرتا بandی چي له موره مې بې پلاره پيداکړې اوته مې پخپل قدرت باندې څرګند دليل وګرزولې اوهمدارازستا په مور بandی مې کله چي ظالمانو هغه په زناتورنوله دهغې دبرائت ترلاسه کولو لپاره دليل

---

۱-القرطبی ۲/۳۶۳

۲-البحر ۴/۳۰

۳-القرطبی ۲/۳۶۱ ابن کثير وايې چي دغه له الله پاک سره دادب کولو په معناده چي زمونږ علم ستادعلم په وړاندی چي په هرڅه محيط دي هډونشته ته په هرڅه خبرداريې ستاعلم ته زمونږعلم لکه نيستی داسی دي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړي (۱) قرطبي وايې دغه د قيامت دورځي له حالاتو څخه انځوردي لکه چې وايې په يادکړي هغه ورځ چې الله ګرد پيغمبران راټول کړي او کله چې عيسى ته داسې وايې (۲) او د ماضي په لفظ يې ددې لپاره ذکر کړي چې (اذقال) يې راوړي ترڅو قيامت نژدې وښيي ځکه هر راتلونکى نژدې دي ﴿إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ﴾ کله چې قوت مې درکړي وو تاته ( اى عيسى په روح القدس (جبرائيل ) سره چې پاکه سپيڅلې روح ده ﴿تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا﴾ چې خبرې به دې کولې له خلکو سره په مهد (ځانګو) ياطفوليت کښې ( او په حال دکهولت (پوره عمر) کښې چې نبي وې ﴿وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ﴾ (کله چې مې درزده کړ تاته کتاب (ليکل ) او حکمت (ګټور علم) او تورات او انجيل ﴿وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي﴾ او ياد کړه کله چې جوړه به دې کړله له خټو څخه په مثل دصورت د مارغه په اذن (حکم) زما ﴿فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي﴾ پس پو کول به دې په هغه صورت کښې پس شو به هغه هيئت مارغه په اذن (حکم) زما ﴿وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي﴾ او روغول به دې مورزاده ړوند او برګ (پيس) په حکم (او مشيت ) زما ﴿وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي﴾ او چې را ايستل به دې مړي په حکم زما (ژوندي کول به دى) ﴿بِإِذْنِي﴾ لفظ يې په هره معجزه کښې مکرر راوړ ددې لپاره چې په هغه چا ردوکړي چاچې حضرت عيسى ته د ربوبيت نسبت کاوو او د دغه تکى د څرګندولو لپاره چې دغه خارق العادة پيښې د الله له لوري دي يوازې يې د حضرت عيسى په لاس څرګندې کړي دي چې معجزه يې وي ﴿وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾ او کله چې مې بند کړ (شر) د بنى اسرائيلو له تا نه (اى عيسى چې دوئ ستاد قتل عزم کړي وو کله چې دوئ ته دې واضح دلائل راوړي وو ﴿فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ﴾ نو وويل هغو کسانو چې کافران شوي وو له دوئ څخنې چې نه دي دغه معجزې ستامګر سحر دي ښکاره ؛ څرګند ﴿وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي﴾ ( او کله چې مې په زړونو کښې وروا چول حواريونو ته چې ايمان راوړئ تاسې په ما او په رسول زما ) داهم د الله د احسان يوه بله برخه ده چې حواريونو ته يې دعيسى عليه السلام په ژبه امر کړي چې په الله او رسول يې (عيسى عليه السلام) ايمان راوړئ ﴿قَالُوا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ﴾ نو وويل حواريونو چې ايمان مو راوړي دي (په الله او عيسى) او شاهد اوسه ( اى عيسى )چې بيشکه مونږ مسلمانان يو ) يعنى حواريونو وويل چې اى الله څه چې دې راته امر فرمايلى په هغه زمونږ ايمان دي او پدې ايمان کښې مخلصان او ستاامر ته غاړه اېښودونکى يو ﴿إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَن يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ﴾

---

۲ - ابو السعود ۲ / ۷۰

۱ - ابن کثير ۱ / ۵۲۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



یادکړه هغه وخت چي وویل حواریونوای عیسی زوي دمریمی آیاکولائ شی رب ستاچي نازل کړي پرمونږ دکې خوانچې له آسمانه ؟ قرطبی وایې دغه خبره ددوئ څخه په لمړي سرکښي کله چي دالله جل جلاله یې بشپړ معرفت لانه وو کړې صادره شوه اوداهم کیدای شی چي دځینونا پوهانوله خولې به راوتلې وي لکه چي دموسی علیه السلام دقوم ځینی کسانوو ویل: ﴿ اجْعَل لَّنَا إِلَـٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ﴾ ابوحیان وایې چي ددغه لفظ ظاهرداغوښتنه کوي چي دالله په قدرت اوتوان کښي دی شک ولري چي آیاله آسمانه دې دسترخوان راښکته کولائ شي ؟ اوزمخشری هم دي پلوته تللی دي (١) اونورومفسرینوویلی چي حواریون مؤمنان اودعیسی خواص ملگری دوئ پدې کښي شک نه درلود آن تردي چي حسن ویلی دوئ دالله په قدرت کښي شک نه درلودبلکه دغه پوښتنه یې دمعلوماتوترلاسه کولوپاره کوله چي آیانازلوي یې که نه ؟ که چیری یې رانازلوي نوزمونږلپاره ورته سوال وکړه (٢)نوددوئ پوښتنه داطمینان اوتثبت لپاره ده ﴿ قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ وویل عیسی (علیه السلام)وویریږئ له الله (په داسی سوالونوکښي ) که یئ تاسی مؤمنان ( په قدرت دالله ) ﴿ قَالُوا نُرِيدُ أَن نَّأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا ﴾ وویل ( حواریونو ) اراده لرومونږ(په دغه سوال سره ) چي وخورودغې دسترخوان څخه (دتبرک لپاره) اومطمئن شي (په دغه خوراک سره ) زړونه زمونږ( دیقین په زیاتوالی سره ) ﴿ وَنَعْلَمَ أَن قَدْ صَدَقْتَنَا ﴾ اوپوه شوپدې چي په تحقیق تارښتیاویلی وومونږته ) یعنی مونږپه علم یقین سره داسی علم چي شک اوشبه پکښي پاتی نه دي وپوهېږوچي ستادنبوت دعوه رښتونی اوحق ده ﴿ وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشَّاهِدِينَ ﴾ اواوسومونږپردې (دسترخوان) له شاهدانوڅنی (هغوئ ته چي غائبان دي له خلکو)﴿ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا أَنزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ اووویل عیسی زوی دمریمې ای الله ربه زمونږرانازله کړه پرمونږباندی دکه خوانچه (له طرفه ) دآسمانه ) عیسی علیه السلام ددوئ دمائدې په هکله سوال ومنلو ترڅو په هغوئ باندی دکلک دلیل الزام وشی اوداسی روایت کاوه شی چي کله عیسی علیه السلام دعاکوله نودوینبتانو (اوزغنو ) اوبدل شوي څادرېې واغوست اوهمدارازیې چپنه (قبا ) واغوستله په لمانځه ودرویدو اوپروردگارته یې په ژړاکښي دعاکول پیل کړل ابوالسعودوایې چي عیسی علیه السلام دوه ځله الله ته ندا کړی وه یوځل دالوهیت په صفت سره چي دټولوکمالاتوجامع دي اوبل ځل دربوبیت په وصف سره چي دروزنی څخه خبرورکوي اودتضرع وروستنی پوله اوغایه ده (٣)﴿ تَكُونُ لَنَا عِيدًا لِّأَوَّلِنَا وَآخِرِنَا ﴾ چي شي (وخت دنزول ددغې دکې خوانچې ) مونږ ته اختر(د خوشحالی ورځ)

---

١ – زمخشری وایې که چیری وپوښتل شی چي دوئ څرنگه داسی ویل چي آیارب دی کولائ شی ؟ سره له دي چي مؤمنان وواوخلاص یې درلود نوځواب داچي الله دوئ په ایمان اواخلاص نه دي ستایلی بلکه دهغوئ دادعاحکایت یې کړی اودعوی یې باطله ده ځکه دالله په قدرت کښي شکمن دي داهسی عقیده اوخبره ده چي له مؤمن څخه نه صادریږي. کشاف ٥۴٠/١
٢ – البحر ۴ / ٥٣
٣ – ابو السعود ٢ / ٧٣

Bawar.net



لپاره دروميښو زمونږ او ورستنيو زمونږ ﴿ وَءَايَةً مِّنكَ ﴾ ( او بل داچي شي دغه خوانچه ) دليل له تا نه (ستادنبي په صدق ) ﴿ وَٱرْزُقْنَا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴾ اوروزی راکړي مونږته اوهم ته يې غوره دروزي ورکونکو،ځکه ته الغنی الحميد يې ﴿ قَالَ ٱللَّهُ إِنِّى مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ﴾ وويل الله زه نازل کونکی يم ددي پرتاسو باندی ( الله يې دعاومنله ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بَعْدُ مِنكُمْ فَإِنِّىٓ أُعَذِّبُهُۥ عَذَابًا لَّآ أُعَذِّبُهُۥٓ أَحَدًا مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ نوهرڅوک چي ناشکری وکړی وروسته ( له نزوله ددي دسترخوان ) له تاسی څخنی نوبيشکه زه عذاب ورکوم هغه ته داسی عذاب چي نه به په عذابوم په هغه سره بل هيڅ يوله (نورو ) مخلوقاتو؛ په حديث شريف کښي راځي چي له آسمانه مائده غوښي اوډوډۍ رانښکته کړل شوه اودوئ ته يې امرورکول شوچي نه به پکښي خيانت کوی اونه به يې هم دسباله پاره خوندی کوی دوئ دواړه وکړل هم يې ذخيره اوزيرمه کړه اوهم يې پکښي خيانت وکړسباته بيرته پورته شوه اودوئ خنزيران اوبيزوګان مسخ شول (۱)په تسهيل نومی کتاب کښي وايې چي دالله جل جلاله عادت پدې جاری شوی څوک چي ترې کومه معجزه وغواړی اووربي کړی اوبياورباندی کافرشي سخت عذاب ورکوي اوځرنګه چي څينی ددغوکسانوورباندی ناشکری وکړه نوهغوئ الله په خنزيرانو(بدوځناورانو ) مسخ کړل (۲) ﴿ وَإِذْ قَالَ ٱللَّهُ يَٰعِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِى وَأُمِّىَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ (اوکله چي وويل الله ای عيسی زوی دمريمې ! آياتاويلی ووخلګوته چي ونيسی مااوموروزما(دواړه ) خدايان بی له الله نه ؟ ) دغه عطف ديوې کيسي دی پربلی باندی چي لومړي يې ﴿ إِذْ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ ﴾ ده ابن عباس (رض) وايې چي داوينابه دالله جل جلاله له لوري د خلګوپه وړاندی وي چي کفارپدې وپوهيږي دوئ په باطله لاره روان وو (۳) دغه خبره دالله له لوری د کفارولپاره توبيخ اوتبکيت دي چي: ای عيسی تاخلګ دي ته رابللی وو چي ستا اوستادمور د الوهيت عقيده ولري ؟ قرطبی وايې چي دغه پوښتنه الله دهغه چادتوبيخ لپاره کوي کوم چي دغه دعوی يې کړی ده ترڅودعيسی عليه السلام انکاروروسته له پوښتلوپه تکذيب کښی أبلغ اوپه توبيخ اوتقريع کښي اشد او سخت وی (۴) ﴿ قَالَ سُبْحَٰنَكَ مَا يَكُونُ لِىٓ أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِى بِحَقٍّ ﴾ وبه وايي عيسی چي پاکی دی تالره ( ای الله له شريکه ) اوهغه څه چي تاسره نه ښايې ) نده لائقه ماته داچي ووايم زه هغه خبره چي نشته ماته حق (دويلو دهغې ) ﴿ إِن كُنتُ قُلْتُهُۥ فَقَدْ عَلِمْتَهُۥ ﴾ (که وم زه چي ويلي مي وای داخبره نوپه تحقيق معلومه به وه تاته ) يعنی که چيرته دغه خبره له ماڅخه صادره شوي واي ته به ورباندي خبروي له تاڅخه خوهيڅ هم پټ نه دي اوته پدې خبريې چي مانه دي ويلي دغه خبره هم عذراوهم له ويلوبرائت دی اوهمدارازدادب په ساتلوکښي هم مبالغه ده چي دذوالجلال الله په

---

۱-اخرجه الترمذی فی باب التفسير
۲-التسهيل ۱/۱۹۴
۳-البحر ۴/ ۵۸
۴-القرطبی ۲/۳۷۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وراندي خپل ذلت او مسکنت څرګندوي. ﴿ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴾ تا ته معلوم دي هر هغه شي چي په نفس زما کښي دي او نه پوهېږمه زه په هغه شي چي په ذات ستا کښي دي (له معلوماتو ستا) يعنی تا ته زما د ذات حقيقت او هغه څه چي پکښي دي معلوم دي او ما ته ستا د ذات حقيقت او هغه ستا د کمال صفات چي لري يې ندی معلوم تا ته ټول خفايا او نوايا معلوم دي ستا علم په (ماکان او ما يکون) دوا ړو چاپېر (محيط) دي. ﴿ مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ ﴾ (ندي ويلي ما دوئ ته هيڅ شي) مګر هغه چي تا امر (حکم کړی) وو ما ته په هغه سره) امام رازي وايې چي دلته يې قول د امر پرځاي راوړي چي ادب پرځاي کړي تر څو خپل ځان او پروردګار دواړه امران و نه ښيې ﴿ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ﴾ (چي عبادت کوئ تاسي د الله رب زما او رب ستاسي) زما او ستاسي د خالق عبادت کوي زه هم تاسو غوندي بنده يم ﴿ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ ﴾ او ومه زه (په اقوال و افعال د دوئ باندي خبردار تر څو چي ومه زه په دوئ کښي ﴿ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ ﴾ پس کله چي دي زه قبض کړم (په بېولو سره آسمان ته) نو وې ته هم دا ته څارونکی پر دوئ (د دوئ اعمال او افعال دي ليدل) ﴿ وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴾ او ته په هر شي باندي ښه حاضر ښه خبرداروي يې (هيڅ درڅخه پټ نه دي) ﴿ إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ﴾ (که عذاب ورکړي ته (ای الله) دوئ ته نو بېشکه دوئ ستا بندګان دي) ته يې مالک يې څرنګه چي وغواړي هسي تصرف کولای شي پر تا څه اعتراض نشته ﴿ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ او که ښښنه وکړي دوئ ته نو بېشکه ته هم دا ته يې ښه غالب (په امر خپل کښي) او لوي حکمت والا په خپل صنعت کښي ﴿ قَالَ اللَّهُ هَٰذَا يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ﴾ او وبه وايي الله د قيامت په ورځ) دا ورځ د دي ده چي نفع به رسوي صادقينو ته صدق د دوئ) څکه دا د جزا ورځ ده ﴿ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴾ (مقرر دی) دوئ ته جنتونه چي بهېږي له لاندي (د ونو او ماڼيو) د هغو ويالې (د اوبو، شېدو شرابو او شاتو) تل به وي دوئ په هغه کښي ﴿ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ﴾ راضي شوي دی الله له دوئ نه (په طاعت سره) او راضي دي دوئ له الله څخه (په موندلو د ثواب) ﴿ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ دغه (خلود او رضوان) بری دی ډېر لوي ﴿ لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيهِنَّ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ خاص الله لره دی ملک د سلطنت د آسمانونو او (سلطنت) د ځمکي او (سلطنت) د هغو شيانو چي په دوئ کښي دي او الله په هر شي باندي (چي اراده يې وفرمايي) ښه قادر دی.

تنبيه:

امام مسلم په خپل صحيح کښي روايت کوي چي: رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله جل جلاله د اقول چي د حضرت ابراهيم عليه السلام په هکله يې فرمايلي تلاوت کړ چي: ( رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ) او د ا رنګه د عيسی عليه السلام قول چي ﴿ إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ

Bawar.net



وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ نو بيې لاسونه اوچت کړل او ويل يې(اللهم امتى امتى ) او وبې ژړل الله جل جلاله جبريل عليه السلام ته وويل محمدته ورشه پوښتنه ځني وکړه چي څه شي دي ژړوي ؟ (وربک اعلم) جبريل عليه السلام ورته راغى پوښتنه يې ځنى وکړه اورسول الله صلى الله عليه وسلم دهغه ويلو خبرورکړنوالله جل جلاله ويل اى جبريله محمدته ورشه ورته ووايه ژرده چي مونږبه ستادامت په هکله تاراضى کړونه دى غمجن کوو.

دالله په مرسته دالمائدة سورت تفسيربشپړشو

***

## دالانعام سورت مکي اويوسل اوپنځه شپېته آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالانعام سورت يودهغومکي اوږدوسورتونوڅخه دى چي محوريې د(عقيدې ) اوايمان په اصولو راڅرخي اودادمدني سورتونوڅخه په اهدافواومقاصدوکښي ګوښي اومختلف دي کوم چي پخوا تېرشوي لکه : البقرة ، آل عمران ، النساء ، المائده اوپدي سورت کښي دمسلمانانودټولني تنظيمي احکاموته ګوته نده نيول شوي لکه روژه حج ، عقوبات ، اودکورکهول احکام اونه هم پکښي داسلامي دعوت له خارجينوسره د جهاد کولوپه هکله څه راغلى لکه چې له اهل کتابو اومنافقينوڅخه يى هم خبري نه دي کړى بلکه ستري قضاياوي يې رااخيستي چي هغه دايمان اوعقيدې اصول دي اوپه لنده توګه هغه قضاياوي دادي:

١- دالوهيت قضيه

٢- دوحي اورسالت قضيه

٣- دبعث اوجزاء قضيه

* مونږپدي سورت کښي زښته زياتي داسي خبري لولوچي داسلامي دعوت په اساسي اوبنسټيزو اصولوبنادي اوپدې کښي سترحجتونه اوځرګند دليلونه دي لکه چي دالزام اواقناع لپاره پکښي غوځ براهين شته ځکه سورت په مکه کښي هلته چي مشرکان اوسيدل نازل شوى دي اوهغه څه چي پدې سورت کښي نظر جلبوي دوه ښکاره اسلوب اوتګلاري دي چي له دي پرته په نوروسورتونو کښي ميندل کېداي نشي يويې دتقرير اسلوب اوبل دتلقين اسلوب.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



١ – دتقرير اسلوب قرآنكريم دالله په توحيداودهغه په وجوداوقدرت ، سلطان اوقهرباندي دا سې دلائل چي بيخي منل شوي وي راوړي اوهغه په غائب ضميرچي له حاضرحس څخه بهردي رااخلي هلته چي سليم عقل اوراشدعقل پكښي هيڅ شک اوشبهه نكوي چي الله جل جلاله دكائناتوپيداكونكي اودفضل اواحسان خاونددي نودغه رازد(هو) په تعبيرچي دتدبيراوحكمت په خاونداوخالق باندې دلالت كوي مونږته رااوروي فرمايي: ﴿ هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن طِينٍ ﴾ ﴿ وَهُوَ ٱللَّهُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَفِى ٱلْأَرْضِ ﴾ ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُم بِٱلَّيْلِ ﴾ ﴿ وَهُوَ ٱلْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِۦ ﴾ ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ﴾ دايتونوترپايه.

٢ – دتلقين اسلوب بې له شكه چي درسول الله صلى الله عليه وسلم په تعليم كښي دحجت تلقين له ورايه برېښي ترڅوخصم پرکړي دهغه په زړه اوغوږونواغيزه وكړي ترتاثيرېي لاندي كړي اوبيا هيڅ دخلاصون لاره نه لري دغه اسلوب دسوال اودځواب په ډول راځي يوځل ځني پوښتنه كوي بيا ورته ځواب اوروي لكه ﴿ قُل لِّمَن مَّا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ قُل لِّلَّهِ ۚ كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ ٱلرَّحْمَةَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ﴾ ﴿ قُلْ أَىُّ شَىْءٍ أَكْبَرُ شَهَٰدَةً ۖ قُلِ ٱللَّهُ ۖ شَهِيدٌۢ بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ ۚ ﴾ .

﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ ٱللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَٰرَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ ٱللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ ۗ ﴾ ﴿ وَقَالُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۚ قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰٓ أَن يُنَزِّلَ ءَايَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ همداسي سورت دمشركينومناقشه كوي هغوی ته قاطع اوغوځونكي دلائل وړاندي كوي چي دباطل ملا ور ماته كړي له دي امله ده چي دانعام سورت دمكي نوروسورتونوپه لړكښي ديوسترشان اوعظمت خاوند دي چي داسلامي دعوت تركېزپكښي شته (١)حقائق يې ښرګندوي ستني يې دروي دمخالفينواشتباه ګاني په يو عجيبه اونادره ډول مناظره كښي پورته كوي پدي سورت كښي دالله دتوحيدپه خلق اوايجادكښي همدارازپه تشريع اوعبادت كښي بيانوي دپيغمبرانودمنكرينواودروغجنوبلونكودريزښيې او هغوی ته دپخوانيوامثالو كېسې ورپه يادوي چي څه ورپېښ شول ددوئ اشتباهات دوحي اورسالت په هكله راوړي دآخرت اوجزاد ورځي بيان كوي اودغوتولوته په پراخ ډول دهغودلائلوتنبيه كول راوړي چي په ځانونواوآفاقوكښي يې هر څوک ګوري اويايې دبشري طبيعت دسختيواوسوكاليوپه وخت كښي ويني همدارازدانبياوو پلارحضرت ابراهيم اودهغه زامن څوپيغمبران راوړي اوپيغمبر صلى الله عليه وسلم بيادهغوی دهدايت پيروي ته رابولي اود ستونزواومشكلاتوپه وړاندي دزغم اوصبر تلقين وركوي لكه چي دكافرانودحال انځوردقيامت په ورځ كاږي اوپه مختلفورنګونويې وړاندي كوي بيادجاهليت دوخت تصرفات بيانوي چي ددوئ شرک هغوي ديوڅيز تحليل ياتحريم ته هڅولي وواودهغه ابطال

---

١ – امام رازي وايې دغه سورت دوه ډوله دفضيلتونوامتيازلري يوداچي په يوځل ټول رانازل شوي دوهم داچي اويازرو ملائكويې بدرګه كوله اودغه امتيازسبب داچي دتوحيد ، عدل ، نبوت او معاد خبري پكې دي اودملحدينودمذاهبودابطال په دلائلومشتمل دي. امام قرطبي وايې چي دغه سورت دا ستدلال دقاعدې په ډول دمشركينواومبتدعينواوهغه چاچي له بعث اونشورڅخه منكروي په كارېږي اودادي غوښتونكي دي چي يوځل ټول رانازل شي.

Bawar.net



اوماتول بيانوي وروسته سورت (ديوجزء په خلورمه برخه كښي) په لسووصيتونوچي په گردوپخوانيوكتابونوكښي راغلي اوټولو انبياووعليهم السلام دهغوي بلنه ترسره كړي مشتمل دي فرمايي: ﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ پاى يي پداسي يونادره اوښكلي آيت سره بشپړيږي چي دانسان هغه مرتبه چي پدي ژوند كښي دلوي الله په وړاندي لري راڅرګندوي هغه داچي دي يې په ځمكه كښي خليفه دي اوالله پاك دكائناتو آبادي اوتعميردانسان ترلاس لاندي كړي چي نسل وروسته له نسله به يې ترسره كوي اوداچي الله جل جلاله مواهب د انسانانوترمينځ متفاوت ويشلي چي پدي كښي ستر حكمت اولوړمقصد نغښتى دى چي هغه ازموينه اوابتلاء دي چي دا ژوند به په څه شان تيروي كوم چې له دي پيدا ايښت څخه مقصودا ومطلوب دي ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَحِيمٌ﴾.

## تسميه اونومول يې:

دغه سورت ته د(الانعام) سورت ځكه وايي چي دانعام (چارپايانو) يادونه پكښي راغلي ده الله تعالى فرمايي ﴿وَجَعَلُوا لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْأَنْعَامِ نَصِيبًا﴾ اوداچي دېراحكام دمشركينود جهالت اوناپوهي چي دبتانودتقرب لپاره يې درلودل پكښي واضح شوي دي اوله خانګړتياووڅخه يې يودادى چي ابن عباس رضى الله عنه وايي: (سورت الانعام ) په مكه مكرمه كښي يوموټي په داسي حال كې نازل شوى چي خواوشايې اويازره ملائكي وي تسبيحات يې لوستل([1]).

## الله تعالى فرمايي:

﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمَاتِ وَالنُّورَ ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ① هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ طِينٍ ثُمَّ قَضَىٰ أَجَلًا وَأَجَلٌ مُسَمًّى عِنْدَهُ ثُمَّ أَنْتُمْ تَمْتَرُونَ ② وَهُوَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَفِي الْأَرْضِ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ③ وَمَا تَأْتِيهِمْ مِنْ آيَةٍ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ④ فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنْبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ⑤ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَكُمْ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِمْ مِدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ وَأَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ⑥ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ ⑦ وَقَالُوا لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ وَلَوْ أَنْزَلْنَا مَلَكًا لَقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُونَ ⑧ وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَجَعَلْنَاهُ رَجُلًا وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَا يَلْبِسُونَ ⑨ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ⑩ قُلْ سِيرُوا

[1] محاسن التاويل ٦ / ٢٢٣٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿۱۱﴾ قُل لِّمَن مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ قُل لِّلَّهِ كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۱۲﴾ ۞ وَلَهُ مَا سَكَنَ فِي اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۳﴾ قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۴﴾ قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿۱۵﴾ مَّن يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ وَذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ ﴿۱۶﴾ وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۱۷﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴿۱۸﴾ ﴾ الأنعام: ۱ - ۱۸

## لغتونه:

(يعدلون) برابروي عدل سيال اوشريک ويل کېږي (عدل فلان بفلان) يعنى سارى اوبرابريي کړفلانی له فلاني سره (تمترون) شک کونکي ياست ويل کېږي (امترى فى الامر) کله چي شکمن شي په يوشي کښي (قرن) پېړۍ اوامت مقترن په يوه زمانه کښي اوله دي څخه هغه حديث هم راغلی چي (خيرالقرون قرنى) دقرن اصل سل کاله مودې ته وايي بيايي اطلاق په هغه ټولۍ خلګو کېږي چي په يوه زمانه کښي سره هم عصره اوسي. (مدرارًا) په شېبوشېبوزيات باران (قرطاس) هغه پاڼه چي پکښي ليکل کېږي (لبسنا) ګډ کړي ووموږ (لبس) خلط اومشتبه ته وايي (حاق) نازل شوي اورسيدلي وو (وليًا) مرستندوی اومعاون

## دنزول سبب:

روايت کېږي چي دمکې مشرکانو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: اى محمده ! ترهغو موږ درباندي ايمان نه راوړوڅوچي دالله له لوري ليکلي کتاب راوړي چي څلورپرښتې ورسره اود رښتنولي تصديق يې وکړي چي داکتاب دالله له لوري اوته په رښتيادالله جل جلاله استازي اوپيغمبريې نو الله جل جلاله داآيت نازل کړ: ﴿ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾.

## تفسير:

﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ﴾ (ټولي ثناوي ستاينې خاص هغه الله لره دي چي پيداکړي يې دي آسمانونه (بې له نمونې ) او ځمکه (بې له مادې) الله پاک دغه سورت په حمدپيل کړي چي بندګانوته تعليم ورکړي څوپه دغي دتعظيم او تبجيل په اقساومشتمله صيغه يې ثناووايې اوددي خبرتيالپاره چي هغه دټولو محامدواوستاينوو ړاو مستحق دي نه يې سيال اونه شريک شته اونه يې مثل اونه نظيريعني دهغه الله حمدووايا ست چي پرتاسويې ډول ډول انعامات لورولي دي هغه چي بې نمونې اومادې يې آسمانونه اوځمکي پيداکړي چي په هغوي کښي ډول ډول عجائب اوقسماقسم بدائع خوندي دي دصنعت عجائب اودحکمت بدائع چي عقلونه اوافکار حيرانوي پدوی کښي دهوښيارانولپاره يادونې اوذکريات دي ﴿ وَجَعَلَ الظُّلُمَاتِ وَالنُّورَ ﴾ ( اوپيداکړي يې دي رنګارنګ ) تيارې اورڼا ) اوشپه اوورځ چي يوپه بل پسې اوړي رااوړي اودعالم پکښي خورازياتې منافع اوګټې خوندي دي چي شمېرېې نشي کېداي او(ظلمات ) يې دجمعي په صيغه راوړل څکه دګمراهي ښاخونه متعدددي اولاري يې ګوښې ګوښې دي او(نور) يې يوازي راوړي څکه چي مصدريې يودي اوهغه رحمان ذات چي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دکائناتو روښانونکي دی. په تسهيل کښي وايې چي پدي آيت کښي په مجوسيانو (آتش پرستانو) ردراغلی چي دوي داوراويانورو رڼاگانوعبادت کوي اووايې چي خيرله نورڅخه اوشرله تاريکي څخه زېږيدلی دی ځکه مخلوق هيڅکله اله کيدلای نشي اونه هم دحوادثوفاعل راځي ﴿ ثُمَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾ بياهم هغه کسان چي کافران شوي دي په رب خپل سره برابروي (نورشيان په عبادت کښي له الله سره ) يعنی وروسته له همدومره څرگندودلائلو اوروښانه براهينو د الله په وحدانيت اووجودباندي کافران شرک خوښوي اوله الله سره په عبادت کښي نوربتان برابروي چي پخپل لاس يې کيندلي اوپخپل فکر يې سنجولي دي پدي کښي خوراتعجب اوددوي توبيخ دی. ابن عطيه وايې چي په آيت شريف کښي دکافرانو په بدفعل باندي دلالت شته ځکه ددي معناداچي هغه ذات چي آسمانونه اوځمکي يې پيداکړي او آيتونه يې ښکاره او انعامات يې څرگندشوي نوله دي تولوروسته بياهم دوي له الله جل جلاله سره بتان اونورڅه په عبادت کښي برابروي لکه چي ته چاته وايې: ای سړيه څومره احسانات مي درسره کړي خوبياهم ته راته ښکنځل کوي ؟(۱) ﴿ هُوَ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن طِينٍ ﴾ دغه (الله) هغه ذات دي چي پيداکړي يې ياست تاسي له خټو(چي ستاسو پلارآدم يې تري جوړکړ) ﴿ ثُمَّ قَضَىٰٓ أَجَلًا ﴾ پس له هغه مقررکړي يې دي يووخت (لپاره دمرگ) ﴿ وَأَجَلٌ مُّسَمًّى عِندَهُۥ ﴾ اويوه موده معلومه (دقيامت ) ده په نزدد الله (ترڅوټول بيارا پاڅوي لومړنی (اجل مرگ) ته وايې اودوهم دبعث اونشورپه معنادی ﴿ ثُمَّ أَنتُمْ تَمْتَرُونَ ﴾ بياهم تاسي شک کوي (په توحيداوبعث کښي ) چي دومره دلائل مووکتل ﴿ وَهُوَ ٱللَّهُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَفِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (اوهمدی دی الله (مستحق دعبادت) په آسمانونوکښي اوپه ځمکه کښي ) ابن کثيروايې چي دآسماني اوځمکني موجوداتومعبود اود هغه په الوهيت اقرارکونکي دده دوحدت منونکي اوده ته له وېري اورغبت څخه دعاگاني کوي الله بولي (۲) ﴿ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ ﴾ عالم دی الله په پټ(حال) ستاسي اوعالم دی الله په ښکاره (حال) ستاسي ﴿ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ﴾ اوعالم دی الله په هغو (اعمالوچي کوئ يې تاسي (اوژربه وربانديي جزادرکړي ) وروسته ددوئ له عناداواعراض څخه داسي خبررا کوي ﴿ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ ءَايَةٍ مِّنْ ءَايَٰتِ رَبِّهِمْ ﴾ اونه راځي دي (کفاروته ) هيڅ کوم (دليل) له دليلونويامعجزه له معجزاتواويايوآيت له آيتونود (قرآن) درب ددوئ ﴿ إِلَّا كَانُواْ عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴾ مگروي دوئ له هغه څخه مخ گرزونکي (نه کتونکي هغه ته ) قرطبي وايې چي مرادله نه کتلوڅخه هغه آيات دي چي پردوئ لازم وودالله دتوحيداستدلال يې په هغوکړي وای اومرادله معجزاتوڅخه هغه چي نبی عليه السلام ته الله ورکړي دی او په دې دلالت کوی چې په صدق اوربښتينولي رالېږلی دی او ټول هغه څه چي له رب جل جلاله څخه يې راوړي حق دي .(۳) ﴿ فَقَدْ كَذَّبُواْ بِٱلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ﴾ (نوپه تحقيق نسبت

---

۱-البحرالمحيط ۲/ ۶۸
۲-ابن کثير۱/ ۵۲۸
۳-القرطبي۲/ ۳۹۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



د دروغو وګڼلو حق ته کله چي راغی دوي ته ) يعنی کله چي قرآن دوي ته له ربه راغی دوي يې تکذيب وکړ ﴿ فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنبَٰٓؤُاْ مَا كَانُواْ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ (ژر به راشي دوي ته (ظاهر به شي ) اخبار (حقيقت دهغه شي چي وو دوي چي پرې خندل به يې ) يعنی ژر به پر دوي عذاب نازل شي که عاجل وو او که آجل او دهغه شي حقيقت به ورته ښکاره شي چي دوي ورباندي ملنډي وهلي دغه په عذاب او عقاب باندي وعيدي دي چي دوي به د استهزاء سزاووينی وروسته بيا الله تعالی دوي دي ته هڅوي چي له پخوانيو امتونو څخه دعبرت سبق واخلی فرمايي: ﴿ أَلَمْ يَرَوْاْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ ﴾ آيا ندي کتلي (ندي خبر شوي ) دوي چي څومره (ډېر ) هلاک کړي دوي مونږ پخواله دوي نه له (نورو امتونو ) قرنونو څخه (چي دنبيانو تکذيب به يې کاوو ) ﴿ مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ ﴾ (چي ښه قوت ورکړي وو مونږ دوي ته په ځمکه کښي دومره قوت چي نه مودي درکړي تاسي ته ) يعنی اي دمکې خلګو مونږ دوي ته دومره دعيش پراخي او تمکين فی الارض ورکړي وو چي تاسي ته مونه دی درکړی. ﴿ وَأَرْسَلْنَا ٱلسَّمَآءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا ﴾ او را ښکته کړي وو مونږ باران پر دوئ پرله پسي او رېدونکي ﴿ وَجَعَلْنَا ٱلْأَنْهَٰرَ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمْ ﴾ او ګرزولي مووي ويالي چي بهيدلي له لاندي دمانيو او ونو ددوي يعني دمېوو ويالو او ښو ځړوبو فصلونو خاوندان وو ﴿ فَأَهْلَكْنَٰهُم بِذُنُوبِهِمْ ﴾ (نو هلاک کړل مونږ دوي په سبب دګناهونو ددوي ) يعنی دوي ناشکري وکړه او سرېې وغړاو وبيا مونږ ددوئ دګناهونو له امله هلاک کړل دغه دکفارو لپاره تهديد او اخطار دي چي دوي ته به هم هغه څه رسېږي چي ړومبنيو ته رسيدلي وو سره له دي چي هغوي خورا په قوت او توان کښي وو ﴿ وَأَنشَأْنَا مِنۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا ءَاخَرِينَ ﴾ او پيدا کړل مونږ وروسته له دوي نه (اهل ) د قرن نور. ابو حيان وايې چي پدي کښي دمخاطبينو لپاره تعريض دي چي دوي به هم که يې عصيان کاوو داسي هلاکېږي لکه پخواني قرنونه (١) ﴿ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَٰبًا فِى قِرْطَاسٍ ﴾ ( او که نازل کړی وای مونږ پرتا کتاب (ليکلی ) پر کاغذ ) يعنی ای محمده که می پرتا ليکلی کتاب لکه چي دوي وايې نازل کړی وای ﴿ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ ﴾ پس مس کړی وای دوي داکتاب په لاسونو خپلو (او پخپلو سترګو يې هم ليدلی وای چي هرډول شک او شبه له مينځه تللی وای) ﴿ لَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ نو خامخا ويلي به وو هغو کسانو چي کافران شوي دي چي نه دي داخو مګر سحر (کوډي) دي ښکاره ؛ (. غرض داچي دوي ايمان نه راوړي که څه هم خورا څرګند دلائل او ښکاره معجزې ورته راشي) ﴿ وَقَالُواْ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ﴾ او ويلي (کفارو ) ولي نه نازلېږي په دغه (محمد ) پرښته (له آسمانه ) ؟ چي دده دنبوت تصديق وکړي (لَوْلَآ ) ډهلا په معناده او دتحضيض او هڅوني لپاره راغلي ابو السعود وايې چي معناداچي ولي نه نازلېږي په ده پرښته چي مونږ يې ووينو او مونږ ته خبر راکړي چي دي نبی دی ؟ دغه ټولې خبري ددوي اباطيل او خرافات دي کله چي پلمه

---

١ - البحر المحيط ۴ / ٧٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وړباندي ودرېږي نوبيادابولالي پيل کړي (۱) ﴿ وَلَوْ أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ﴾ ( اوکه نازله کړي وای مونږ پرښته نوخامخافيصله شوي به وه خبره ) يعني داکه چيري مونږ پرښته نازله کړي وای اودوي لکه چي غوښتي دي هسي په خپلوسترګوليدلي وای بياکافران شوي وای نوبه ارومرودوي هلاکېدل (۲) لکه چي دالله جل جلاله عادت همد اسي جاري دی څوک چي کومه معجزه اوآيت وغواړي اوبياور باندي ايمان نه راوړي سمدستي يې الله ذوالجلال هلاکوي ﴿ ثُمَّ لَا يُنظَرُونَ ﴾ بيابه دوي ته مهلت نه ووړکړل شوي آيت شريف لکه ددوي دطلب او غوښتني دنه منلولپاره چي تعليل راغلی وي څکه دوي په دغسي غوښتنه داسي مثال لري لکه څوک چي دخپل مرګ لپاره لټون کوي ﴿ وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ رَجُلًا ﴾ اوکه ګرزولي وای مونږ دارسول پرښته (نه بشر) نوخامخاګرزولي به وه مونږ داپرښته (په صورت ديوه ) سړي (څکه دوي دپرښتې دليدلوپه خپل اصلي صورت باندي توان نلري ) ﴿ وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا يَلْبِسُونَ ﴾ ( اوکه ګرزولي وای مونږ پرښته په صورت دسړي ) نوخامخاپه شبه کښي به اچولي وو مونږدوي په همغسي اشتباه کښي چي اوس پکښي پراته دي دوي اوضعيفان ددوي څکه دوي که پرښته دانسان په صورت کښي ووينې هسي به وايې چي دغه انسان دی اوپرښته نه دی ابن عبا س رضی الله عنه وايې چي که چيري پرښته ورته راتلای هم به دانسان په شکل وه څکه دوی دپرښتې دليدلوتوان نلري هغه له نورڅخه پيداشوي له دي وروسته الله پاک پيغمبرصلی الله عليه وسلم ته دډاډينې په توګه فرمايې: ﴿ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ او(قسم دی ) خامخامسخرې کړي شوي دي په رسولانوچي پخواوو له تانه (دټولوامتونو کافرانوپخپلوورته رالېږل شوو رسولانوملنډي وهلي دي ﴿ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴾ نوچاپېرا ومحيط شوپه هغوکسانوپوري چي مسخرې يې کولي (هغه عذاب ) چي وودوي په هغه پسي به يې مسخرې کولې په دغه اخبارکښي دکافرانولپاره تهديدخوندي دی. ﴿ قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴾ ( اووايه ( ای محمده ! دوي ته ) وګرزي تاسي په څمکه کښي بياوګوري چي څرنګه وو(عاقبت ) ددروغجن کونکو (درسولانو ) يعنی وګورئ چي په پخوانيوکافرانوڅرنګه دردناک عذابونه رانازل شوي دي اودعبرت اخيستونکي کسانولپاره پنددي ﴿ قُل لِّمَن مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ ووايه ای محمده ! دوی ته ) چي چالره دي ټول کائنات خلقاًملکاً وعبيداً ) هغه شيان چي په آسمانونواوڅمکي کښي دی (سره له آسمانونواوڅمکي ) دغه پوښتنه دکافرانولپاره د تبکيت په توګه اوپه هغوی باندي دليل راوړل دي ﴿ قُل لِّلَّهِ ﴾ (ووايه ای محمده ! ) دوي ته چي خاص الله لره دي ) يعنی دوي ته دتقريراوتنبيه په ډول ووايه چي ټول دالله لپاره دي څکه کفارپدي باندي اکه پکه موافقه کوي ياخوداچي ددي اعتراف کوي

---

۱-ابوالسعود۲ / ۸۳

۲-چابياويلي که پرښته نازله شوي وای نودوي به يې دليدلوتوان نه درلود سمدستي به هلاک شوي وودادابن عباس رضی الله عنهما قول دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي ددي ګردو خالق الله دی او يا پدي چي ورته دليل وړاندي شي ﴿ كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ ٱلرَّحْمَةَ ﴾ (لازم کړي دي الله (تفضلاً) پرخپل ځان رحمت) دلته غرض په نرمي سره دوي ته دايمان بلنه ورکول دي څوالله جل جلاله ته رجوع وکړي ﴿ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ﴾ (۱) خامخا تول به کړي الله هرومرو تاسي دقيامت په ورځ کښي چي نشته هيڅ شک (په راتلود) هغه کښي (اوجزابه درکړي) ﴿ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ (هغه کسان چي زيان يې رسولی دی ځانونوخپلوته نودوي ايمان نه راوړي) يعني هغه څوک چي په دنياکښي يې دکفراوبدواعمالوپه نتيجه کښي ځانونوته زيان اړولی نودوي به ايمان رانه وړي اونه به دهغه په آخرت کښي پرته له عذاب اودوزخ څخه بله کومه ونده وي ﴿ وَلَهُۥ مَا سَكَنَ فِى ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ اوخاص دغه (الله) لره دي هغه شيان چي اوسېږي په شپه اوورځ کښي (ټول دهغه ملک دي اودهغه ترتصرف اوسلطان لاندي دي يعني هرڅه دالله مخلوق اوبندګان دي) ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ اوهمدغه (الله) دی ښه اوريدونکی (دټولواقوالو) ښه عالم دی (پرګردواحوالودبندګانو) ﴿ قُلْ أَغَيْرَ ٱللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا ﴾ ووايه ای محمده! دوی ته) چي آيابې له الله ونيسم زه (بل ولی (مددګار) استفهام دتوبيخ لپاره دی يعنی ای محمده! دغومشرکينوته ووايه چي آياپرته له الله بل معبودغوره کړم ﴿ فَاطِرِ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ (هسي الله چي پيداکونکی (بيمثاله) دآسمانونواوځمکي دی (بلکه نه يې نيسم) ﴿وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ﴾ حال داچي دغه الله روزي ورکوي (ګردومخلوقاتوته) اونوردوته روزي نشي ورکولای. ابن کثيروايې الله دخلکورازق دی پرته له دي چي هغوي ته محتاج وي (۲) ﴿ قُلْ إِنِّىٓ أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ ﴾ ووايه ای محمده! دوي ته) بيشکه زه مأموريم (حکم راته شوی دی) چي شم اول دهغوچي غاړه يې ايښي ده (له دي محمدي امت څخه) ﴿ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ (اوويلي شوي دي ماته) چي مه کېږه له سره له مشرکانونه زمخشري وايې چي معنايې داده چي داسلام راوړلوماته حکم شوی اوله شرک څخه منع شوی يم (۳) ﴿ قُلْ إِنِّىٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّى عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ ووايه ای محمده دوي ته) بيشکه زه وېرېږم که نافرماني وکړم له ربه خپله له عذابه دورځي ډېري لويې نه (چي قيامت دی) ﴿ مَّن يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُۥ ﴾ هرهغه څوک چي بچ کړي شي له عذابه پدي ورځ کښي نوپه تحقيق رحم کړي الله په ده ﴿ وَذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْمُبِينُ ﴾ اوداً (مهرباني) برى دي ښکاره ﴿ وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا هُوَ ﴾ اوکه ورسوي الله تاته څه سختي (له فقراوناروغي څخه) نونشته هيڅ ليري کونکی دهغه

---

۱ - ابوالسعودوايي دغه دقسم خواب دی اوجمله استيناف ددوي په اشراک باندي دوعيدلپاره راغلی ده يعني قسم دي چي تاسي به په قبرونو کي را جمع کړي

۲ - مختصرابن کثير۱/ ۵۷۰

۳ - الکشاف۲/ ۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مګرهم دی دی ﴿ وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوکه ورسوي تاته څه خير(لکه صحت اوغنانو دی په هرشي (چي اراده فرمايې ) ښه قادردي (نوخيراوشرنفع اوضررتل دالله په اراده رسيږي ) په تسهيل کښي وايې چي آيت شريف په وحدانيت باندي دليل دی څکه يوازي الله پاک دزيان او خير خاونددی همدارازوروسته له دي اوصافوپه مشرکينوباندي نورهم دلائل راوړي (١)﴿ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴾ ( اوهم دی غالب زورورد ی دپاسه دبندګانو خپلو(په قدرت ،قوت ، قهراوغلبه اوهم دی ښه حکمت والاښه خبرداردي له هرشي ) ابن کثيروايې: دی هغه ذات دي چي دجبابره ووغاړي ورته کږې دي په هرشي باندي قاهرپه ټولوکړووړوکښي دحکمت خاوند او د شيانوپه خايونوخبرداردی(٢) .

بلاغت:

د (الحمدلله) صيغه دقصرافاده کوي يعنی دحمداوثنالائق اوورېل څوک نشته پرته له الله رب العالمين څخه.

٢ - پدې جمله کښي چي فرمايې: (جعل الظلمات والنور) دلته له بديعي محسناتوڅخه دطباق صنعت راغلی دی.

٣ - (ثم اللذين کفروابربهم يعدلون) پدې کلام کښي استبعاددي چي وروسته له داسي څرګندوآيتونوبياهم بل څوک له رب سره برابروئ ؟اوداچي په (ربهم) کي يي (رب) ظاهردضميرپرځای راووړدزياتي تقبيح اوتشنيع لپاره دي.

۴ - ددي کلماتوترمينځ چي(سرکم وجهرکم) دی دطباق صنعت راغلی دی.

۵ - پدي کلام کښي چي فرمايې: (من قرن) (مجازمرسل ) دی يعنی (اهل قرن).

٦ - ( وارسلناالسماء مدرارًا) دلته يې له باران څخه په (سماء ) تعبيروفرمايه څکه هغه له آسمانه راوريږي نوداهم مرسل مجازدی.

٧ - پدې جمله کښي چي: (استهزئ برسل) دلته د(رسل) تنکيردتفخيم اوتکثيرلپاره دي

٨ - ( السميع العليم ) دغه دواړه صيغې دمبالغې دي

فائده:

په قرآن کريم کښي پنځه سورتونه شته چي په (الحمدلله) سره پيل شوي يويې سورة الفاتحه دی چي ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ بل سورت الانعام دی ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ﴾ بل سورت (الکهف ) دی ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَنزَلَ عَلَىٰ عَبْدِهِ الْكِتَابَ ﴾ بل سورة سبأدی ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ﴾ او وروستي سورة فاطردی ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ .

---

١-التسهيل ٢/ ۴

٢-ابن کثير١/ ۵٧١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## الله تعالی فرمایي:

﴿قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً ۖ قُلِ اللَّهُ ۖ شَهِيدٌ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ۚ وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَٰذَا الْقُرْآنُ لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ ۚ أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ آلِهَةً أُخْرَىٰ ۚ قُل لَّا أَشْهَدُ ۚ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِنَّنِي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿١٩﴾ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمُ ۘ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۗ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٢١﴾ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٢٢﴾ ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾ انظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ ۚ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۖ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِن يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ۖ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾ وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٧﴾ بَلْ بَدَا لَهُم مَّا كَانُوا يُخْفُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٢٨﴾ وَقَالُوا إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿٢٩﴾ وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ قَالَ أَلَيْسَ هَٰذَا بِالْحَقِّ ۚ قَالُوا بَلَىٰ وَرَبِّنَا ۚ قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣٠﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوا يَا حَسْرَتَنَا عَلَىٰ مَا فَرَّطْنَا فِيهَا وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ عَلَىٰ ظُهُورِهِمْ ۚ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ ﴿٣١﴾ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَعِبٌ وَلَهْوٌ ۖ وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٣٢﴾ قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ ۖ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ۚ وَلَقَدْ جَاءَكَ مِن نَّبَإِ الْمُرْسَلِينَ ﴿٣٤﴾ وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاءِ فَتَأْتِيَهُم بِآيَةٍ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ ۚ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ ﴿٣٥﴾﴾ الأنعام: ١٩ - ٣٥

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی پخپل قدرت او وحدانیت باندې د سورت له پیل څخه تراوسه دلائل او براهین ذکر کړل وروسته یې د منکرینو او هغو کسانو چې وحی یې دروغ ګڼله دریز څرګند کړاو بیایې هغه ددوی د حسرت او افسوس حالت چې د قیامت په ورځ ورباندې راځي راوړ.

## لغتونه:

(لانذركم) چې ومو ویروم انذار هغه خبرتیا ته وایې چې تخویف پکښې وي (فتنتهم) فتنه ازموینې ته وایې (اکنة) د کنان جمع او پردې ته وایې (وقرا) دروند والي ته وایې ویل کیږي (وقرت اذنه) کله چې کوڼ شي. (اساطیر) خرافاتو ته وایې د اسطورة جمع ده جوهري وایې چې اساطیر بیهوده ته وایې چې (ترهات) یې بولي ([1]) (ینأون) لیري کیږي (بغتة) نابېره ناڅاپي (فرطنا) له فرط څخه اخیستل شوي او سره له دې چې

---

1- مجمع البیان ٤ / ٢٨٢

Bawar.net

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دکولوتوان یې لري تقصیرته وایې ابوعبیدوایې چي (فرط) یعنی ضائع یې کړ( اوزارهم ) د(وزر)جمع اوگناه ته وایي ( یزرون) باروي (لهو) له جد څخه هزل ته خان گرزول اوهرشي چي تامشغول کړي هغه لهودي.

دنزول سبب یې:

أ- روایت کېږي چي دمکې سردارانو رسول الله صلى الله علیه وسلم ته وویل : ای محمده مونږهیڅوک نه وینوچي ستادنبوت دربښتنولي تصدیق کوي مونږله یهودانواونصرانیانوپوښتني وکړي هغوي راته ویل چي ستاپه شان کنبي له دوي سره هیڅ کومه یادونه اوصفت نشته. نویوداسي څوک راوښیه چي ستادرسالت شاهدي ووایې لکه چي ته فکرکوي نو الله داآیت نازل کړ: (قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَٰدَةً قُلِ ٱللَّهُ شَهِيدٌۢ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ) (١)

ب : - له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کېږي چي : ( ابوسفیان اوولیدبن مغیرة اونضربن الحارث ) رسول الله ته په داسی حال کی چې هغه دقرآن کریم تلاوت کاوو کیناستل نو دوي نضربن الحارث ته وویل محمدڅه وایې ؟ هغه ویل دغه پخواني اساطیروایې لکه چي مابه دپخوانیوکیسې درته کولي نو الله جل جلاله داآیت نازل کړ: (وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ ).

ج: - روایت کیږي چي (اخنس بن شریق ) له ( ابوجهل بن هشام ) سره ولیدل نوورته ویې ویل ای ( ابوالحکم ) دمحمدحال راکړه چي هغه پخپله دعوی کنبي رښتوني اوکه دروغجن دي له مونږسره خوپرته له مونږ بل هیڅوک نشته ابوجهل ورته ویل په خدای قسم چي محمدرښتوني اوصادق دی هیڅکله یې دروغ ندی ویلي خوکله چي (بنی قصی ) دلواء ،سقایت، حجابت اونبوت واگي په لاس کي واخلي نو نورو قریشوته ته به څه پاتي شي ؟ نو الله داآیت نازل کړ: ( قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُۥ لَيَحْزُنُكَ ٱلَّذِى يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ يَجْحَدُونَ ) (٢)

تفسیر:

﴿ قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَٰدَةً ﴾ ( ووایه ای محمده دوي ته ) چي کوم یوشي لوی دی له جهته دشاهدي (پدي چي زه دنبوت په دعوی کنبي صادق یم) ﴿ قُلِ ٱللَّهُ شَهِيدٌۢ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ﴾ (ووایه (په ځواب کنبي دوي ته ) چي الله (لوي دی دشهادت له کبله ) بل ځواب نشته ) ( اوالله) ښه شاهددی زمااوستاسي په مینځ کنبي ) یعني دوي ته هسي ځواب ورکړه ورته وایه چي الله زمادنبوت اورسالت شاهدي ورکوي اودالله شهادت زمالپاره کافي دی. ابن عباس رضی الله عنه وایې چي الله خپل نبی حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته ویلی چي دوي ته ووایه چي کوم یوشي لوی دي له جهته د شاهدۍ که یې ځواب درکړ خوښه ترښه اوکه نه نوورته ووایه چي الله زمااوستاسي ترمینځ شاهددي (٣)﴿ وَأُوحِىَ إِلَىَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانُ لِأُنذِرَكُم بِهِۦ وَمَنۢ بَلَغَ ﴾ (وحی کړي شوي دي ماته داقرآن لپاره ددي چي وویروم (خبردارکړم )تاسي پدي سره اوهغه څوک چي ورسیږی

---

١-اسباب النزول ص١٢٢
٢التفسیرالکبیر ٢٠٥/١٢
٣-البحر٩٠/٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



( ده ته داقرآن په هرزمان اومکان کښي ) يعني ماته داقرآن ددي لپاره وحی کړل شوی دی چي وويروم تاسي ای دمکي خلکواونورټول هغه څوک که عرب وي اوکه عجم چي ورته ورسېږي قرآن دقيامت تر ورځي پوري ابن جزي وايي چي : پدي آيت کښي مقصد په الله جل جلاله سره استشهاددي هغه چي درسول الله په رښتنولي باندي خوراسترشهادت دی او دالله شاهدي درسول الله دنبوت په صحت باندي دالله جل جلاله علم اودهغه دمعجزاتو اظهاردهغه په تصديق باندي دلالت دی (١) ﴿ أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ ءَالِهَةً أُخْرَىٰ ﴾ ( آيابيشکه تاسي خامخاشاهدي لولي په دي چي شته سره دالله خدايان نور؟ ) دغه استفهام دتوبيخ لپاره دی يعني ای مشرکانو تاسي دااقرارکوي چي له الله جل جلاله سره نورخدايان شته ؟ څرنگه تاسي داسي شاهدي واياست وروسته له دي چي څرگند دلائل اوواضح حجتونه درته راغلي دي ﴿ قُل لَّا أَشْهَدُ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ ووايه ای محمده ! دوي ته ) زه خوشاهدي (پدي سره ) نه ورکوم ووايه خبره هم داده چي الله دي معبودیو( واحدٌ) , احدٌ ، فردٌ ، صمدٌ دی ) ﴿ وَإِنَّنِي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴾ (اوبيشکه زه بېزاره يم له هغوشيانوچي تاسي يې له الله سره شريکان کوي ) ( چي بتان دي ) وروسته الله دارابښيي چي کافران دجهل اوعنادترمينځ دي ﴿ الَّذِينَ ءَاتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمُ ﴾ ( هغه کسان چي ورکړي دي مونږدوي ته کتاب پېژني دوي دا(رسول) لکه چي پېژني دوي زامن خپل ) يعني يهوداو نصاری هغه کسان دي چي پيغمبر يې پېژانده خوعناديې ورسره کاووپيغمبر يې پخپلوصفاتواونعتونوسره کوم چي په تورات کښي اوهمدارازپه انجيل کښي ستايل شوي ووهغسي پېژانده لکه چي دوي به پخپل زامن پيژندل پدي کښي يې هيڅ شک اوشبه نه لرله زمخشري وايي چي دغه دمکي دخلکولپاره استشهاددی چي اهل کتابودپيغمبرمعرفت درلوداو نبوت په صحت يې علم لاره (٢) ﴿ الَّذِينَ خَسِرُوٓا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ هغه کسان چي زيان يې رسولی دی ځانونوخپلوته نودوي ايمان نه راوړي ) يعني هغه کسان ځکه زيانکاران دي چي سره له څرگندو دلائلوبياهم په پيغمبرايمان نه راوړي ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِهِۦٓ ﴾ ( اوڅوک دی ډېرظالم له هغه چاچي وتړي پرالله دروغ يانسبت ددروغوکوي آيتونودده ته ؟ ( بلکه نشته ) استفهام انکاري اومعنايې نفی دی يعني هيڅوک ترهغه چاظالم نه دي څوک چي په الله دروغ تړي قرآن اوڅرگندي معجزاتي کوډي بولي ابوالسعود وايي : (لوْ) کلمه پدي خبرتياورکوي چي هر يودتکذيب اوافتراء يواځي يواځي دظلم وروستي غايه ده خودوي دواړه سره يوځاي کړي نوهغه څه يې ثابت کړي کوم چي الله نفی کړي اوهغه يې نفی کړي کوم چي الله ثابت کړي دی ( قاتلهم الله أنیٰ يؤفکون ) (٣) ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ الظَّٰلِمُونَ ﴾ (بيشکه شان دادی چي خلاصي نه مومي ظالمان ) يعنی افتراء کونکي اودروغ تړونکي خلاصي نه مومي اوپدي کښي دي ته اشارت دی چي که چيري دنبوت مدعي دروغگوي وي نو په الله باندي افتراکونکی دی

---

١-التسهيل ٢/ ٥

٢-الکشاف٢/ ٩.

٣-ابوالسعود٢/ ٨٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوبیاخود هغه په لاس معجزاتي هدوخرگندیدلای نشي ﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا ﴾ او(یادکړه) هغه ورځ چي راجمع به کړو دوي ټول (دحساب ) لپاره بیابه ووایو (دخلگوپه وړاندي هغوکسانوته چي شرک به یې کړي دي ﴿ أَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴾ (چي چیرته دي ؟ شریکان ستاسي هغه (شریکان) چي وئ تاسي چي گڼل به مو(دالله شریکان) بیضاوي وایې چي مرادله استفهام څخه توبیخ دی او(تَزْعُمُونَ ) معنایې داده چي (تزعمونهم آلهة وشركاء مع الله ) دواړه هغه مفعولان دي حذف شوي دي اوښایې چي ددوي اوددوي آلهووترمینځ به حائل واقع شي چي دوي یې پداسي گړی اوساعت کښي چي ټولي هیلي اوآرزوگاني یې پسي تړلي وي ونهویني (١) ابن عباس رضی الله عنه وایې هره د (زعم) کلمه چي په قرآن کریم کښي راشي هغه دکذب په معناده ﴿ ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ ﴾ ( بیابه نه وي (عاقبت ) دفتنې (کفر، فریب ، عذر)ددوي ) یعنی کله چي پدي پوښتنه باندي وازمویل شي اوحقائق وویني ﴿ إِلَّآ أَن قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴾ ( مگرداچي وایې به دوي چي په الله قسم چي رب زمونږدي چي نه وومونږمشرکان ) یعني په دروغوبه قسم آخلي چي مونږمشرکان نه ووقرطبي وایې کله چي دوي دمؤمنانولپاره دالله مغفرت ووینې دوي به له شرک څخه بېزاره شي اوهغه به نه مني ابن عباس (رضی الله عنه) وایې چي الله به داخلاص خاوندانوته گناهونه وروبښي نوکله چي مشرکان دا ووینې وایې به چي راځې مونږ ووایوچی مونږ گنهگاران وو خومشرکان نه وونوالله به یې په خولوباندي مهرولگوي اولاسونه ، پښې به یې په هغوکړوړو(شاهدي ورکړي چي ترسره کړي یې وو(٢) ﴿ انظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ ﴾ (وگوره ( ای محمده !) څرنگه دروغ یې وویل پرځانونوخپلو ) یعني ای محمده وگوره دوي څرنگه پخپلو ځانونو دروغ وویل چي شرک یې ندي کړي دوي دغه خبره د(علام الغیوب) ذات په وړاندي وکړه دغه خبره ددوي دصریح اوبربنډ دروغوپه هکله دتعجب لپاره دي ﴿ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ ( اوورک شول له دوي نه هغه چي وودوي چي تړل به یې دروغ (پرالله په نیولودشریکانوسره ) یعنی له دوي څخه به هغه چي ددوي دشریکانوشفاعت کول گومان درلوداوهمداسي هغه افتراء چي له الله سره به یې شریکان نیول ورک شي وروسته الله پاک دمشرکانوهغه حالت چي کله به یې قرآن اوریدل داسي بیانوي : ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ﴾ اوځینی له کفارو(مشرکینو ) هغه څوک دي چي غوږنیسي تاته ای ( محمده ) (دقرآن دتلاوت په وخت کښي ) ﴿ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ ﴾ اواچولي دي مونږپه زړونوددوي پردي (له دي جهته ) چي ونه پوهېږي دوي پدي (قرآن) ﴿ وَفِيٓ ءَاذَانِهِمْ وَقْرًا ﴾ او(اینبسي مودي) په غوږونوددوي کښي دروندوالی (کوڼ والی چي حق وانه وري ) ابن جزي وایې چي الله پاک ددوي اوپه قرآن دپوهیدلو ترمینځ مانع پیداکړي اودلته یې په پرده اودروندوالي دمبالغې لپاره تعبیرفرمایلي

١-البیضاوي ١٢٩
٢-التسهیل ٢/ ٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی ﴿ وَإِن يَرَوْا كُلَّ ءَايَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا ﴾ اوکه ووینې ګرد (دلائل دقدرت نوبیاهم ) ایمان نه راوړي (ځکه عنادبې وروستي مرحلې ته رسیدلی دی. ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوكَ يُجَٰدِلُونَكَ يَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ ترهغوپوري کله چې راشي دوي تاته چې جګړې کوي له تا سره وايې هغه کسان چې کافران شوي دي ندي داقرآن مګرباطلي کیسې دي دپخوانیوخلکو ﴿ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ ﴾ اوهم داکسان منع کوي خلک (له قرآن کریم اود محمد صلی الله علیه وسلم له متابعت نه او(پخپله هم) لیري کېږي له ده (چې ایمان پرې نه راوړي ) ﴿ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴾ اونه هلاکوي دوي مګرځانونه خپل اونه پوهېږي دوي (پدې چې ضررېې هم دوي ته عائددی ) ابن کثیروايې چې دوي دوه قبیح اوناکاره فعلونه سره یوځاي کړي یوداچې پخپله نفع نه آخلي اونه بل څوک نفع اخیستلوته پرېږدي اودوئ داسې کارکوي چې وبال بې دوئ ته راجع دي خوپدي نه پوهېږي([1]) ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُواْ عَلَى ٱلنَّارِ ﴾ اوکه ووینې ته ( ای محمده ! ) کله چې ودرولي شي دوراندي دوي پراور(ددوزخ) نو وبه وینې یولوي امرچې دسروبینستان به بې له هیبته سپېنه وړی. کېږي بیضاوي وایې چې د(لو)ځواب محذوف دی یعني یوحیرانونکی هیښونکی حالت به ووینې ([2])اوددي لپاره یې حذف کړي ترڅوچې اوریدونکي ته ترهغه څه چې اټکل یې کوي لاهم ابلغ وي ﴿ فَقَالُواْ يَٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا ﴾ نووبه وایې دوي (دعذاب د انواعودلیدلوورورسته ) ای کاشکي مونږ بیابوتلي شو(دنیاته) اونه به کړوتکذیب په آیتونودرب خپل ﴿ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ ( اوشوبه مونږله مؤمنانو) یعني کله چې دنیا ته بوتلي شونوبه په الله ایمان راوړوربښتوني ایمان دوي ددې هیله کوي چې دنیاته راوګرزولي شي اوخپل عملونه اصلاح کړي الله پاک ددغي تمناپه ردکښي فرمایې: ﴿ بَلْ بَدَا لَهُم مَّا كَانُواْ يُخْفُونَ مِن قَبْلُ وَلَوْ رُدُّواْ لَعَادُواْ لِمَا نُهُواْ عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾ اوکه بېرته بوتلي شي دوي دنیاته نوخامخا به بیاهم راوګرزي دوي همغه شي ته چې منع کړي شوي وو) دوی له هغه شي څخه (چې کفراومعاصي دي) اوبیشکه دوي هرومرودروغجنان دي (په دعوی دایمان کښي ) یعني که بالفرض دنیاته راوهم ګرزي ځکه بېرته دنیاته راتلل وروسته له مرګه محال وي خوبیابه هم دوي دایمان په دعوی کښي دروغجن وي ﴿ وَقَالُوٓاْ إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴾ اووايې دوي (کفارفجار) ندي ژوندون مګرداژوندون زمونږدنیوي دی اونه یو مونږبیا راپاځول شوي ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُواْ عَلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾ اوکه ووینې ته ای محمده ! ) هغه وخت چې ودرولي شي دوي خپل رب ته (دحساب لپاره لکه چې ګنهګارمریي دخپل بادار په وړاندي دعذاب څکلولپاره درېږي د(لو) ځواب دموقف دهول اوهیبت دخوندي ساتلولپاره محذوف دی یعني نووبه وینې یولوی امر) ﴿ قَالَ أَلَيْسَ هَٰذَا بِٱلْحَقِّ ﴾ فرمایې (الله) آیاندی دا(دوهم ژوندون) په حقه سره ؟دلته داستفهام همزه دتقریع اوټکولولپاره راغلی

---

۱-ابن کثیر۱/ ۵۷۳
۲-البیضاوي ۱۲۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی چي دوي ددغسي ژوند تکذيب کاوو ﴿ قَالُوا بَلَىٰ وَرَبِّنَا ﴾ وبه وايي دوي هو ! حق دي قسم مودي په رب خپل ﴿ قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ (نو بيابه) وفرمايي (الله) پس وڅکئ داعذاب په سبب ددي چي وي تاسي چي کافران شوي وي (په دنيا کښي) اوپيغمبران به مودروغجن ګڼل بياالله پاک ددغو کفارو حال داسي بيانوي: ﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ ﴾ نو په تحقيق زيانکاران دي هغه کسان چي دروغ ګڼي ملاقات له الله سره (په عقبی کښي) ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً ﴾ (تر هغه پوري کله چي راشي دوي ته قيامت ناڅاپه) داچي دوي ته يې وخت معلوم نه وي قرطبي وايي چي قيامت ته څکه ساعت وويل شو چي حساب پکښي په سرعت کېږي (١) ﴿ قَالُوا يَا حَسْرَتَنَا عَلَىٰ مَا فَرَّطْنَا فِيهَا ﴾ (نو) وايي به دوي ای افسوسه زمونږ په هغه شي چي تقصير کړي وو مونږ په دينا کښي (چي ايمان) اوښه اعمال وو) ﴿ وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ عَلَىٰ ظُهُورِهِمْ ﴾ حال داچي دوي به واخلي پيتی دګناهونو خپلو په شاوو خپلو ابن جزي وايي چي دغه دګناهونو دپېټي په اوږ واخيستلو څخه کنايه راغلي روايت کېږي چي دکافر په ختّ کښي به دهغه عمل چي خوراب د رنګه شکل به يې وي ورسپوروي (٢) اوهمدارنګه په مسلمان باندي به دهغه عمل چي خورا ښه شکل به يې غوره کړی وي باروي ﴿ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ ﴾ (خبردار شي چي بد دي هغه شي چي په شايي دوي ګرځوي (له ګناهونو څخه) ﴿ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَعِبٌ وَلَهْوٌ ﴾ (اوندي ژوند ددنيا مګر لوبي اوساعت تېري) يعني باطل اوتېر ايستنه ده څکه لذت يې فنا مومي اووخت يې ډېر لږ وي ﴿ وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ ﴾ (اوخامخا دار آخرت بهتردی لپاره دهغو کسانو چي پرهېزګاري کوي) يعني آخرت اود هغه ډول ډول نعمتونه دپرهېزګارانو بند ګانو لپاره بهتردی چي تل ترتله او خوښي يې نه ورکېږي ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ نو آيا عقل نه چلوي تاسي چي آخرت تر دنيا غوره دي؟ وروسته الله پاک رسول خپل ته ډاډينه ورکوي چي الله دده دقوم په تکذيب خبردی ﴿ قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ ۖ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ ﴾ په تحقيق مونږ پوهېږو چي بيشکه شان دادي چي خامخا خفه کوي تا (ای محمده !) هغه شی چي وايي دوي (ستا په تکذيب کښي) نو بيشکه دوی نه کوي تکذيب ستا (په واقع کښي) حسن وايي چي دوي به ويل هغه کوډګر، شاعر کاهن اولېونی دی. يعني دوي په زړه کښي ستا تکذيب نکوي بلکه ستا تصديق کوي خو دوي له عناده ستا انکار کوي نو ته پدي مه خفه کېږه ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: رسول الله صلی الله عليه وسلم په امين پېژندل شوي وو نو دوي پوهېدل چي هغه دروغ نه وايي خو دوي جحود او انکار کاوو ابوجهل به ويل مونږ ستا تکذيب نه کووته زمونږ په نزد ربښتوني يې خو مونږ د هغه څه تکذيب کوو چي تا راوړی دي (٣) ﴿ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴾ ولکن دا ظالمان په آيتونو د الله

---

١- القرطبي ٦/ ٤١٢

٣- التسهيل ٢/ ٧

٣- البحر المحيط ٤/ ١١٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



انکار( اومسخري کوي) ﴿ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا ﴾ (نوته مه خفه کېږه ! ځکه چي: اوخامخاپه تحقیق دروغجن بللی شوي دي دهررسولان پخواله تانه نوصبربه يې کاووپه دروغجن بلل کېدلو(دکفاروله جانبه ) ﴿ وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا ﴾ اوضرررسیدلو(دکفاروله جانبه ) ترهغه پوري چي راغی دووي ته مرسته زمونږ، په آیت شریف کښي دصبراوزغم ارشاددي اودنصرت اومرستي زېري ﴿ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ﴾ ( اونشته هیڅ اړونکي دکلماتودالله) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي مرادله کلماتوڅخه مواعيددي اوپدي کښي دوعدتائیدهم دی ﴿ وَلَقَدْ جَاءَكَ مِن نَّبَإِ الْمُرْسَلِينَ ﴾ (اوخامخاراغلي تاته (څه خبره) له حالاتود(تېرو )رسولانو(چي تسلادي وشي )یعني دهغوانبیاووچي څرنگه مونږ هغوئ ژغورلي اوپخپلو قومونو موبری ورکړي دي نوته به غمگیني نه کوي ځکه الله ستامرستندوي اوناصردي ﴿ وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ ﴾ اوکه وي چي سخت وي پرتاباندي مخ گرځول ددوي (له حق دین څخه ) ای محمده !) ﴿ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ ﴾ پس که توان لري ته چي ولټوي ته کوم سوری په ځمکي کښي ﴿ أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاءِ ﴾ یا( ولټوي ) کومه زینه په ( طرف د ) آسمان (چي ورباندي وخیژي ) ﴿ فَتَأْتِيَهُم بِآيَةٍ ﴾ نوراوړي ته دوي ته کوم معجزه (چي دوي يې غواړي نوهسي وکړه خوفائده نکوي ) ﴿ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ ﴾ ( اوکه اراده کړي وي الله (دهدایت ددوي نوهرومروبه يې راټول کړي وو دوي گردپه سمه لاره پس له سره مه کېږه له ناپوهانوڅخه) چي دالله جل جلاله حکمت اوازلي مشیت ددوي په ایمان نه راوړلوکښي دی له پامه وتلی وي.

## بلاغت:

۱: - پدې کلام کښي چي (كمايعرفون أبناءهم) مرسله مجمله تشبیه راغلي ده.

۲ - : ( الذين كنتم تزعمون) دلته ایجازبالحذف صنعت دي چي تقدیریې داسي دی چي (تزعمونهم شركآء).

۳ – ( انظركيف كذبوا) دلته صیغه دتعجیب لپاره ده یعني ددوي دغه نادردروغوته وگوره !.

۴ – پدي جمله کښي چي فرمايي : (وفی آذانهم وقرا) کله چي يې دزړونوپه هکله دپردواودغوږونوپه باب په دروندوالي تعبیروفرمایه دغه له قرآن څخه ددوي دمخ اړولو اوددوي داعراض لپاره استعاره ده.

۵ – ( يقول الذين كفروا) دلته وضع دظاهرپرځای دضمیرراغلي ددې لپاره چي پردوي باندي کفرولیکل شي.

۶– پدې کلام کښي چي ( ينهون وينئون) دلته دناقص جناس صنعت راغلی دي.

۷ –( وانهم لكاذبون) پدي کلمه کښي دوه دتاکیدادات راغلي چي يويې ( ان ) اوبل يې (لام ) دی ترڅو د دي آگاهي ورکړي چي دروغ ددوي په خټه کښي شته.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۸ – پدي كلام كښې چې فرمايي: ( وما الحيوة الدنيا الالعب ولهو) دلته بليغه تشبيه ده څكه دنيايې پخپله لهولعب وګڼله او مبالغه مقصد دي لكه چې خنساء وايي ( فانماهى اقبال وادبار). دغه دنيا راتله او تله دي.

۹ – ( افلاتعقلون) استفهام د توبيخ لپاره دي

۱۰ – ( كذبت رسل ) د ( رسل )تنوين د تفخيم او تكثير لپاره دي.

تنبيه:

امام فخررازي وايي د الله (جل جلاله ) داقول چې فرمايي ( ولوترى اذ وقفوا على النار) د ځواب غوښتونكي دي خو ځواب د شان د تعظيم او د امر د تفخيم لپاره حذف شوي دي او ددي امثال په قرآن كريم كښې او همدارازپه اشعاروكښې ډېردي او دغه د ځواب نه راوړل تر راوړلو خوراغيزه لرونكي وي لكه چې ته خپل مريي ته ووايي: كه درولاړشوم – اونورځواب څرګندنكړي نو دهغه فكربه د ډول ډول عذابونو خواوو ته ځغلي چې وژل، وهل، ټكول، هډوكي ماتول اونوردي نوبه يي ويره زياته شي څكه هغه نه پوهيږي ته به څرنګه عذاب وربانديي ولوروي ! اوكه چيري ورته ووايي كه درولاړشوم په والله چې هرو مرو به دي ووهم نو دلته دى چى عذاب څرګند كړ هغه پوهيږى چې پرته له ډبولو بل تكليف نه وررسوي نودا ثابته شوه چې د ځواب نه راوړل دوېري په وركولو كښې د قوي اغيزي درلودونكي دي[1]

الله تعالى فرمايي:

﴿ إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ وَالْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ (٣٦) وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَن يُنَزِّلَ آيَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (٣٧) وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُم مَّا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِن شَيْءٍ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ (٣٨) وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا صُمٌّ وَبُكْمٌ فِي الظُّلُمَاتِ مَن يَشَإِ اللَّهُ يُضْلِلْهُ وَمَن يَشَأْ يَجْعَلْهُ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ (٣٩) قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللَّهِ تَدْعُونَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ (٤٠) بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِن شَاءَ وَتَنسَوْنَ مَا تُشْرِكُونَ (٤١) وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ (٤٢) فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (٤٣) فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ (٤٤) فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (٤٥) قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ (٤٦) قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الظَّالِمُونَ (٤٧) وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ فَمَنْ آمَنَ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ (٤٨) وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ (٤٩) قُلْ لَّا أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ (٥٠) وَأَنذِرْ بِهِ

---

۱– التفسير الكبير ۱۲/ ۱۹۰

Bawar.net



﴿ وَأَنذِرْ بِهِ ٱلَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّهِمْ ۙ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِۦ وَلِىٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿٥١﴾ وَلَا تَطْرُدِ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِٱلْغَدَوٰةِ وَٱلْعَشِىِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُۥ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَىْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَىْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٢﴾ وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لِّيَقُولُوٓا۟ أَهَٰٓؤُلَآءِ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنۢ بَيْنِنَآ ۗ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَعْلَمَ بِٱلشَّٰكِرِينَ ﴿٥٣﴾ وَإِذَا جَآءَكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا فَقُلْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ ۖ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ ٱلرَّحْمَةَ ۖ أَنَّهُۥ مَنْ عَمِلَ مِنكُمْ سُوٓءًۢا بِجَهَٰلَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُۥ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥٤﴾ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْـَٔايَٰتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٥٥﴾ قُلْ إِنِّى نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ۚ قُل لَّآ أَتَّبِعُ أَهْوَآءَكُمْ ۙ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴿٥٦﴾ قُلْ إِنِّى عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّى وَكَذَّبْتُم بِهِۦ ۚ مَا عِندِى مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦٓ ۚ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ يَقُصُّ ٱلْحَقَّ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْفَٰصِلِينَ ﴿٥٧﴾ قُل لَّوْ أَنَّ عِندِى مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦ لَقُضِىَ ٱلْأَمْرُ بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٨﴾ ﴾ الأنعام: ٣٦ - ٥٨

### مناسبت:

کله چي الله پاک دمشرکینو له قرآن اوایمان په پیغمبرڅخه اعراض اومخ اړونه یاده کړه نودلته یې ددغه کار(سبب ) بیان کړهغه داچي قرآن نوراوشفاده مؤمنان ورباندي سمه لاره مومي اوکافران دمړوپه منزلت دي نه اوري اونه څه ته ځواب وایې بیاوروسته یې دمشرکینو غوښتني یادي کړي اوهغوي یې له کنیزاوګونګیانوسره چي په هیڅ نه پوهیږي تشبیه کړل.

### لغتونه:

( تضرعوا) چې دوی عجز وکړی له ضراعة څخه اخیستل شوي اوهغه بیا عجز ، ذلت ته وایې (الباسآء ) له بؤس نه صادره اوفقرته وایې ( الضرآء) له ضرڅخه اوهغه بلاته وایې قرطبي وایې ( باساء) په اموالوکښي او( ضراء، په ابدانوکښي وي دغه داکثرعلماوورایه ده (١) (مبلسون) مبلس ناهیلي ته وایې اوله دي مادي څخه ابلیس هم راغلی دی ځکه هغه دالله عزوجل له رحمت څخه نامیده دی (٢)(دابر) آخراوپاي او(دابرالقوم) دقوم خلف ته وایې یعني له بیخه ایستل اوهلاکول دغه دقطرب قول دي (یصدفون) اعراض کوي صدف اعراض ته وایې (تطرد) ته وشړی له طردنه اخیستل شوی اوهغه له سپکتیاسره جوخت ابعاداوشړلوته وایې ( الفاصلین ) حکم کونکي ( یافیصله صادرونکي ).

### دنزول سبب:

ابن مسعودرضی الله عنه وایې چي دقریشو ډله درسول الله صلی الله علیه وسلم په مجلس تیرېدله اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست صهیب ، بلال ، خباب، عمار، اونوربېوزله مسلمانان یې ولیدل نودوي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل: آیاترخپل قوم اوتېردي دغه کسان غوره ګڼلي ؟! آیامونږ پردوي پسي پیروي وکړو ؟! آیاداهغه کسان دي چي اللهورباندي احسان کړي دی ؟دوي له ځانه

---

١-القرطبي ٦ \ ۴۲۴
٢-غریب القرآن قتیبه ص ۲۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وشره اوکله چي دي وشړل بيابه مونږ ستا پيروي اومتابعت وکړو الله جل جلاله داآيت نازل کړ. ﴿ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ (۱) .

تفسير:

﴿ إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ وَالْمَوْتَى يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴾ (بيشکه قبلوي بلنه ستا (ايمان ته) هغه کسان چي اوري (پندستا اودلته کلام بشپړشو وړوسته بياپيلېږي ) اومړي به ولاړکړي الله بياخاص هم ده ته به ور وستي شي ) ابن کثيروايي چي پدغومړو سره مرادکفاردي ځکه زړونه يې مړه دي نوالله له مړوسره تشبيه کړي هغوي چي وجودونه يې مړه وي دغه تشبيه دتهکم اواستهزاء لپاره دی (۱)طبر ی بياوايي معناداچي الله ﷺ به کافران له مړوسره راپاڅوي نوالله پاک دوي هم دمړو په ډله کښي ودرول هغوي چي نه څه اوري اونه په څه پوهيږي ځکه دوي دالله ﷺ په دلائلو کښي هيڅ سوچ نه کاوواونه يې له آيتونوڅه پند اخيست اونه هم درسولانوله تکذيب څخه منع کېدل (۲) ﴿ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴾ بياخاص هم ده (الله) ته به وروستي شي (دحساب اوجزالپاره ) ﴿ وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ﴾ (اووايي کفارولي نه نازلاوه شي په دغه (محمد ) باندي کومه معجزه (دليل دقدرت) چي مونږيې غواړو) له (جانبه ) درب ده ) يعني دمکې کافرانو به ويل ولي په محمد کومه معجزه نه نازلېږي چي دده په رښتنولي دلالت وکړي لکه: اوښه دصالح عليه السلام ) يالکړه د(موسي عليه السلام ) يامائده ( ډک دسترخوان)د ( عيسى عليه السلام ) قرطبي وايي دغه خبري دوي دتعنت له کبله کولي وروسته له دي چي غوڅ براهين اوڅرګند دلائل لکه دقرآن اعجازورته ښکاره شوهغه چي دوي يې په شان يوسورت هم جوړولای نشواي (۳) ﴿ قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَن يُنَزِّلَ آيَةً ﴾ ووايه ای محمده ادوي ته ) بيشکه الله قادردی پدي خبره چي نازل کړي (هغه ستاسي غوښتل شوي ) معجزه ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (لکن اکثره کسان له دوي څني نه پوهېږي (چي دغه معجزه دعذاب سبب دي ) ځکه کله چي ددوي له غوښتني سره معجزه راواستوي اوبياهم وربآندي ايمان نه راوړي نوژرترژره به په عذاب اخته شي لکه چي په پخوانيو امتونوهم داسي شوي دي ﴿ وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ ﴾ اونشته هيڅ (حيوان خوځېدونکی په ځمکه کښي ) ﴿ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ ﴾ اونه هيڅ مارغه چي الوزي په دواړو وزرونوخپلو(په هواکښي ) ﴿ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُم ﴾ مګر(تول سره ) امتونه ( مخلوقات) دي په شان ستاسي) چي الله پيدا کړي احوال،روزي اودمړيني وختونه (آجال) يې ورته تاکلي دي بيضاوي وايي له دي څخه مقصددالله په بشپړ قدرت ،پراخ تدبيراوشامل علم(۴)

۱-ابن کثير۱/ ۵۷۶

۲-الطبري۱۱/ ۳۴۱

۳- القرطبي ۶/ ۴۱۹

۴-البيضاوي ص/ ۱۷۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



باندي دلالت دي چي همدا الله كولاى شي چي معجزه راواستوي (١) ﴿ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِن شَيْءٍ ﴾ ندي پري ايښي مونږ په كتاب (قرآن) كښي هيڅ شى (له امرددين څخه چي خلك ورته اړوي مګر بيان كړي مودي) چابياويلي چي مرادله كتاب څخه (لوح محفوظ) دي نو معنا به يې داوي چي مونږ هيڅ شي ندي پري ايښي په لوح محفوظ كښي چي ليكلي مونه دى (٢) ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ ﴾ بيا به داټول رب خپل ته ورټول شي (دحساب اوجزالپاره) زمخشري وايې يعني ټول امتونه له خوځيدونكو حيواناتو يا الوتونكو مرغانو څخه به راټول كړل شي اوترمينځ به يې فيصلې وشي دچاچي په بل چاحق وي هغه ټخني ورواخيستل شي لكه چي روايت كېږي دبې ښكرووزې حق به له ښكروري څخه وركول شي (٣) ﴿ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا صُمٌّ وَبُكْمٌ فِي الظُّلُمَاتِ ﴾ اوهغه كسان چي دروغ ګڼي آيتونه زمونږ كاڼه دي اوګونګيان دي (دحق له اوريدلونه) په تياروكښي دي (دكفر) ابن كثيروايې چي دغه ددوي دناپوهي ،جهل اونافهمي لپاره متل دى دوي دكاڼه په ډول دي هغه چي نه اوري اودګونګي په ډول دي هغه چي خبري نه كوي اوله دي سره سره په داسي تياروكښي دي چي هيڅ نهويني نوداسي سړي به څرنګه سمه لاره ومومي اويابه له هغه څه ووزي چي پكښي لويدلي دي ؟ (٤) ﴿ مَن يَشَإِ اللَّهُ يُضْلِلْهُ وَمَن يَشَأْ يَجْعَلْهُ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوهرچاته چي اراده وفرمايې الله د(ګمراهي يې) نوګمراه كوي يې اوهرچاته چي اراده وفرمايې (الله دهدايت يې) نوګرزوي هغه په سمه صافه لاره (دحق) اوداسلام دين ته به يې رهنمايي كړي ﴿ قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللَّهِ تَدْعُونَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ (ووايه اى محمده دوى ته) خبرراكړي ماته كه راشي تاسي ته عذاب دالله ياراشي پرتاسي قيامت) استفهام دتعجب لپاره دى يعني ماته خبراكړي كه تاسوته دالله عذاب ياقيامت راشي څوك به بولي ؟ آيابې له الله بل څوك به بولي تاسي (چي ضرردرڅخه دفع كړي) كه يې تاسي صادقان (چي بتان تاسوته ګټه رسوي) ﴿ بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِن شَاءَ ﴾ بلكه خاص هم دغه الله بولي تاسي بيالېري كوي الله له تاسي هغه (مصيبت) چي بولي تاسي (الله) دهغه دپاره كه اراده وفرمايي ﴿ وَتَنسَوْنَ مَا تُشْرِكُونَ ﴾ (اوهيروي تاسي (په وخت دسختي كښي) هغه (باطل معبودان) چي شريكوي يې تاسي (له الله سره) په داسي وخت كښي يې بيانه يادوي ځكه تاسوپدي باورلري چي يوازي الله جل جلاله ضرردفع كولاى شي نه بل څوك ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق استولي وومونږ(رسولان) ډېروامتونوته پخواله تانه(اى محمده !) دغه د رسول صلى الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اوتسلاده يعني په الله لوړه چي مونږ ډېروامتونوته ترتاپخوالا پيغمبران استولي وو اوهغوي يې تكذيب كړى وو ﴿ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ

---

١- البيضاوي ص/١٧٠

٢ - دغه دطبري ، زمخشري اوجلالين غوره دى ابوحيان په بحرمحيط كښي دى ته ترجيح وركړي ده چي مرادله كتاب څخه عظيم الشان قرآن دى اوبياوايې چي همدا دآيت شريف دسياق غوښتنه هم ده.

٣ - الكشاف ٢ / ١٢

٤ - ابن كثيرا / ٥٧٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿وَالضَّرَّاءِ﴾ نوونیول مونږ دوي په سختیو او تکلیفونو سره (چي فقر ناروغي او دردونه وو) ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ﴾ دپاره ددي چي دوي زاري عاجزي وکړي (خپل رب ته اورجوع وکړي له گناهونو) ﴿فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا﴾ نوولي کله چي راغي دوي ته عذاب زمونږ عاجزي ونکړه دوي ؟(لولا) کلمه دهڅوني اوتحضيض لپاره دی یعني ولي يې زاري ، عاجزي ونکړه چي عذاب ورته راغی؟ دغه دوي ته عتاب دی چي دوی سره له عذابه هم عاجزي ونکړه ﴿وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ وليکن سخت شوي ووزړونه ددوي (نوځکه يې تري عبرت وانه خيست چي زړونه يې دايمان لپاره نرم شوي وای) ﴿وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ اوښايسته کړي وو دوی ته شیطان هغه کارونه چي وودوي چي کول به يې) يعنی گناهونه اوپه گمراهیو باندي اصرار يې ورته ښايسته کړي وو ﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ﴾ پس کله چي هېرکړدوي هغه شي چي پندورکړی شوي وودوي ته په هغه سره ﴿فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ نو پرانستل موپردوي باندي ورونه دهرډول نعمت (داستدراج په توگه) ﴿حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا﴾ ترهغه پوري کله چي خوشحال شي دوي پرهغو شيانو چي ورکړی شوي وودوي ته (له انواعو دنعمتونو لازيا ت يې غروراوتکبروکړ) ﴿أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ﴾ نوونیول مونږ دوي ناڅاپه پس ناڅاپه پدي وخت د(ليدلو دعذاب) کښي دوي ناهيلي شي (چي دهيڅ خيرتمه نلري) ﴿فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ نوپري کړی شو بيخ دقوم هغه چي ظلم يې کړي وو) يعني له بيخه وايستل شول اوهلاک شول ﴿وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ (اوټولي ثناوي اوصفتونه خاص الله لره دي چي پالونکی دټولو عالميانو دی) يعني الله لره حمداوثنادی چي پيغمبرانوته نصرت اومرسته ورکوي اوکافران هلاکوي حسن رحمه الله وايي دکعبې په رب مې قسم چي خطا ايستل شوي يو قوم چي اړتياوي يې ورکړل شوې او بيايې ونيول (۱) په حديث شريف کښي راغي که چيري الله پاک بنده ته دهغه له گناهونو سره ټول هغه څه ورکوي چي دی يې خوښوي نوبيشکه دغه استدراج دی بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم داآيت ولوست: (فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ) (۲) ﴿قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ﴾ () (ووايه ای محمده ! دوي ته) خبرراکړي ماته که واخلي الله (قوت) داوريدلو ستاسي (چي کاڼه شي) او(قوت د) ليدلو ستاسي (چي ړانده شي) يعني ای محمده ! دغو دمکي معاندينو اومکذبينوته ووايه چي خبرراکړي که الله موحواس درڅخه واخلي اوکاڼه ړانده شي ﴿وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم﴾ (اومهرولگوي (الله) په زړونو ستاسي) چي عقل اوپوهه يې ورکه شي ﴿مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ﴾ نوبل کوم معبود دي بې له الله نه چي بيرته راوړي تاسي ته هغه (اخيستل شوي له

۱- مختصرابن کثير ۱/ ۵۷۸
۲- اخرجه الامام احمد .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تاسونه ؟ ) ﴿ ٱنظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ ٱلْأَيَـٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ ﴾ وګوره ( ای محمده ! ) چي څرنګه مونږ راز رازبيانونودلائل (په وحدانيت زمونږ) بياهم دوي تري ډډه کوي (اوعبرت نه اخلي) ﴿ قُلْ أَرَءَيْتَكُمْ إِنْ أَتَىٰكُمْ عَذَابُ ٱللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً ﴾ووايه ای محمده ! دوی ته ) خبرراکړي ماته که راشي تاسي ته عذاب د الله ناڅاپه يابښکاره شي (دشپې يادورځي ) ﴿ هَلْ يُهْلَكُ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ ﴾ آياهلاک به کړی شي (په دغه عذاب سره بل څوک؟ مګرقوم ظالمان ( يعني پدي عذاب بل څوک نه هلاکېږي مګرتاسوچي کافران اومعاندين ياست ﴿ وَمَا نُرْسِلُ ٱلْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾اونه لېږومونږه رسولان مګرزېرى کونکي (مؤمنانوته په نعيم سره ) او وېرونکي کفاروته (په جحيم سره ) نه ددي لپاره چي دکافرانوغوښتني ترسره کړي اومعجزي راوړي ﴿ فَمَنْ ءَامَنَ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾پس هرچاچي ايمان راووړاواصلاح يې کړعمل په (اطاعت سره ) نو نشته (هيڅ قسم) وېره په دوي باندي اونه به دوي (هيڅکله) خفه کېږي (څکه آخرت دجزادارد متقيانولپاره دي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَا يَمَسُّهُمُ ٱلْعَذَابُ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴾ اوهغه کسان چي نسبت ددروغوکوي دوي آيتونه زمونږ ته وبه رسيږي دوي ته عذاب په سبب دهغه چي وودوي چي فسق به يې کاوو(دالله له طاعت څخه به وتل ابن عباس رضى الله عنه وايې چي مراد له (يَفْسُقُونَ ) څخه يکفرون دی ﴿ قُل لَّآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِى خَزَآئِنُ ٱللَّهِ وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ ﴾( ووايه ای محمده ! دوي ته ) چي نه وايم زه تاسي ته چي ماسره خزانې دالله دي اونه ( وايم زه ) چي پوهېږم په غيب باندي يعني ای محمده ! دغوکفاروته چي له تاڅخه دمعجزاتوغوښتنه کوي ووايه چي زه ددې دعوی نه کوم چي ماته دالله خزانې سپارلی شوي دي ترڅوتاسي ته هرډول معجزې راوړم اونه هم ددې دعوی کوم چي زه په غيبوخبريم چي تاسوراڅخه دعذاب دراتلووخت پوښتي ﴿ وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ إِنِّى مَلَكٌ ﴾اونه وايم تاسي ته چي په تحقيق زه پرښته يم ( ترڅوتاسي راڅخه دآسمان ته ختلوغوښتنه وکړي اويادا چي په کوڅو کښې ونګرزم اوڅښاک خوراک ونکړم صاوي وايې دغه آيت هغه وخت نازل شوکله چي دوي وويل: که ته رسول اوپيغمبريې نوپروردګارڅخه دي وغواړه چي پراخه روزي راکړي اومونږته زمونږمصالح اوزيانونه راوښيه نودوي ته اخباروشوچي دادالله په قدرت کښې دی نه دپيغمبرپه لاس کښې (۱) معناداچي زه ددي شيانوڅخه ديوه شي هم دعوی نلرم چي تاسوزمادغه عدم اجابت ددي دليل وګڼي چي رسالت يې په رښتوني نه دي. ﴿ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ ﴾ زه پيروي نه کوم مګردهغه شي چي وحی کړی شوي دي ماته ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ووايه (ای محمده ! دوی ته.) ايابرابرکيدی شي ړوند اوليدونکی؟ )يعنی اياکافراومومن اوګمراه اولاره موندونکی سره برابر دي؟ ﴿ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ ﴾ آيانوفکرنه کوئ تاسي؟ دغه دتوبيخ اوتکوني لپاره دي چي اياتاسواورئ خو غوراوفکرنکوئ ؟ ﴿ وَأَنذِرْ بِهِ ٱلَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾.(اووويروه ای محمده !) پدي وحي سره هغه کسان چي

۱- حاشية الصاوي على الجلالين ۲ / ۶۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ویریږي دوي له دې چي ټول به کړل شي دوي رب خپل ته ،یعني ای محمده پدی قران سره مومنان هغه کسان چي دالله ﷻ په وعداووعید ایمان لري اودحشرپه عذاب باور لري وویروه ابوحیان وايي: چي معنايي دالکه چي وویل شي په قران کريم سره هغه څوک وویروه چي دایمان راوړلوتمه يې کیږي اوکافران اعراض کونکی خپلی رايي ته پریږده ا﴿ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِۦ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ ﴾ پداسي حال کښې چي نه وي دوي ته بي له دغه (الله) هيڅ ولي دوست (ناصرپه دنیاکښې) اونه شفاعت کونکی (دعذابونو د فع) ﴿ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ دپاره ددې چي دوي وساتي ځانونه (خپل) ﴿ وَلَا تَطْرُدِ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِٱلْغَدَوٰةِ وَٱلْعَشِىِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُۥ ﴾ اومه شړه هغه کسان چي بولی دوي (عبادت کوي د )رب خپل په اول دورخي اوپه اخردورځي کښې (سبااوبیګا) چي غواړي دوي (پدي عبادت سره رضاد ) ذات دالله) یعني ای محمده دغه بیوزله مومنان چي سبا بیګا دالله ﷻ عباد ت دالله ﷻ درضا لپاره کوي له خپله درباره مه شړه طبری وايي چي دغه ایت دبیوزله مسلمانانو په باب دی هغه چي مشرکانوبه رسولﷺ ته وایل که دغه کسان دي وشړل نومونږبه ستاخواوشاته راټول اوپه مجلس کښې به دي کښېنو([1]) اورسول الله ﷺ ددوي داسلام راوړلو په تمه دغه اراده وکړه الله فرمايي:﴿ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَىْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَىْءٍ ﴾ (نشته په تاله حسابه (داعمالو ) ددوي هيڅ شي اونه له حسابه (دعمل ستاپه دوي هيڅ شئ) یعني ته ددوي په ګناهونو نه مواخذه کیږي لکه چي نوح علیه السلام وايي :( إِنْ حِسَابُهُمْ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّي) صاوی وايي دغه لکه تعلیل غوندی دی معناداچي ته ددوي په ګناهونو اودزړه په نیتونو که چیري بالفرض دوی بی دالله له رضاځخه ستاپه مجلس کښې ناست وي لکه چي مشرکانو به وېل نه مواخذه کیږي خوداسي نه ده څکه الله ﷻ ددوي په اخلاص ګواهي ورکړي چي ﴿ يُرِيدُونَ وَجْهَهُۥ ﴾ يي فرمايلي دي([2]) ﴿ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَىْءٍ ﴾ دغه دکلام دتاکيدلپاره راغلي یعني نه هم دوئ ستاپه حساب نیول کیږي نوولي يې شړي؟اوچا ویلي: چي مراد په حساب سره رزق دي یعني ددوي روزي په تاباند ي نه ده اونه ستاروزي په دوي باندي ده بلکه تااودوي ټولو ته رب العالمين روزي ورکوي )﴿ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نوچي وشړي ته دوي پس شی به ته له ظالمانو ځخه دغه داحکامو دبیان له پاره ده اوداسي خوهیڅکله هم پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه کوي قرطبي وايي چي دالکه دالله ﷻ هغه قول غوندي دي چي فرمايي: ﴿ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ الزمر: ۶۵ اوالله ښه پوهیږی چي پیغمبرهیڅکله هم له الله سره شریک نه نیسی او خپل عمل نه باطلوي ([3])﴿ وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ ﴾ اولکه چي ازمویلي مووپخواني امتونه په اختلاف داحوالو ددوي،همدارنګه ازمویلي دي مونږ ځیني (غنیان ،خانان) په دي امت په ځینو نورو (خوارانو اوبې وزلانو ) ﴿ لِّيَقُولُوٓا۟ أَهَٰٓؤُلَآءِ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنۢ بَيْنِنَآ ﴾ لپاره

---

[1] -الطبری ۱۱/۳۷۴.

[2] -حاشیه الصاوي ۲/۱۷

[3] -قرطبی ۶/۴۳۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ددې چې ووايي ا(غنيان) اياهم دا (خواران) فضل كړي دي الله ﷻ پردوي په منيځ زمونږ كښې (په هدايت
سره او اسلام ته په ړومبی والي سره ) دغه خبره به يې د استهزاء او انكار په ډول كوله لكه چې ويل به
يې: (أَهَذَا الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ رَسُولًا) الله تعالى ددوئ په رد كښې داسي فرمايي: ﴿ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّٰكِرِينَ ﴾ (ايا
ندي الله ښه عالم په شكر كونكو ) يعني الله ﷻ ښه عالم دی په شاكر بندګانو نو ور ته هدايت كوي او څوك
چې كفران كوي هغه رسوا كوي استفهام دلته د تقرير لپاره دي ﴿ وَإِذَا جَآءَكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا فَقُلْ
سَلَٰمٌ ﴾ او كله چې راشي تا ته (اى محمد ) هغه كسان چې تصديق كونكی دي په آيتونو (قران) زمونږ
نو ووايه (اى محمده ) دوي ته ) سلام دي پر تاسي ) قرطبي وايي دا ايت د هغو كسانو په هكله رانازل شوي
كوم چې الله ﷻ خپل نبی ته ددوي له شړلو څخه نهي او ممانعت وكړ نو كله چې به رسول الله ﷺ دوي وليدل سلام
به يې وارد مخه كاوو او داسي به يې ويل: (الحمد الله الذى جعل فى أمتي من أمرني أن أبدأهم بالسلام)[1] او رسول ﷺ ته
امر شوي وو چې ددوي د خوشامندي او د زړونو د خوښي لپاره په سلام اچولو وارد مخه كړي ﴿ كَتَبَ رَبُّكُمْ
عَلَىٰ نَفْسِهِ ٱلرَّحْمَةَ ﴾ ليكلي دي رب ستاسی پر ځان خپل رحمت (تفضلا او د احسان له مخی) ﴿ أَنَّهُۥ مَنْ
عَمِلَ مِنكُمْ سُوٓءًۢا بِجَهَٰلَةٍ ﴾ (او داسي يې لازم كړي پر ځان خپل چې) بيشكه شان دا دی هر څوك چې وكړي
له تاسو څخنی بدی په نا پوهی سره (بې له قصده )مجاهد وايی معنا دا چې حلال او حرام سره بيلولی نشي
او كوم ګناه څني صادره شي ﴿ ثُمَّ تَابَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُۥ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بيا توبه وكړي پس (له كولو د
هغي او اصلاح كړي (عمل خپل) نو بيشكه الله ښه ښنونكی (د خطيئاتو ) ډير مهربان دي ,د اجر او ثواب
په انعام سره، هغوي ته ښنه كوي دغه د مغفرت او رحمت لورولو لپاره زيری دي هغه چاته چې توبه
وكاږي او اعمال سم كړي ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ ﴾ (او همداسي (چې بيان مو كړل) په تفصيل سره
بيانوو آيتونه) يعنی لكه څرنګه چې پدې سورت كښې مو د مشركينو په ګمراهيو براهين او دلائل بيان
كړل همداسي د دين امور درته څرګند وو ﴿ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ او لپاره ددې چې ښكاره شي (حق
او ظاهر شي) لاره د ګنهګارانو ﴿ قُلْ إِنِّى نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ او ووايه (اى محمده دوي
ته )چې بيشكه زه منع كړي شوی يم له دي نه چې عبادت وكړم د هغو شيانو چې عبادت كوي تاسي
د(هغوي) چې غير له الله دي ) يعني اى محمده د غو مشركينو ته ووايه چې زه له دي نه منع شوي يم چې
دد غو بتانو كوم چې تاسو يې د الوهيت ګومان كوي عبادت وكړم ﴿ قُل لَّآ أَتَّبِعُ أَهْوَآءَكُمْ ﴾ ووايه (اى
محمده دوی ته ) چې متابعت نه كوم زه د خواهشاتو ستاسی (په عبادت ددوئ كښې ) په دي كلام كښې
ددوي د ګمراهي د سبب تنبيه نغښتي ده ﴿ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴾ په تحقيق به ګمراه شم
زه په دغه وخت كښې او نه به يم زه له لاره موندونكو څخه ﴿ قُلْ إِنِّى عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّى ﴾ ووايه (اى

---

[1] -القرطبی ۶/۴۳۵.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



محمده دوي ته !) بیشکه زه په ښکاره دلیل يم له ربه خپله (چې قرآن او وحي ده) ﴿ وَكَذَّبْتُم بِهِۦ ﴾ او تاسي دروغ ګڼلی هغه (حق چي ما ته له الله څخه راغلي دي) ﴿ مَا عِندِى مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦٓ ﴾ نشته ما سره هغه (عذاب) چي غواړي يې، دوي به غوښتل او ويل يې: ﴿ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾ الأنفال: ۳۲([1]) ﴿ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ﴾ ندی حکم (په تعجیل او تاخیر د عذاب او نورو کښې) مګر خاص الله ته دي ﴿ يَقُصُّ ٱلْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْفَٰصِلِينَ ﴾ بیانوي (الله ﷻ) حقه خبره او دي بهتر د بیانوونکو (یا فیصله کونکو) دی ﴿ قُل لَّوْ أَنَّ عِندِى مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦ ﴾ وو ایه ای محمده ادوي ته که په تحقیق وای ما سره هغه شي چي تاسي په تلوار سره غواړي هغه (چي عذاب دي نو) ﴿ لَقُضِىَ ٱلْأَمْرُ بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ ﴾ خامخا فیصله شوي به وه جګړه په مینځ زما او ستاسی کښې (ما به عذاب درکړي وو تاسی ته چي درنه هوسا شم لیکن عذاب د الله کار دی) ابن عباس رضی الله عنهما وايي معنا دا چي یوه ګړی به مي هم پری اینښي نه وايي سمدستي به می هلاک کړي وايی([2]) .

﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ او الله ﷻ ښه عالم دی په ظالمانو (که اراده یې شوه ژر به یې هلاک کړي او که یې وغوښتل تعذیب به یې وځنډوي پدي کښې وعید او تهدید دی.

## بلاغت

۱- ﴿ وَٱلْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ ٱللَّهُ ﴾ دلته استعاره راوړله شوي څکه مراد له مړو څخه کفار دي چي زړونه يې مړه دي.

۲- ﴿ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ ﴾ دغه کلام دلته د مجاز دوهم دفع کیدلو لپاره راغلي دی څکه کله کله طائر د عمل لپاره هم مجاز استعمالیږي لکه (الزمناه طائره فی عنقه).

۳- پدې کلام کښې چي فرمايي: ﴿ صُمٌّ وَبُكْمٌ ﴾ بلیغه تشبیه ده یعني دوي لکه کاڼه او ړانده غوندي دي چي نه اوري او نه خبري کوي د تشبیه ادات او وجه د تشبیه حذف شوی ده نو بلیغه تشبیه یې بولي.

۴- ﴿ إِيَّاهُ تَدْعُونَ ﴾ دلته قصر د صفت په موصوف پوري دي یعني له هغه پرته د زیان دفع کولو لپاره بل څوک مه بولی.

۵- پدي کلمه کښې چي ﴿ ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ دي د کافر او مومن څخه استعاره راغلي ده.

۶- ﴿ فَقُطِعَ دَابِرُ ﴾ دغه د دوی د یو مخه ایزه هلاکت څخه کنایه ده.

۷- ﴿ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَىْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَىْءٍ ﴾ پدغو دوو جملو کښې د بدیع د علم هغه صنعت دي چي (ردّ الصّدر علی العجز) يې بولي.

---

[1] الكشاف ۳/۲.

[2] القرطبی ۴۳۴/۶.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده: زمخشري وايي دالله ﷻ پدي قول کښې چې فرمايي: ﴿ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ ددې خبر تيادى چې دظالمانو دهلاکت په وخت کښې دي دالله حمد په لازمي توګه وويل شي ځکه دادنعمتونو خوراسترنعمت دی چې دظالمانوله شرڅخه سړی وژغول شي ؟[1]

دوهمه فائده: ځيني مفسرين وايي چې په دعاکښې اخلاص واجب دی ځکه الله ﷻ فرمايي ﴿ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ﴾ همداراز ټول طاعات او عبادات بنايي چې ددنيوي اغراضو او مقاصدو لپاره نه وي

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ (٥٩) وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَىٰ أَجَلٌ مُّسَمًّى ۖ ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (٦٠) وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ (٦١) ثُمَّ رُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ ۚ أَلَا لَهُ الْحُكْمُ وَهُوَ أَسْرَعُ الْحَاسِبِينَ (٦٢) قُلْ مَن يُنَجِّيكُم مِّن ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً لَّئِنْ أَنجَانَا مِنْ هَٰذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ (٦٣) قُلِ اللَّهُ يُنَجِّيكُم مِّنْهَا وَمِن كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنتُمْ تُشْرِكُونَ (٦٤) قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ۗ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ (٦٥) وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ (٦٦) لِّكُلِّ نَبَإٍ مُّسْتَقَرٌّ ۚ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ (٦٧) وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ (٦٨) وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ (٦٩) وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۚ وَذَكِّرْ بِهِ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللَّهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ وَإِن تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا ۖ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ (٧٠) قُلْ أَنَدْعُو مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلَىٰ أَعْقَابِنَا بَعْدَ إِذْ هَدَانَا اللَّهُ كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ لَهُ أَصْحَابٌ يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَىٰ ۖ وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ (٧١) وَأَنْ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ

---

[1] - الكشاف ۱۸/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَاتَّقُوهُ وَهُوَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٢﴾ وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ وَيَوْمَ يَقُولُ كُن فَيَكُونُ قَوْلُهُ الْحَقُّ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴾.

**مناسبت اوتړاو:** کله چې الله تعالی په خپل وجود او وحدانیت دلائل وړاندې کړل وروسته یې خپل قدسي صفات لکه علم، قدرت، عظمت او نور د جمال او جلال صفات یادوي او خلکو ته له کړاوونو څخه د نجات نعمت ورپه یادوي او بیا خپل قدرت هغه چاته ښیې چې د الله او پیغمبر له امره سرغړونه کوي

**لغتونه:**

(كَرْبٍ) غم او خفګان ته وایي (شِيَعًا) طائفې یوه په بله پسې (أُبْسِلُوا) ابسال دانسان خپل ځان هلاکت سپارلو ته وایي (عَدْلٍ) بدل (فدیه) (حَمِيمٍ) ګرمې او تودې اوبه (حَيْرَانَ) له حیرانتیا او تردد څخه دې چې دیوکار په هکله مخرج نشي موندلای (الْغَيْبِ) پټ څیزونه چې له حواسو څخه الونیا وي (وَالشَّهَادَةِ) هغه چې ښکاره او ښکاره وي (تُحْشَرُونَ) راټول به کړل شي.

**تفسیر:**

﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ او خاص هم دغه الله لره دي کلي ګاني (کنجیاني) د خزانې دغیب چې نه پوهیږي په هغو مګر عالم دی پرې (هم دي) یعني د الله ﷻ په نزد دغیبو خزانې او پټ امور دي چې بل هیڅوک پرې نه پوهیږي او نه یې دعلم په احاطه کښې راځي مګر یوازې الله پرې خبر دی ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ او پوهیږي الله ﷻ په هغه چې په (وچه) کښې او په دریاب کښې دي، له حیواناتو څخه په بشپړه توګه او هغه څه عجائبات چې ددوي دي د الله ﷻ په علم کښې راځي ﴿وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا﴾ (او نه لویږي هیڅ یوه پاڼه (له ونې) مګر چې عالم دی په هغه الله) دا دهغه دعلم په احاطې کښې مبالغه ده چې هیڅ کومه پاڼه له کومې ونې نه لویږي مګر دهغې دلویدلو وخت او هغه ځکه چې وربانديې راپرېوتي ده الله ته معلومه ده ﴿وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ﴾ او نه (لویږي کومه) دانه په تیارو دځمکې کښې) مګر هغه ته یې ځای دلویدولو او داچې زرغونیږي او که نه څومره داني به ځنې پیداکیږي او څوک به یې خوري؟ معلوم دي ﴿وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ﴾ او نه دی هیڅ لوند او نه هیڅ وچ مګر (ثابت شوي دي) په کتاب مبین (لوح محفوظ) کښې یعني هرهغه څه چې پکښې لمدوالی او وچوالی شته الله ته معلوم او په لوح محفوظ کښې کښل شوی دي ) ابوحیان وایي[1] چې ددغو

[1] - البحر المحیط ۱۴۶/۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



معلوماتو حسن ترتيب ته وګوره لومړی يې هغه دادراک ور وړاندي کړی چي ﴿ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ﴾ دی بيا يې دوه باريک امورو ته اشاره فرمايلې چي يويې (علوی ) چي دپاڼي لويدل او بل يې (سفلی) ددانی لويدل دمځکي په تل کښې دي نودغه پدي دلالت کوي چي الله پاک په کلياتو اوجزئياتو ټولو باندي عالم اوپوه دی[1] ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُم بِٱلَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِٱلنَّهَارِ ﴾ او الله هغه (لوی ذات)دی چي وفاتوي (ويده کوي) تاسي په شپه کښې اوپوهيږي په هرهغه څه چي کسب کړي وي تاسي په ورځي کښې (له طاعت اومعصيت څخه ) قرطبي وايي چي دغه حقيقي وفات نه دی بلکه دروح ايسارول دی ابن عباس رضی الله عنهما وايي معنا داچي ستاسی ارواح په خوب کښې درڅخه قبض کوي ([2]) اوپدې کښې دبيارا پاڅيدلو (بعث) په هکله استدلال او پند اخيستل دي دی ﴿ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ مُّسَمًّى ﴾ (بيا پاڅوي تاسي (له خوبه ) په دغه (ورځ) کښې چي پوره کړی شي نيته مقرره شوي) ستاسي دژوند پاي ته .فيه ضمير ورځی ته راجع دی ځکه غالباً ويښه په ورځ اوخوب په شپه کښې وی ﴿ ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ﴾ بيا خاص همده ته بيرته ورتلل دي ستاسي (دقيامت په ورځ) ﴿ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ بيا به خبرکړی (الله ﷻ) تاسي په (جزاء)دهغه څه چي وي تاسي چي کول به مو که خير وو دخير جزا به درکړی او که شروو نودشر سزا به وموموئ وروسته الله تعالی دخپل عظمت اوکبر يا هسي ستاينه کوي ﴿ وَهُوَ ٱلْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِۦ ﴾ اوهمدی غالب دپاسه په بندګانو خپلو يعني ټول څه دده جلال، کبريا اوعظمت ته خضوع کوي ﴿ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ﴾ ليږي پرتاسوساتونکي (له ملائکو چي هغه ستاسي اعمال ساتي کرام الکاتبين دی ) ابوالسعود وايي چي پدی کښې جميل حکمت اوجليل نعمت نغښتی دی ځکه کله چي مکلف پدي پوه شي چي اعمال يې ساتل کيږي اوبيا دخلکوپه وړاندي ورته ويل کيږی نوهغه له دي څخه راګرزوي چي بداعمال ترسره کړي اوګناهونه وکړي([3]) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ

---

[1] -داسلام شهيد سيدقطب پخپل تفسيرفی ظلال کښې ددې آيت پخواوشاکښې عجيبه خوندوري خبری ليکلی چي دايوه برخه يې رااخلو هغه رحمه الله وايي چي دغه ايت دالله ﷻ دشامل علم انځور دی چي په هيڅ وخت اوځای کښې ځښني يوشی الونيا اوپټ نه دی نه په مځکه نه په اسمان کښې نه په وچه اونه په بحر کښې نه دمځکي په تل کښې اونه په فضا کښې نه مړی نه ژوندي نه وچ اونه لوند بشری خيال کله چي ددغه ايت په پله ولاړشي نو دمعلوم اومجهول ساحه چي له دغه مشهود کون څخه بهرده ټوله ووهي وجدان لړزيږي چي دماضی ، حاضر اومستقبل ټولي پټي مهر شوي پردي راسپړي هغه چي خورا پلنی ،ژوري ،او اوږدي دي ددې ټولو کنجيانی له الله سره دي له الله پرته بل څوک ورباندي خبر نه دي دوچي په مجهولاتو ،دريابونو په تل کښې ټول الله ته ښکاره دي هغه بی شميره راتوی شوی پاڼي له ونوبوټو څخه ټولي الله ته معلومي دي چي دلته هلته لويږي له الله څخه هيڅ يوه دانه چي په مځکه کښې لويږي پټه نه ده ټول وچ اولانده الله څاري دهغه له محيط علم څخه هيڅ ندی وتلي داهسی تګ دی چي په سړی خپل سرڅرخوي عقل يې ستومانه کوی کله چي په منظور اومحجوب اومعلوم اومجهول پسی ګوري اوداپه يوڅو کلماتو کښې په پوره دقت راوړل شوي هوکي دغه ټول قرآني اعجاز دی او بس.
١في ظلال القرآن ٢۴٧/٧.

[2] -القرطبی ۵/٧.

[3] -ابوالسعود ١٠٧/٢.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا ﴾ ترهغه پوري كله چي راشي يو ستاسی ته مرگ قبضوي روح دده ليږلي شوي (پرښتي زمونږ چي ستاسی داروا حود قبضولو لپاره ليږلی كيږي) معنا داچي دملائكو ساتنه داشخاصولپاره داجل ترراسيدلو پوري وي كله چي يې اجل راورسي نوساتنه يې هم بشپړه شي ﴿ وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴾ (اودوی هيڅ كوتاهي (تقصير )نه كوي داوامروپه تطبيق كښې) چي ساتنه اوياوفات كول دي ﴿ ثُمَّ رُدُّوٓا إِلَى ٱللَّهِ مَوْلَىٰهُمُ ٱلْحَقِّ ﴾ بيا به بيرته وروستل شي دوي طرف دالله ﷻ ته (دخپل عمل دجزالپاره) چي مولی (مالک) ددوي دی حق (عادل) يعنی هغوي به هغه خپل خالق اومالک ذات ته وروستل شي چي دحكم اوتصرف خاونداوپرته له عدل نه په بل څه حكم نكوي ﴿ أَلَا لَهُ ٱلْحُكْمُ وَهُوَ أَسْرَعُ ٱلْحَـٰسِبِينَ ﴾ واورئ خبردارشئ ! خاص هم ده ته دی حكم اوهمدی ډېرژر دی له ټول حسابګروچي يو حساب يې له بل اويوشان يې له بل څخه نه مشغول كوي په يوه رپ دسترګو كښې دانسان دټول عمرنيكي اوبدي ورښكاره كوي له ټولو خلكوسره ددنيا دنيمي ورځي وخت په اندازه حساب بشپړ وي لكه چي په حديث شريف كښې راغلی دي اوداسي روايت كا وه شي چي الله له خلكوسره ديوي ګډي دلوشلو دوخت په اندازه حساب كوي ﴿ قُلْ مَن يُنَجِّيكُم مِّن ظُلُمَـٰتِ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ﴾ (ووايه (ای محمده !) څوک به خلاص كړي تاسي له تيار ودوچي اودرياب څخه؛ يعنی ای محمده دغوكفاروته ووايه چي څوک به تاسي دسفر په اوږدو كښې چي په بيديا اودرياب كښې يې كوئ له سختيو اوكړاوونوڅخه وژغوري ؟ په هغه وخت كښې چي ﴿ تَدْعُونَهُۥ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ﴾ (دعاكوئ تاسي له الله څخه په ښكاره (تضرع) اوپه پټه يې په زړه كښې زاري كوی دعاګانی غواړي ابن عباس وايي معناداچي تاسی په ښكاره اوپټه دعاګانی كوئ وايا ست چي: ﴿ لَّئِنْ أَنجَىٰنَا مِنْ هَـٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ ﴾ كه خلاص كړي الله مونږ له دې تياروا وسختيوڅخه نوهرومروسوبه مونږ خامخاله شكر ايستونكوڅخه غرض داچي كله په هلاكت ووېريږئ نودعاګانی كوی خوكله چي نجات دركړي بيا كافران كيږي قرطبی وايي چي الله پدي باره كښې دوی ته توبيخ كړي چي كله كړاوونه اوسختی درباندی راشي نويوازی الله ﷻ ته دعاكوئ اوچي كله بيا اسانی اوسوكالي درته مخ كړي نوبياورسره نوركسان هم په دعاكښې ګډوئ[1] ﴿ قُلِ ٱللَّهُ يُنَجِّيكُم مِّنْهَا وَمِن كُلِّ كَرْبٍ ﴾ ووايه (ای محمده !دوی ته ) چي الله خلاصوي تاسي له دې تيارو (اوسختيو ) څخه اوله هری سختي څخه ﴿ ثُمَّ أَنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴾ بياهم (پس له دغه نجاته ) تاسی شريكوئ (له الله سره نور په عبادت كښې) پدی كښی توبيخ اوټكول دی چي سره له دي تاسوپه دي ټولو پوهيږئ خوبياهم ايمان نه راوړئ اومشركان كيږئ ﴿ قُلْ هُوَ ٱلْقَادِرُ عَلَىٰٓ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ ﴾ ووايه (ای محمده !) هم دغه (الله) قادردی پدې چي وليږي په تاسي عذاب له؛ پاسه ستاسی ) چي له اسمانه تندر اوتكي درباندی راوغورځوي يالكه تيږي ډبري ، اورونه ،طوفانی

---

۱- القرطبی ۸/۷.

Bawar.net



هوا اوبادونه دباندي راوالوزوي لکه چي په پخوانيو امتونوبې مسلط کړي وو ﴿ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ ﴾ يالاندي دپښوستاسي (لکه قارون او دمدين خاوندان چي په زلزلو اوخسف دمځکې تل ته په ډوبولو بې هلاک کړل ﴿ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ﴾ ياګډ کړي تاسي فرقې فرقې (چي هره ډله بله وژني) اوورڅکوي (الله ﷻ) ځينوستاسو ته جنګ (اوسختی) دځينو (نورو) بيضاوی وايي چي ګډ کړي دوی حزبونه حزبونه دهر چا غوښتنې ګوښې وی نوددوی ترمنځ جنګ جګړې پيښې شي (۱) ابن عباس وايي چي ستاسو ترمنځ مختلف خواهشات خواره کړي اوتاسي ډلې ډلې شي پورتنی تعريفات ټول سره نژدې دي اوغرض ځني وعيداوتهديد دی ﴿ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ ﴾ وګوره (ای محمده!) څرنګه رازراز بيانوو مونږ آيتونه (خپل) لپاره ددې چي دوی پوه شي (پرې او ځني پند واخلي) له جابربن عبدالله (رض) څخه روايت شو ي چي وايي کله چي دغه آيت نازل شو ﴿ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ ﴾ نورسول الله ﷺ وويل(اعوذبوجهک) او﴿ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ ﴾ نوبيې وويل (اعوذبوجهک) ﴿ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ﴾ نورسول الله ﷺ وفرمايل (هذه اهون وايسر) يعنی دغه سپک اواسانه دی (۲) ﴿ وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ﴾ اودروغ وباله داقرآن قوم ستا(چي قريش دي) حال داچي دغه (قرآن) حق دی ﴿ قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴾ ووايه (ای محمده !دوی ته ) نه يم زه په تاسي وکيل (ساتونکی) زه يوازې ويرونکي (نذير) يم ﴿ لِّكُلِّ نَبَإٍ مُّسْتَقَرٌّ ﴾هري خبري ته يووخت مقرردی( چي بي له تاخيراومخالفت څخه به پيښيږي ) ﴿ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ اوژربه (پري) وپوهيږی تاسی (چي کله عذاب درته راشي) دغه خبره دوعيد اوتهديد لپاره دي ﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا ﴾ اوکله چي ووينی ته هغه کسان چي جګړه کوي (پيغورورپوري تري مسخري پري کوي ننوځي غوتي وهی) په آيتونو زمونږ کښې ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ﴾ نومخ واړوه له دوي نه(اوورسره مه کښينه اوکه ناست وي تري پاڅيږه) ترهغي پوري چي مشغول شي دوي په خبرو(نوروکښې) غير(له مسخرو ) په قرآن (السدی) وايي چي مشرکان به کله له مومنانوسره کښيناستل نوپه نبی ﷺ اوقرآن کريم کښې به ګډشول ښکنځل اوملنډي به بې پوري کولی نوالله ﷻ امروکړچي له دوي سره دی مومنان نه کښينی ترڅوچي دوي نوري خبري شروع کړي (۳) ﴿ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ ﴾ اوکه هيرکړل له تانه (دا اعراض) شيطان او وړسره کښيناستلی بيا درپه ياد شو ﴿ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ نومه کښينه وروسته له درپه يادېدلو (ددغي منعې) سره له قوم ظالمانو ،فاسقانو اوکفارو هغوي چي په قرآنکريم اودين باندي ملنډي وهي ابن عباس

---

[1] -البيضاوی ص ۱۷۳.

[2] -اخرجه البخاری.

[3] -الطبری ۴۳۷/۱۱.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(رض) وايي چي معنا دا كله چي نهى درپه يادشي پاخه ولاړشه اوله مشركانوسره مه كښينه !. ﴿ وَمَا عَلَى ٱلَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ ﴾ (او نشته پرهغو كسانوچي پرهيزگاري كوي له حسابه ددغو(جگړه كونكو په قرآني آيتونوملنډي وهونكو) څخه هيڅ شى له گناه يعني په مومنانو باندى دكفارو ددغو گمراهيو اوملنډي وهلو گناه نشته كله چي ځان دهغوى له مجلس اوناستى وژغوري ﴿ وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ (لكن (دوي)باندي پند وركول دى دپاره ددې چي ځان وساتي دوي ) يعنى لكن پردوي باندي داشته چي هغوى ته پندوركړي اوله دغه كاره يې منع كړي څومره چې ددوي وعظ اونصيحت كاركوي (١)ورته دى ووايى چي دغه عمل دمسلمانانو خوښ نه دي ښايي چي دوي به نور دمسلمانانوله شرم څخه چي هغوي يې له مجلسه ولاړيږي بياداسي نه كوي (ابن عطية ) وايي مسلمانانوته ښايې ددې ايت شريف دحكم امتحان دى هغه وخت وكړي كله چي له ملحدينواوجگړه مارو سره مخامخ شي (٢) ﴿ وَذَرِ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا ﴾ اوپريږده ته هغه كسان چي گرخولى دى دوي دين خپل (چي پرى مكلف وو اواحترام تعظيم يې ښائيدل ) لوبى اوعبث (چي پري مسخري كوي) ﴿ وَغَرَّتْهُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا ﴾ اوغولولي دي دوئ ژوند ددنيا (چي داسي گومان كوي بيا ژوندون نشته ) ﴿ وَذَكِّرْ بِهِۦٓ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ﴾ اوپند وركوه ته په دغه (قرآن سره خلكوته ) څو ونه سپارل شي (هلاكت ته ) هيڅ نفس په سبب دهغه عمل (بد ) چي كړى يې وي ﴿ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلِىٌّ وَلَا شَفِيعٌ ﴾ حال داچي نه وي دغه نفس ته بې له الله نه كوم ولي (منع كونكى دافت په دنيا كښې) اونه شفاعت كونكى (دفع كونكى دمصيبت په عقبى كښې). ﴿ وَإِن تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ ﴾ اوكه فديه وركړي دا(نفس) هرقسم فديه نووابه نه اخيستلى شي (دافديه) له نفس څخه قتاده رضى الله عنه وايي كه دمځكي سرتول سره زر په فديه كښې وركړي هم څنى وبه نه منل شي (٣) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أُبْسِلُوا۟ بِمَا كَسَبُوا۟ ﴾ دغه (ذكرشوي ملنډى وهونكى) هغه كسان دي چي سپارلي شوي دي (هلاک ته ) په سبب دهغو كارونو چي كړي دي دوى (له بدو اعمالو اوناولي عقايدوڅخه ) ﴿ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌۢ بِمَا كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ ﴾ (شته دوي لره څښل دډيرو گرمواوبو اوعذاب دئ دردناک په سبب ددې چي وو دو ي چي كافران كيدل) يعني ددوي گمراهانولپاره ايشيدونكي اوبه دڅښاک لپاره وركول كيږي چي كولمي يې ورپخوي اوپكښې جرهارى كوي په بدنونويې اوربليږي ځكه دوي تل ترتله په كفر كښې اوسيدل نواوس ددوي لپاره ايشيدونكي اوبه اودغه دردناک عذاب اودسپكتياحالت دي ﴿ قُلْ أَنَدْعُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُنَا

---

[1] طبرى وايي چي دايت معنا دا چي دالله دامر وريه يادېدلوپه وخت كى دي ترې ځنگ وكړي ترڅوهغوى له الله ﷻ څخه ووېرېږي.

[2] البحر المحيط ۱۵۴/۴.

[3] الطبرى ۴۴۷/۱.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَلَا يَضُرُّنَا ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته ) ایا عبادت وکړو غیرله الله نه هغه شي ته چي نه نفع رسولی شي مونږ ته اونه تاوان رسولی شي مونږ ته (په عبادت کول او یانه عبادت کولو کښې چي هغه بتان دی ) دلته استفهام د انکاراوتو بیخ لپاره دی ﴿ وَنُرَدُّ عَلَىٰٓ أَعْقَابِنَا ﴾ اوبیرته وګرځولي شو مونږ په پوندو خپلو (ګمراهی اوشرک ته ) ﴿ بَعْدَ إِذْ هَدَىٰنَا ٱللَّهُ ﴾ وروسته له هغه چي سمه صافه لاروښودله الله ﷻ مونږ ته (داسلام) ﴿ كَٱلَّذِى ٱسْتَهْوَتْهُ ٱلشَّيَٰطِينُ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ په شان دهغه سړي چي بیولي وي دې پیریانانو شیطانانو په ځمکه (دچول بیابان ) کښې اوژوره کنده کښې یې غورځولی وي ﴿ حَيْرَانَ ﴾ پداسي حال کښې چي (له ورکیدلو دلاری) حیران وي ﴿ يَدْعُونَهُۥٓ إِلَى ٱلْهُدَى ٱئْتِنَا ﴾ ده لره ملګری وی بولي دوی داسړی (له ډیره شفقته )په لوري دصافې سمې لاري (چي ورته وايي) راځه مونږ ته (خوهغه یې نه منی) ﴿ قُلْ إِنَّ هُدَى ٱللَّهِ هُوَ ٱلْهُدَىٰ ﴾ (ووایه (ای محمده ادوی ته ) چي بیشکه هدایت دالله همدادی هدایت ) یعنی ای محمده دغو کفاروته ووایه چي دااسلام چي مونږ ورباندي ولاړ یوهمداهدایت دی نورڅه له دې پرته ګمراهی اوضلا لت دی ﴿ وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ اوحکم کړی شوي دی مونږته چي اسلام راوړو (غاړه کښیږدو ) رب پالوکی ) دتماموعالمیانوته دادهغه چا تمثیل دي څوک چي له سمې لاری ګمراه شوي وی اوهغه اسلام ته رابلل کیږي خو بلنه نه مني ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دادهغه لپاره مثال دي چي الله ﷻ دباطلو خدایانو اودهغوي دپیروانولپاره راوړي اودهغه چالپاره چي دالله ﷻ لوري ته بلنه ورکوي لکه څوک چي سمه لاره ورکه کړي لالهاند سرګردان وي اوڅوک مبطل ورته ناره کړي ای فلانیه دلته لاره ده راشه خوهغه نورملګري هم لری ورته ناره وهی دلته لاره ده مونږته ځان راورسوه نوکه چیري یې دلومړنی بلونکی خبره ومنله هغه یې دهلاکت کندی ته ور اچوی اوکه یی دهغه چا خبره ومنله چي په ربښتیا یی سمی لاري ته وربولي نوبه لاره بیا مومی وايي :هغه څوک چي ددغو باطلو خدایانو عبادت کوي هغه ګومان کوی چي په سمه لاره درومي ترڅوچي ورته مرګ راشي اوهلاکت ته ورشي بیا پښیمانی اوندامت کوي (۱) ﴿ وَأَنْ أَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَٱتَّقُوهُ ﴾ اوبل (پدې حکم شو یدی )مونږته ) چي قائموی (سم اداکوی سره له ټولو حقوقو ) تاسي لمونځ اوویریږي تاسی له دغه (الله ) نه (په ټولو حالتو کښې) ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴾ ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ﴾ اودغه الله همغه ذات دی چي پیداکړی یې دی اسمانونه [illegible] حقه سره (نه بی فائدي) یعني الله سبحانه وتعالی هغه پیداکونکی ،مالک اوتدبیرخاوند [illegible] مانونواوځمکی اودهغوي مخلوقات یې په حقه پیداکړي(پنځولی) دی اوهیڅ هم

[illegible] ﴿ ...لُ كُن فَيَكُونُ ﴾ اویاد کړه هغه ورځ چي وبه وایي (الله) هرشي ته چي [illegible] د (پیدا ) به شي ابوحیان وایي چي دغه دیوشي له عدم څخه وجود

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ته راوړلو لپاره مثال دي هسی نه چي يوځه شته اوورته به امر کيږي[1] ﴿ قَوْلُهُ الْحَقُّ وَلَهُ الْمُلْكُ ﴾ خبره ددغه (الله) حقه (رښتيا) ده اوخاص دغه (الله) لره دي سلطنت (دقيامت په ورځي) ﴿ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ ﴾ په هغه ورځ کښې چي پوکی وکړل شي په شپيلی (صور) کښې (چي دوهم ځل پوکی دبيا راژوندی کيدلولپاره حضرت اسرافيل عليه السلام وکړي ﴿ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ﴾ (عالم دی الله په ټولو پټو اوښکاره وو) يعني پوهيږي په ټول ځرګند واوناځرګندو هغه چي سترګی اوحواس يې نه ويني اوهغه چي تاسو يې شپه ورځ ويني ﴿ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴾ اوهم دی دی حکمت والاپخپلو کړو کښې چي هرکارپه تدبيراومصلحت سره کوی) خبرداراوښه پوه دي دبندګانوپه امورو باندي

بلاغت:

١: ﴿ وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ ﴾ دلته يي کنجياني دپټوامورو لپاره استعاره کړي ګواکي لکه هغه چي خزاني وي زمخشري وايي دپټو امورو لپاره يې کنجيانی استعاره راوړي ځکه په کليانو باندي دقفل شو وخزانودروازي پرانستل کيږي نو يوازي الله په پټو (غيبو) پوه اوخبرداردی.[2]

٢: پدي کلام کښې چي فرمايي ﴿ وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ ﴾ دلته چي وفات دخوب لپاره استعاره کړي ځکه ددوي دواړو ترمنيځ دعدم احساس اودتعبيردزوال وصف مشترک اوګڼدي.

٣: ﴿ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ دلته دظاهر راوړل دضميرپرځاي چي (معهم) وو ددې لپاره راغلي چي پردوي دناکاره عمل ليکنه اوتسجيل وشي ځکه دوي دروغ اوملنډي دتصديق اوتعظيم پرځای ترسره کړي اوظالمان دي

٤: پدي جملو کښې چي وايي: ﴿ وَنُرَدُّ عَلَىٰ أَعْقَابِنَا ﴾ دلته په پوندو ګرزيدل تعبيريې له شرک ځکه وفرمايل ترڅودهغه تقبيح اوشناعت ځرګندشي

٥: پدي کلماتو کښې چي ﴿ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ ﴾ دلته دجناس اشتقاق موجود دی.

٦: دبديعی محسناتو څخه دطباق صنعت پدي ټولو جملو کښې راځي لکه ﴿ رَطْبٍ ﴾ او ﴿ يَابِسٍ ﴾ ﴿ الليل ﴾ او ﴿ النهار ﴾ او ﴿ فوق ﴾ او ﴿ تحت ﴾ او ﴿ يَنفَعُنَا ﴾ او ﴿ يَضُرُّنَا ﴾ او ﴿ الْغَيْبِ، وَالشَّهَادَةِ ﴾ اوهمدارازسجع په ﴿ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ کښې والله اعلم.

---

[1] -البحر ١٢٠/٤.

[2] -الکشاف ٤٢/٢.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

تنبيه:

حاكم وايي دالله ﷻ داقول چي فرمايي ﴿وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلۡغَيۡبِ﴾ داماميه وو (اهل تشيع) دخبري بطلان كوي ځوک چي وايي: امام له غيبو ښځه په يوځه پوهيږي([1]) زه وايم دغه خبره دروغ اوبهتان دی ځکه پرته له الله ﷻ په غيبو هيڅوک هم خبرنه دي

### الله تعالى فرمايي:

﴿۞ وَإِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ ءَازَرَ أَتَتَّخِذُ أَصۡنَامًا ءَالِهَةً إِنِّيٓ أَرَىٰكَ وَقَوۡمَكَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴿٧٤﴾ وَكَذَٰلِكَ نُرِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَلِيَكُونَ مِنَ ٱلۡمُوقِنِينَ ﴿٧٥﴾ فَلَمَّا جَنَّ عَلَيۡهِ ٱلَّيۡلُ رَءَا كَوۡكَبٗاۖ قَالَ هَٰذَا رَبِّيۖ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلۡأٓفِلِينَ ﴿٧٦﴾ فَلَمَّا رَءَا ٱلۡقَمَرَ بَازِغٗا قَالَ هَٰذَا رَبِّيۖ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَئِن لَّمۡ يَهۡدِنِي رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٧٧﴾ فَلَمَّا رَءَا ٱلشَّمۡسَ بَازِغَةٗ قَالَ هَٰذَا رَبِّي هَٰذَآ أَكۡبَرُۖ فَلَمَّآ أَفَلَتۡ قَالَ يَٰقَوۡمِ إِنِّي بَرِيٓءٞ مِّمَّا تُشۡرِكُونَ ﴿٧٨﴾ إِنِّي وَجَّهۡتُ وَجۡهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ حَنِيفٗاۖ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴿٧٩﴾ وَحَآجَّهُۥ قَوۡمُهُۥۚ قَالَ أَتُحَٰٓجُّوٓنِّي فِي ٱللَّهِ وَقَدۡ هَدَىٰنِۚ وَلَآ أَخَافُ مَا تُشۡرِكُونَ بِهِۦٓ إِلَّآ أَن يَشَآءَ رَبِّي شَيۡـٔٗاۚ وَسِعَ رَبِّي كُلَّ شَيۡءٍ عِلۡمًاۚ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٨٠﴾ وَكَيۡفَ أَخَافُ مَآ أَشۡرَكۡتُمۡ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمۡ أَشۡرَكۡتُم بِٱللَّهِ مَا لَمۡ يُنَزِّلۡ بِهِۦ عَلَيۡكُمۡ سُلۡطَٰنٗاۚ فَأَيُّ ٱلۡفَرِيقَيۡنِ أَحَقُّ بِٱلۡأَمۡنِۖ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴿٨١﴾ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يَلۡبِسُوٓاْ إِيمَٰنَهُم بِظُلۡمٍ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡأَمۡنُ وَهُم مُّهۡتَدُونَ ﴿٨٢﴾ وَتِلۡكَ حُجَّتُنَآ ءَاتَيۡنَٰهَآ إِبۡرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوۡمِهِۦۚ نَرۡفَعُ دَرَجَٰتٖ مَّن نَّشَآءُۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٞ ﴿٨٣﴾ وَوَهَبۡنَا لَهُۥٓ إِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَۚ كُلًّا هَدَيۡنَاۚ وَنُوحًا هَدَيۡنَا مِن قَبۡلُۖ وَمِن ذُرِّيَّتِهِۦ دَاوُۥدَ وَسُلَيۡمَٰنَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَىٰ وَهَٰرُونَۚ وَكَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٨٤﴾ وَزَكَرِيَّا وَيَحۡيَىٰ وَعِيسَىٰ وَإِلۡيَاسَۖ كُلّٞ مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَٱلۡيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطٗاۚ وَكُلّٗا فَضَّلۡنَا عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنۡ ءَابَآئِهِمۡ وَذُرِّيَّٰتِهِمۡ وَإِخۡوَٰنِهِمۡۖ وَٱجۡتَبَيۡنَٰهُمۡ وَهَدَيۡنَٰهُمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿٨٧﴾ ذَٰلِكَ هُدَى ٱللَّهِ يَهۡدِي بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦۚ وَلَوۡ أَشۡرَكُواْ لَحَبِطَ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿٨٨﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحُكۡمَ وَٱلنُّبُوَّةَۚ فَإِن يَكۡفُرۡ بِهَا هَٰٓؤُلَآءِ فَقَدۡ وَكَّلۡنَا بِهَا قَوۡمٗا لَّيۡسُواْ بِهَا بِكَٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُۖ فَبِهُدَىٰهُمُ ٱقۡتَدِهۡۗ قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًاۖ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرَىٰ لِلۡعَٰلَمِينَ ﴿٩٠﴾ وَمَا قَدَرُواْ ٱللَّهَ حَقَّ قَدۡرِهِۦٓ إِذۡ قَالُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٖ مِّن شَيۡءٖۗ قُلۡ مَنۡ أَنزَلَ ٱلۡكِتَٰبَ ٱلَّذِي جَآءَ بِهِۦ مُوسَىٰ نُورٗا وَهُدٗى لِّلنَّاسِۖ تَجۡعَلُونَهُۥ قَرَاطِيسَ تُبۡدُونَهَا وَتُخۡفُونَ كَثِيرٗاۖ وَعُلِّمۡتُم مَّا لَمۡ تَعۡلَمُوٓاْ أَنتُمۡ وَلَآ ءَابَآؤُكُمۡۖ قُلِ ٱللَّهُۖ ثُمَّ ذَرۡهُمۡ فِي خَوۡضِهِمۡ يَلۡعَبُونَ ﴿٩١﴾ وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلۡنَٰهُ مُبَارَكٞ مُّصَدِّقُ ٱلَّذِي بَيۡنَ يَدَيۡهِ وَلِتُنذِرَ أُمَّ ٱلۡقُرَىٰ وَمَنۡ حَوۡلَهَاۚ وَٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ يُؤۡمِنُونَ بِهِۦۖ وَهُمۡ عَلَىٰ صَلَاتِهِمۡ يُحَافِظُونَ ﴿٩٢﴾ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمۡ يُوحَ إِلَيۡهِ شَيۡءٞ وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثۡلَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُۗ وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِي غَمَرَٰتِ ٱلۡمَوۡتِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ بَاسِطُوٓاْ أَيۡدِيهِمۡ أَخۡرِجُوٓاْ

---

[1] مجلس التأويل ٦/٢٣٤٣.

Bawar.net

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

أَنفُسَكُمُ ٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ ٱلْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ غَيْرَ ٱلْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ ءَايَٰتِهِۦ تَسْتَكْبِرُونَ ﴿٩٣﴾ وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَٰدَىٰ كَمَا خَلَقْنَٰكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَتَرَكْتُم مَّا خَوَّلْنَٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُورِكُمْ وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَٰٓؤُا۟ لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٩٤﴾ ﴾.

## مناسبت او تړاو:

كله چي الله ﷻ د توحيد په هكله څرګند دلائل او ښكاره براهين راوړل ورسره يې د شرک او د بتانو په عبادت كولو د بطلان كرښه راكښله نو د لته يې د انبياوو د پلار حضرت ابراهيم على نبينا وعليه الصلوة والسلام كيسه راوړه ترڅو د عربو په مشركانو چاچي د بتانو عبادت او تقدس كاوو حجت راوړي څكه هغه (ابراهيم ) د خالص توحيد پيروى كوله كوم چي له شرک سره منافى دى او ټولي پرګني او ټول كمونه د حضرت ابراهيم (عليه السلام) په بهتري او ستره مرتبه اقرار كوي وروسته بيا يې د ابراهيم عليه السلام د زامنو انبياوو شرافت وستايه او رسول الله ﷺ ته يې د هغوي اقتداء او په لاره تللو امر وكړ.

## لغتونه:

(مَلَكُوتَ ) اصلاً له ملک څخه اخستل شوي وواو (تا ) د مبالغي لپاره ورپسي راغلي لكه رغبوت اورهبوت چي په اصل كښي له رغبت اورهبت څخه دي (جَنَّ ) په تياره يې پټ كړ واحدي وايي چي (جَنَّ عَلَيْهِ ٱلَّيْلُ ) او (اجنه الليل ) او هر هغه څه ته چي پټ وي جن ويل كيږي او جنت يى څكه بولى څكه جنت الونيا او پټ دى او داسي جن ،جنون او جنين دي او دغه ټول پټ والي ته راګرزي [1] (بَازِغًا) ختلي ته ويل كيږي (بزغ القمر) كله چي راوخيژي أزهري وايي چي داسي بريښني دغه به له بزوغ څخه اخيستل شوي وي چي هغه څيرلو ته وايي او ودې په راختلو سره هم تياري څيرل كيږي [2] (أَفَلَ ) وركيدل او لويدل (سُلْطَٰنًا ) حجت او دليل (يَلْبِسُوٓا۟ ) سره ګډوډ كول (لبس الثوب )معنا داچي وايي غوستله جامه (وَٱجْتَبَيْنَٰهُمْ) مونږ غوره كړي وو (قَرَاطِيسَ ) د قرطاس جمع ده كاغذ ته وايي. (غَمَرَٰتِ ) سختنه لالهانده اصل يې له (غمرة الماء) څخه اخيستل شوي او هغه ديوشي په اوبوكي غوپه كيدلو ته وايي (خَوَّلْنَٰكُمْ) (تخويل ) وركولو او ښنلو ته وايي (وَضَلَّ عَنكُم ) ضايع او باطل شو له تاسونه.

---

[1] - تفسير الرازي ١٣/٤٦.

[2] - تهذيب اللغة مادة بزغ.

Bawar.net



دنزول سبب:

سعيد بن جبير(رضي الله عنه) وايي چي ديهودانو له ډلې څخه (مالک بن الصيف ) رسول الله ﷺ ته راغي اوورسره شخړه يې پيل کړه اورسول الله ﷺ ورته وويل په هغه چالوړه درکوم چي تورات يې په موسى نازل کړي اياتا په تورات کښې نه دي لوستلي چي الله له چاغ حبر څخه کرکه کوي ؟(اودغه پخپله چاغ اوپلن حبروو ) نوهغه په غضب شواوويې ويل قسم په الله باندي که به الله په هيچا يوشي رانازل کړي وي نو هغه چي له ده سره ملګری وو ورته ويل يې افسوس ستاپه حال ايا په موسى يې هم نه دي نازل کړي؟ نوويې ويل قسم په الله که به يې په هيچا هم نازل کړي وي نوالله ﷻ دا ايت نازل کړچي: ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ إِذْ قَالُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسَىٰ نُورًا وَهُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُونَهُ قَرَاطِيسَ تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ كَثِيرًا وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوا أَنتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ قُلِ اللَّهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِي خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ ﴾ ([1])

تفسير:

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً ﴾ (اوياد که (ای محمده ! )هغه وخت چي وويل ابراهيم خپل پلار ازرته ايانيسي ته بتان په خدايي سره ) يعني ای محمده ستا قوم ته هغه دابراهيم عليه السلام خبره ورپه يادکړه دوي خو دهغه (عليه السلام ) دپيروي دعوی کوي هغه خبره کله چي ابراهيم خپل پلارته وويل چي اياته بتان په خدايي سره نيسي هغه الله دي پري ايښي چي ته يې پيداکړي اوروزي درکوي ؟ ﴿ إِنِّي أَرَاكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ بيشکه چي زه وينم تا اوقوم ستاپه ګمراهي ښکاره کښې (چي هيڅ شک پکښې نشته ) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ او(لکه چي ومو ښوده ابراهيم ته دده دقوم ګمراهی )همدارنګه ښيو مونږ ابراهيم ته عجائبات داسمانونو اوځمکی) ﴿ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ ﴾ لپاره ددې چي شي له (پخو) يقين کونکو يعنی هغه ته موهغه څرګند دلائل وښودل مجاهد وايي چي هغه ته اسمانونه اوځمکي پرانستل شوي ترڅو ملکوت اعلى اوملکوت اسفل ووينی.([2]) ﴿ فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ اللَّيْلُ رَأَىٰ كَوْكَبًا ﴾ (نو کله چي تياره شوه په ده باندي شپه نووليد (ابراهيم) يوستوري ،يعني کله چي شپي په خپله تاريکي کښې هرڅه پټ کړل نوده يوروښانه ستوري وليد چي هغه په اسمان کښې زهره يا مشتري وو. ﴿ قَالَ هَٰذَا رَبِّي ﴾ ويې ويل دارب زما دي (په زعم ستاسوسره ) دغه يې په دوي باندي د رد په توګه وويل اوهغوي يې توبيخ کړل همداراز ددوي استدراج يې کاوو ترڅو دوي ته ددوي جهل اوخطايې وروښيي اوپه ګوته کړي چي تاسي پرته له الله څخه دبل چاعبادت کوي زمخشری وايي چي دده پلار اوقوم يې دبتانو اوستورو عبادت کاوونو ده وغوښتل چي هغوي خپل ګمراهي ته متوجه اوسمي لاري ته يې رهنماي کړي اودغه کارپه استدلال اومناظره ترسره کړي

[1] - اسباب النزول ص ١٢٦ القرطبي ٣٧/٧.
[2] - البحر ١٦٥/۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دوي پدي وپوهوي چي سم دليل دادي چي دغه شيان له الوهيت سره نه ښايي ځکه له دوی شاته داسي ځوک شته چي دوي يې پيدا کړی ددوی راختل اوپريوتل دهغه په تدبير کی دی دهغوی ليږد (انتقال) اوتګلاره (مسير) دهغه په تصرف کښې دي اوداچي وېي ويل (هذاربّي) ددې لپاره چي خصم وپوهوي چي هغه په باطله لاره روان دي نودهغه دخبري داسي حکايت کو ي لکه چي دخپل مذهب په هکله دتعصب څخه ځوک کارنه اخلي ځکه دغه دحق لاري ته ښه رابلل دي بيا وروسته راګرزي اوهغه رايه په حجت اودليل باطلوي ([1]) ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلۡأٓفِلِينَ ﴾ (نوکله چي ولويد اوغروب يې وکړ وويل (ابراهيم) چي زه دوست نه ګڼم غروب کونکی) يعني کله چي ولويدو دغه ستوري اوغائب شو نوابراهيم عليه السلام وويل چي زه دداسي چاعبادت نه کوم چي هغه لويدونکی وی ځکه پروردګار اوپالونکی بايدتل ترتله اوتغيرنه موندونکی وي تغيرات خوداجرامو اوآسماني ستورو خاصيت دی ﴿ فَلَمَّا رَءَا ٱلۡقَمَرَ بَازِغٗا قَالَ هَٰذَا رَبِّيۖ ﴾ (اوکله چي وليده (ابراهيم) سپوږمی راختونکي ځليدنکي وويل (ابراهيم) دارب زمادي (ستاسي په زعم سره) دغه يې هم د پخوانيو اسلوبو په شان وويل چي ددو ي حماقت ورپه ګوته کړي ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَئِن لَّمۡ يَهۡدِنِي رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ نوکله چي غروب يې وکړ (غائبه شوه) وويل (ابراهيم) که هدايت ونکړي ماته رب زمانوهرومرو به ګرزم له قومه ګمراهانو) پدي کښې دې خبري ته تعريض دي چي قوم يې په ګمراهی کښې اوسي ﴿ فَلَمَّا رَءَا ٱلشَّمۡسَ بَازِغَةٗ قَالَ هَٰذَا رَبِّي هَٰذَآ أَكۡبَرُۖ ﴾ اوکله چي وليد (ابراهيم) لمرراختونکي (ځليدونکی) وويل (ابراهيم) دادي رب زمادستاسي په زعم سره) دا (له ګردو يعني ستورو اوسپوږمی څخه) لو ي دی ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَتۡ قَالَ يَٰقَوۡمِ إِنِّي بَرِيٓءٞ مِّمَّا تُشۡرِكُونَ ﴾ (کله چي لمر (هم غروب وکړ) غائب شو وويل ابراهيم ای قومه زمابيشکه زه له هغو شيانو چي تاسي يې له الله سره شريکوی بيزاره يم) ابوحيان وايي کله چي يې دوی ته داورځرګند ه کړه چي دغه ستوري چي ده وليدله خدايی (الوهيت) سره نه ښايي نودداسي څه ځارنه يې کوله چي ترلمړني خوراځلاند اونوراني دي چي سپوږمي يې وليده په لومړني راختلو کښې اوکله چي هغه ولويده نودلمرځارنه يې کوله ځکه هغه ترسپوږمی لا زيات روښانه ،ګټه يې عامه او(جرم) تن يې سترو نودغه يې داحتجاج په توګه وويل چي داهم په لوېدلو کښې لکه ستوري غوندي د ي اوحدوث صفت لري ([2])
ابن کثير وايي چي حقه خبره داده چي حضرت ابراهيم عليه السلام پدغه ځای کښې له خپل قوم سره دمناظرې حال درلود دوي ته يې ددوي دباطلی عقيدي چي دبتانو اوستورو عبادت يې کاوو قاطع دليل وړاند ي کول چي ترټولو روښانه اوځلاند لمر بيا سپوږمی اوروسته زهره ستوري دی کله چي له دو ي څخه الوهيت نفی شی چي داهغه خوراروښانه اوځلانده شيان د ي چي ورباندي سترګي لګيږي نويې

---

[1] -الکشاف ۳۱/۲.
[2] -البحر المحيط ۱۶۷/۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وويل: ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴾ (١) ﴿ إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ ﴾ (بيشکه ما گرځولي دي مخ خپل مي) يعنی قصد مي کړي پخپل عبادت اوتوحيد سره. ﴿ لِلَّذِي فَطَرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ هغه ذات ته چي پيدا کړي يې د ي اسمانونه اوځمکه ﴿ حَنِيفًا ﴾ حال داچي حنيف يم (گرځيدونکی له گردو باطلو اديانوڅخه حق دين ته). ﴿ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ اونه يم زه له مشرکانو (هغه څوک چي له الله سره دبل چاهم عبادت کوي ﴿ وَحَآجَّهُۥ قَوْمُهُۥ ﴾ (٢) اوجگړه وکړه له ده سره قوم دده (دتوحيد په هکله) ابن عباس (رضي الله عنه) وايي: دوي دخپلو خدايانو په باب ورسره مناظره اوجگړه وکړه اوهغه يې ورباندي وويرول نوده دهغوي په ځواب کښې ورته داسي نه منونکي ځواب واورول چي: ﴿ أَتُحَٰٓجُّوٓنِّي فِي ٱللَّهِ ﴾ وويل (ابراهيم) اياجگړه کوئ تاسي ماسره په (وحدانيت اووجود د) الله کښې؟ ﴿ وَقَدْ هَدَىٰنِ ﴾ حال داچي په تحقيق هدايت کړي (لاره دتوحيد ښودلي الله) ماته ﴿ وَلَآ أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ بِهِۦٓ ﴾ اونه ويريږم له (ضرره د) هغوبتانو چي تاسي يې شريکان کوئ له الله سر ه (په هيڅ وخت کښې) يعني زه له دغوگومانی خدايانوڅه هيڅکله نه ويريږم ځکه هغه نه گټه رسوي اونه تاوان، نه ويني نه اوري اونه هم په هيڅ شي قدرت اوتوان لري لکه چي تاسوگومان کوئ ﴿ إِلَّآ أَن يَشَآءَ رَبِّي شَيْـًٔا ﴾ مگر چي اراده وفرمايي رب زما دڅه (تکليف رسولو ماته نورسولی يې شي) ﴿ وَسِعَ رَبِّي كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴾ احاطه کړي ده رب زما په ټولوشيانو له جهته دعلمه ﴿ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴾ ايانوتاسي پند نه اخلي؟ استفهام دتوبيخ لپاره دي يعني تاسو عاجز اوقادر سره بيلولاي نشی؟ پدي خبره کښې ددي تنبيه ده چي دوي په بشپړه توگه دغفلت په سمندرکښې لاهودي چي دداسي چا عبادت کوي چي نه گټه رسوي اونه زيان، سره له د ي چي دوي ته دوحدانيت څرگند دلائل شته خوبيا هم مشرکان د ي ﴿ وَكَيْفَ أَخَافُ مَآ أَشْرَكْتُمْ ﴾ اوڅرنگه وويريږم زه له هغه (بتانو) چي شريکان کړي دي تاسوله الله سره په عبادت کښې ﴿ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ

---

١ -مختصر ابن کثير ١/۵۹۲.

٢ -ځيني مفسرين وايي چي دابراهيم (عليه السلام) داقول چي وايي (هذا ربی) دغه دکوچينوالی ماشومتوب په وخت کښې وو چي دالله په معرفت کښې يې لانظر پوخ شوي نه وو خوصحيح خبره داده لکه چي جمهورعلماء يې کوي داچي دغه قول دمناظري په حالت کښې وو ترڅو پردوي باندي دستورو اوسپوږمی عبادت کول باطل وښي اوموافقت په عبارت کښې په مقابل لوري باندي دالزام په توگه اغيزمن دليل دی ددې مدعا لپاره دليل دالله ﷻ داقول هم کيږي چي فرمايي: ( وَحَآجَّهُۥ قَوْمُهُۥ ) اوداچي الله فرمايي (وتلک حجتنا اتيناها ابراهيم علی قومه) او لکه حافظ ابن کثيرچي وايي دغه مقام دمناظري مقام دی نه دنظرمقام، اوپاکی ده حضرت خليل (عليه السلام) لره چي هغه دي د(رب) په هکله شکمن شي هغه خود انبياو وپلار اودحق پالونکی امام دي امام رازي دوولس دليلونه راوړي چي دجمهورو علماوو دتگلاري (مذهب) تائيد کړي اودا دتفسير کبير په ۱۳ توک ۴۷ مخ کښې همداخبره دمفسرينو دنوميالیو خلکولکه قرطبی، زمخشری، ابوالسعود، ابن کثير دالبحر المحيط مؤلف اونورو غوره بلل شوي ده والله اعلم.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَشْرَكْتُم بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ عَلَيْكُمْ سُلْطَـٰنًا ﴾ (اونه ویریږئ تاسي له دي چي بیشکه تاسي شریک کړی دي له الله سره هغه شی چي ندي رالیږلی (الله ) په (شریک کولو) دهغه پرتاسي هیڅ برهان (دلیل سند )یعني تاسو له هغه قادراوتواناالله څخه چي په هرشي یې زوربردي نه ویریږي چي ورسره موبې له دلیله اوبرهانه شریک نیولی؟﴿ فَأَيُّ ٱلْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِٱلْأَمْنِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ نوکومه یوه ډله دي دواړوڅخه مستحقه اولائقه ده په امن سره (له عذابه دالله ) یعني څوک؟ ایا مونږ چي الله ﷻ موپه دلائلو پیژندلي اوعبادت لپاره موځانګړي کړي اوکه تاسوچي بتان موورسره شریکان نیولي اوپه وحدانیت یې کافران شوي یاست دالله له عذابه دامن وړاولایق دی؟) وواياست که یې تاسي چي پوهیږي ؟﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَلَمْ يَلْبِسُوٓا۟ إِيمَـٰنَهُم بِظُلْمٍ ﴾ هغه کسان چي ایمان یې راوړي دي (یقین لرونکي دي )اوندي ګډکړي دوی ایمان خپل له ظلم (له لوي نقصان سره چي شرک دي )﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ ﴾ دغه کسان چي ایمان یې له شرکه ساتلی ) هم دوی لره شته امن (له عذابه) اوهم دوي دي لارموندونکي .روایت کیږی کله چي دغه ایت نازل شو نودرسول الله ﷺ اصحابان وویریدل چي کوم یوزمونږ ظلم ندي کړي پرځان خپل؟ نورسول الله ورته وویل هسي نه ده لکه چي تاسو ګومان کوي بلکه خبره داسي ده لکه چي لقمان خپل زوي ته ویلي.([1]) (يٰبُنَي لاتشرک بالله ان الشرک لظلمٌ عظيم ) لقمان :۱۳) ﴿ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ ءَاتَيْنَـٰهَآ إِبْرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ ﴾ اوداچي تیرشو دلیل زمونږ دي چي ورکړي وو مونږ هغه ابراهیم ته په (مقابله د ) قوم دده چي پردوي غالب شي پدي کښې پخواني دلائلو ته اشاره ده کوم چي الله ﷻ دخپل خلیل ملاتړ وړباندي کړي چي دالله دوحدانیت دلائل یې ورښودلي دي هغه چي دلمر سپوږمي اوستوري په لویدلو کښې نغښتي وو ترڅو یې پخپل قوم بریالي کړي﴿ نَرْفَعُ دَرَجَـٰتٍ مَّن نَّشَآءُ ﴾ پورته کو مونږ درجې هرچاته چي اراده وفرمایو (دپورته کولو یې په علم،فهم اونبوت سره ) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بیشکه رب ستا ډیرحکمت والادی (چي هرکار په تدبیراومصلحت سره کوي) ښه پوه اوعالم دی پرټولو احوالو ) ﴿ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَـٰقَ وَيَعْقُوبَ ﴾ اووبابښه مونږ ابراهیم ته اسحاق اویعقوب موهم ورووبابښه چي داسحاق زوي اودده لمسي وو ترڅوبې په خلف (وروسته پاتي ) سترګ یخي وي ﴿ كُلًّا هَدَيْنَا ﴾ دغوټولو ته هدایت کړي وو مونږ(دنیکمرغي لاري ته اونبوت مووربښلي حکمت موورکړي وو) ابن کثیر وایي چي الله ﷻ ددې یادونه کوي چي ابراهیم ته یې اسحاق اویعقوب ورکړي وو وروسته له دي چي دبوډاتوب وخت ته رسیدلي اوداولاد له راوړلو ناهیلي شوي وو اودده زیري یې ورکړي وو چي دغه به انبیاء اودنسل اوذوذات خاوندان وي اودغه نوبشپړ بشارت اوسترنعمت څرګند وي اودغه دابراهیم علیه السلام دهغه ګوښه توب اوهجرت انعام وو چي هغه له خپله ټبره ولاړ اودالله عبادت ته یې مخه کړه نوالله ﷻ له خپل قوم اوټبر څخه په صالحانواولادونو اوذوذات ونازاوو ترڅویې سترګې وړباندي خوږي وي ﴿ وَنُوحًا هَدَيْنَا مِن قَبْلُ ﴾

[1] الحديث اصله فى الصحيحين

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او نوح ته مو هدايت کړي وو (له ابراهيم څخه )پخوا ودلته الله ﷻ دنوح عليه السلام يادونه څکه وکړه چي هغه ابوالبشرثاني دى نو يوځل چي الله دابراهيم داولاد شرافت وښود بيايې داباء اواجدادو يادونه وکړه اوشرافت يې بيان کړ ﴿ وَمِن ذُرِّيَّتِهِۦ دَاوُۥدَ وَسُلَيْمَـٰنَ ﴾ او(هدايت موکړي وو ) اولا دي دده څني داود اوسليمان عليهما السلام ته يعني له اولادي دابراهيم څخه (١) دغه انبياء دي الله ﷻ لومړى دداود اوسليمان عليه السلام ذکر وفرمايه څکه دوي پاچهي اونبوت دواړه چلول نو څکه يې پلار اوزوي چي داود اوسليمان دى ياد کړل ﴿ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ ﴾ اوايوب اويوسف ته دواړه يې يوځاى څکه راوړل چي په دواړو سخته ازموينه شوى وه ﴿ وَمُوسَىٰ وَهَـٰرُونَ ﴾ اوموسى اوهارون ته دواړه يې څکه يوځاى راوړل چي سره ورونه دي اوموسى عليه السلام يې په دې و ړاندى ذکر کړچي کليم الله دي ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ همداسي (لکه چي دغوانبياووته مو بدل ورکړي) بدل ورکوو مونږ نيکانو ته )يعني هرڅوک چي په عمل کښې محسن اوپه ايمان کښې صادق وي دابراهيم عليه السلام په شان نيکه جزاء ورکوو ﴿ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَىٰ وَعِيسَىٰ وَإِلْيَاسَ ﴾ او(هدايت موکړي) زکريا ،يحيى ،عيسى اوالياس ته دوي چي يې يوځاى ذکر کړل څکه چي کلک زهديې درلود اوله دنياڅخه يې بيخي مخ اړولى وو ﴿ كُلٌّ مِّنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴾ دوى ټول له صالحانو (کاملانو ) څخه دي ﴿ وَإِسْمَـٰعِيلَ وَٱلْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا ﴾ (او(هدايت موکړى وو) اسماعيل يسع ته اويونس اولوط ته ) اسماعيل عليه السلام دابراهيم عليه السلام زوي يونس عليه السلام دمتى زوى لوط عليه السلام دهاران زو ى چي دابراهيم عليه السلام وراره کيږي ﴿ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ اوداټولو ته فضيلت ورکړي وو مونږپرتمامو عالميانو دخپلي زماني ددوي په نبوت باندي ﴿ وَمِنْ ءَابَآئِهِمْ وَذُرِّيَّـٰتِهِمْ وَإِخْوَٰنِهِمْ ﴾ او(فضيلت موروړکړى وو ) ځينو ته له پلرونوددوي اوله اولادي ددوي اوله ورونو دوي ډيروټولګيو ته ﴿ وَٱجْتَبَيْنَـٰهُمْ وَهَدَيْنَـٰهُمْ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوغوره کړى وو مونږ داټول انبيا اولارښونه کړي وه مونږدوي لره سمي صافى لاري ته (چي پکښې هيڅ کږوالي نشته ) حضرت عبد الله ابن عباس (رض) وايي چي دغه نبيان ټول دابراهيم عليه السلام اولاد ته نسبت کولي شي که څه هم يوڅوک دموراويا پلار له خوا ورسره نه ملحقيږي (٢) ﴿ ذَٰلِكَ هُدَى ٱللَّهِ يَهْدِى بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ﴾ دا(لارښونه اوهدايت دالله دى چي لارښوونه فرمايي (الله) پدې سره هغه چاته چي اراده وفرمايي له بندګانو خپلو نه ﴿ وَلَوْ أَشْرَكُوا۟ لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ اوکه (فرضاً) شريک کړي وي دوي

---

١ - (فى ذريته ) ضمير خيني علماوايي چي نوح عليه السلام ته راجع دى اودغه دفراء اوابن جريرغوره ده څوک بيا وايي چي ابراهيم عليه السلام ته راجع ده اودغه دعطاء قول اوابو السعود غوره کړي ده څکه په آيت کښې دابراهيم عليه السلام دشنونو بيان دى.

٢ -البحر٢/١٧٣.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(له الله سره نور) نوخامخا به ضائع شوي وي له دوي نه هغه عمل چي وودوی چي کاووبه يې) يعني دوي دمرتبي له دومره اوچتوالی سره سره که چیری (بالفرض) مشرکان شي نوعمل به يې ضايع شي نورخلک خولاڅه کوي ؟﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحُكۡمَ وَٱلنُّبُوَّةَۚ ﴾ دغه (تيرشوي) پيغمبران هغه کسان دي چي ورکړي دي مونږ دوي ته کتابونه (آسمانی) اوحکمت (دشريعت علم) اوپيغمبري ﴿ فَإِن يَكۡفُرۡ بِهَا هَٰٓؤُلَآءِ فَقَدۡ وَكَّلۡنَا بِهَا قَوۡمٗا لَّيۡسُواْ بِهَا بِكَٰفِرِينَ ﴾ پس که کافرشي پدي (آیاتونودقرآن) دغه (کافران دمکي) پس په تحقيق مقرر کړی دی مونږ په (ایمان اوعمل) ددې داسي يوقوم چي ند ي دوي (په دا قرآن) کافران يعني که چيري ستادزماني کافران دغه قرآن نه مني نومونږ دغه په انبياوو اورسولانو ساتلي د ي[1] ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُۖ فَبِهُدَىٰهُمُ ٱقۡتَدِهۡۗ ﴾ دغه (انبياء) هغه کسان دي چي هدايت کړي دي الله (دوی ته) نو په لاره ددو ی اقتداء وکړه اودهغوي دسيرت پلوي کوه ﴿ قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًاۖ ﴾ وواېه (ای محمده) چي زه نه غوارم له تاسي په دغه (تبليغ دقرآن سره) څه مزدوري اومال ﴿ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرَىٰ لِلۡعَٰلَمِينَ ﴾ نه دي دا(قرآن) مگر يوازي (پندوعظ) دي لپاره دټول عالميانو ﴿ وَمَا قَدَرُواْ ٱللَّهَ حَقَّ قَدۡرِهِۦٓ ﴾ اوتعظيم ندي کړي دغو (يهودو) دالله په حق دتعظيم دده سره اونه يې پيژندلی دپيژندگلوي په حق سره ﴿ إِذۡ قَالُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٖ مِّن شَيۡءٖۗ ﴾ (کله چي وويل دوی چي ندی نازل کړی الله پرهيڅ بشرد(انسان) باندي هيڅ شي) يعني چي دوحی اودانبياوو له رالستولو څخه منکر شول دغه کسان ملعون يهودان د ي چي داسي ستره بده خبره يې کړی چي دقرآن دنزول دانکار په هکله له مبالغې څخه کاراخلی وايي الله په هيچا هيڅ کتاب هم ندی نازل کړی څه خولا داقران په محمدﷺ باندي ﴿ قُلۡ مَنۡ أَنزَلَ ٱلۡكِتَٰبَ ٱلَّذِي جَآءَ بِهِۦ مُوسَىٰ نُورٗا وَهُدٗى لِّلنَّاسِۖ ﴾ (اووايه)(ای محمده معاندينوته) چانازل کړ ي وو کتاب (تورات) هغه چي راوړي وو هغه موسی حال داچي نوراوهدايت دي لپاره دخلکو (بنی اسرائيلوته) ﴿ تَجۡعَلُونَهُۥ قَرَاطِيسَ تُبۡدُونَهَا وَتُخۡفُونَ كَثِيرٗاۖ ﴾ چي گرځوي تاسي هغه (کتاب) پانه پانه ښکاروي يې (خلکوته چي ستاسي خوښ وي) اوپټو ي تاسي ډيري (تری چي ستاسي نه وي خوښي لکه محمدي نعت) طبری وايي هغه چي پټول به يې هغه دمحمدﷺ احوال اونبوت وو[2] ﴿ وَعُلِّمۡتُم مَّا لَمۡ تَعۡلَمُوٓاْ أَنتُمۡ وَلَآ ءَابَآؤُكُمۡۖ ﴾ اوښودلی شوي دی تاسي ته هغه (احکام دتورات) چي پوه نه وي (پري) تاسی ،يعني ای ديهودانو ټولي تاسي ته پدي قران کښې دالله دين اوهدايت وښودلي شو چي تاسو اوستاسو پخواني پلرونه ورباند ي نه پوهيدلاست ﴿ قُلِ ٱللَّهُۖ ثُمَّ ذَرۡهُمۡ فِي

---

[1] - چاويلي چي مراد له دغه ټولگي څخه دمديني منوري انصاردی اودغه دابن عباس (رض) قول دی اوچاپيا ويلي چي دغه پورتني اتلس انبياء عليهم السلام ورڅخه مراد دي دغه دقتاده قول اودزجاج اوابن جرير غوره دي.

[2] - الطبری ۵۲۷/۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ﴾ (ووایه (ای محمده )چي الله (نازل کړي دي بل څوک نشته ) بیا پرېږده دوی چي په خرافاتو خپلو کښې لوبي کوی (غوپی وهي مشغولیږي) یعني دوی ته په ځواب کښې ووایه چي الله دغه قرآن نازل کړي او نورېږي پرېږد چي پخپلو خرافاتو اباطیلو کښې لامبي دغه خبره ددوي دګناه په وړاندې تهدید اوددوي لپاره وعید دی ﴿وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ مُبَارَكٌ﴾ (اودا کتاب قرآن دي چي نازل کړی دی مونږ هغه برکتناک ) یعني دغه قران کوم چي مونږ په محمد ﷺ نازل کړی برکت درلودونکی فائده من اوګټوردي ﴿مُّصَدِّقُ ٱلَّذِى بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ تصدیق کونکی دهغه (کتابونو ) د ي چي وړاندي له ده دی (لکه توران اوانجیل) ﴿وَلِتُنذِرَ أُمَّ ٱلْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ اولپاره ددي چي وویروي اصل دټولو کلیو (دمکی اهل) اوهغه چي له دي چاپېرد ي ابن عباس وايي چي له دوي څخه مراد دټولي ځمکي خلک د ي ﴿وَٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِۦ﴾ اوهغه کسان چي ایمان یې راوړي د ي په اخرت ایمان لرى دوي په قرآن ځکه دغه کتاب په وعدااووعید مشتمل دي زیري اوتهدید پکښی دي ﴿وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ﴾ (حال داچي دوي پخپلو لمنځونو ساتنه کوي ) یعني لمنځونه په بشپړه توګه له ټولو حقوقو سره پخپلو وختونو کښې په دوام اداکوي صاوی وايي چي لمونځ یې په ځانګړي توګه یادکړ ځکه هغه دعبادتونو خورا شرافت لرونکی عبادت دي[1] ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا﴾ اوڅوک دي ډیر ظالم ؟یعني هیڅوک نشته دلته استفهام دنفی په معنی د ي )له هغه چانه چي تړی په الله دروغ (له هغه سره شریکان اوسیالان نیسي ) ﴿أَوْ قَالَ أُوحِىَ إِلَىَّ وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَىْءٌ﴾ یاوايي چي وحي کړي شوي دی ماته حال داچي وحی نه وی کړي شوي ده ته (هیڅ شی) یعني ګومان کوي چي دی الله رااستولی لکه ( مسیلمة الکذاب) او(اسود العنسی) چي ددروغو نبوت دعوی یې کړي وه سره له دي چي الله ﷻ نه وو را استولي ﴿وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثْلَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ﴾ او(بل څوک دی ډیر ظالم ؟ یعني نشته له ) هغه چاچي وایي ژر به (زه هم ) نازل کړم (وبه لیکم ) له ځانه ) په مثل دهغه کتاب چي نازل کړ ي دی الله (تاته ای محمده چي قران دی) لکه د(فجار) قول چي ویل یې زه به هم داسي خبري وپیبم (نظم ) کړم لکه چي الله ﷻ نازل کړی (ولونشاء لقلنا مثل هذا ) ابوحیان وايي چي دغه د(نضربن حارث) په هکله نازل شوی اوهغه کسان ملنډي وهونکي چي دده ملګري وو ده دقرآن کریم مخالفت په داسي سپک اوسخیف کلام وکړچي دیادولو نه دي[2] ﴿وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِى غَمَرَٰتِ ٱلْمَوْتِ﴾ اوکه ووینې ته (ای محمده ) ظالمان یعني کافران په هغه وخت کښې چي دمرګ په سختیو کښې وي د(لو ) ځواب محذوف دي اودحذف وجه یې دهول اوهیبت څرګندونه ده یعني که ووینې نوډیر بوږنونکی حالت به ووینی ﴿وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ بَاسِطُوٓا۟ أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوٓا۟ أَنفُسَكُمُ﴾ حال

---

[1] -حاشیه الصاوی علی الجلالین ۳۷/۲.

[2] -البحر المحیط ۱۸۰/۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



داچي پرښتي د(عذاب) غځونكي وي دلاسونو خپلو (دروح دقبض كولو لپاره نووابي دوي ته چي ) خپل ارواح ګان راوباسئ (كه يې له عذابه خلاصوى شئ )يعنى كله چې دعذاب پرښتي دوي په مخونو اوشاوو وهى ترڅو دوي خپلي ساوي له بدنونو راوباسي پرښتي دوى ته وايي ځانونه له عذابه خلاص كړي ! زمخشري وايي چي ملايک به هغوي ته وايي راوكاږي خپلي ساوي له خپلوبدنونو دغه دقهر اوغضب حالت داسي الحاح ده چي دوي ته به دروح په ايستلو كښې هيڅ مهلت اووخت نه وركول كيږي([1]) ﴿ ٱلۡيَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ عَذَابَ ٱلۡهُونِ ﴾ نن ورځ به جزا دركړه شي تاسي ته عذاب سپكونكى (چي له سخت ذلت سره به تكليف اورسوايى هم وي ) ﴿ بِمَا كُنتُمۡ تَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ غَيۡرَ ٱلۡحَقِّ ﴾ په سبب دهغه چي وي تاسي ويل به موپرالله (وينا ) ناحقه (چي هغه ته مودشريک اوولدنسبت كاوو) ﴿ وَكُنتُمۡ عَنۡ ءَايَٰتِهِۦ تَسۡتَكۡبِرُونَ ﴾ اووي تاسي له آيتونو دده څخه به موتكبركاوو(اونه به مومنل نه به موپكښې سوچ اوتامل كاوو) ﴿ وَلَقَدۡ جِئۡتُمُونَا فُرَٰدَىٰ كَمَا خَلَقۡنَٰكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٖ ﴾ اوخامخاراغلي تاسي مونږ ته يوازي يوازي (دپاره دحساب اوجزاء) لكه چي پيداكړي مووي تاسي اول ځلی(يوازى له مال، اهل، اولاد څخه ايبلى ،بربند ،ناسنته )لكه چي په حديث شريف كښې راځي :(ايهاالناس انكم محشورون الى الله حفاة ،عراة، غرلا ،كمابدأنا اول خلق نعيده )([2])(وَتَرَكۡتُم مَّا خَوَّلۡنَٰكُمۡ وَرَآءَ ظُهُورِكُمۡ ) اوپريښودل تاسي (په دنياكښې ) هغه (شيان ) چي دركړي وو مونږ تاسي ته وروسته دشاوو خپلو (هيڅ ګټه يې درته ونه رسوله ) ﴿ وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمۡ شُفَعَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُمۡ أَنَّهُمۡ فِيكُمۡ شُرَكَٰٓؤُاْ ﴾ (اونه وينو مونږ له تاسي سره شفاعت كونكى ستاسي هغه چي ګومان كاووتاسي چي بيشكه دوى (په استحقاق د عبادت د )ستاسي كښې شريكان دي ) يعنى هغه كسان چي تاسودوى له الله سره په عبادت كښې شريكان نيولي ووهغه له تاسوسره نه وينو ﴿ لَقَد تَّقَطَّعَ بَيۡنَكُمۡ ﴾ خامخا پري شو (هغه پيوند چي وو ) په مينځ ستاسى كښې ﴿ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمۡ تَزۡعُمُونَ ﴾ اوورک شوله تاسي څخه هغه شى چي وي تاسي چي ګڼل به مو(چي داشفاعت كونكي اوشريكان د ي).

بلاغت:

۱-( وَكَذَٰلِكَ نُرِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ ) دادتيرحال حكايت دى يعنى ده ته موورولید.

۲- (لَأَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلضَّآلِّينَ ) پدې كلام كښې دهغه دقوم ګمراهي ته تعريض دى اود (الهداية او الضلالة )ترمينځ داطباق صنعت دى چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل كيږي.

۳- پدې كلام كښې چي (وَجَّهۡتُ وَجۡهِيَ ) داشتقاق جناس نغښتى د ى.

---

[1] -الكشاف ۳۶/۲.

[2] -متفق عليه.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴- (هُدَى ٱللَّهِ) دلته اضافت د شرافت لپاره او په (يهدى) او (هدى) کښې د جناس اشتقاق شته.

۵- (مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ) دغه د نزول د انکار په هکله مبالغه ده چي الله په هيڅ هم هيڅ وحى نه دي نازله کړي.

۶- (مَنْ أَنزَلَ ٱلْكِتَٰبَ) دلته استفهام د توبيخ او تبکيت لپاره دى.

۷- پدې کلام کښې چي فرمايي (تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ) د طباق صنعت دى.

۸- (أُمَّ ٱلْقُرَىٰ) مکه مکرمه ښيې او پدې قول کښې استعاره ده له مور سره يې مشابه کړه هغه هم پدې چې د کليو اصل دى

۹ -شريف رضى وايي دالله ﷻ پدې قول کښې چي فرمايي: (فِى غَمَرَٰتِ ٱلْمَوْتِ) يوه عجيبه استعاره خوندي دي ځکه الله سبحانه وتعالى دوي چي د مرګ په پوله په سختيو اوکړ اونو کښې وي له هغه چاسره مشابه کړل چي داوبو په ځپو کښې يوي بلي خواته غور ځول کيږي او (غمرة) يې ځکه وبلله چي نغښتلو ته وايي او داهم د انسان زړه رانغاړي.

**تنبيه:**

ځيني مفسرين کرام وايي: چي (ازر) دابراهيم عليه السلام تره وو پلار يې نه وو چا بيا ويلي چي هغه دبت نوم دي خو محققين (څيړونکي) علماو وايي: چي دغه دابراهيم عليه السلام دپلار نوم د ى او پدې باندي کتاب او سنت هم دلالت کوي په آيت شريف کښې په صراحت ذکرشوي چي ازر کافر وو او دغه خبره د حضرت خليل له شان او مقام څخه څه نه کموي په بخاري شريف کښې يو حديث راځي چي حضرت ابراهيم عليه السلام به د قيامت په ورځ له خپل پلار ازر سره مخامخ شي او دازر په مخ به دوړي ګردونه ناست وي. د حديث ترپايه .... او هغه د ايمان دعوى په قرآني آيت او حديث سره نامنل شوي ده. والله اعلم.

**الله تعالى فرمايي:**

﴿ ۞ إِنَّ ٱللَّهَ فَالِقُ ٱلْحَبِّ وَٱلنَّوَىٰ ۖ يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ ٱلْمَيِّتِ مِنَ ٱلْحَىِّ ۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٩٥﴾ فَالِقُ ٱلْإِصْبَاحِ وَجَعَلَ ٱلَّيْلَ سَكَنًا وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴿٩٦﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلنُّجُومَ لِتَهْتَدُوا۟ بِهَا فِى ظُلُمَٰتِ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٩٧﴾ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنشَأَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ ﴿٩٨﴾ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ نَبَاتَ كُلِّ شَىْءٍ فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا وَمِنَ ٱلنَّخْلِ مِن طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَجَنَّٰتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَٰبِهٍ ۗ ٱنظُرُوٓا۟ إِلَىٰ ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَيَنْعِهِۦٓ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكُمْ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٩٩﴾ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ ٱلْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ ۖ وَخَرَقُوا۟ لَهُۥ بَنِينَ وَبَنَٰتٍۭ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾ بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُۥ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُۥ صَٰحِبَةٌ ۖ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٠١﴾ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴿١٠٢﴾ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿١٠٣﴾ قَدْ جَاءَكُمْ بَصَائِرُ مِنْ رَبِّكُمْ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ ﴿١٠٤﴾ وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١٠٥﴾ اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٦﴾ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكُوا وَمَا جَعَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ ﴿١٠٧﴾ وَلَا تَسُبُّوا الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ كَذَٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ مَرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٠٨﴾ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَاءَتْهُمْ آيَةٌ لَيُؤْمِنُنَّ بِهَا قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِنْدَ اللَّهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٩﴾ وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١١٠﴾﴾ الأنعام: ۹۵-۱۱۰

## مناسبت اوتړاو:

کله چې الله ﷻ توحید بیان کړ وروسته یې دنبوت شان وستایه دلته الله پاک دخالق ذات په وجود اودهغه دعلم په کمال اوپه بشپړ قدرت اوحکمت باندې دلائل راوړي چې پدې تنبیه وشي چې اصلي مقصود دالله په ذات صفات اوافعالو کښې پیژندګلوي (معرفت) دي

## لغتونه:

(فَالِقُ) چوونکی څیرونکي (سَكَنًا) هغه چې انسان ورته انس اوالفت لري اوارامي (سکن) رحمت ته وایي (حُسْبَانًا) په حساب سره زمخشري وایي چې (حسبان) دحسب مصدر دي لکه کفران اوشکران غوندي([1]) (مُتَرَاكِبًا) څه سربېره په نور څه یودبل دپاسه (قِنْوَانٌ) دقنو جمع او دخرما وږی ته وایي (وَيَنْعِهِ) پاخه دهغه، ویل کیږي (ینعت الشجر واینعت) کله چې ونه پخه شي (وَخَرَقُوا) له جوړکړي دروغ تپلي (بَدِيعُ) مبدع هغه پیداکونکی دشي ته پرته له پخواني مثاله ویل کیږي ابداع دنوي شي پنځولو ته وایي څکه نویو څوک چې په کوم فن کښې چې پخوایي مثال نه وي څه ایجاد کړي نودوي وایي (انه أبدع) (نُصَرِّفُ) تصریف دیوشي له یوحال څخه بل ته لیږدول تصریف بولي.

دنزول سبب: ابن عباس (رض) وایي چې دقریشو کفارو ابوطالب ته وویل چې یاخو محمد صلی الله علیه وسلم اودهغه ملګري له دې څخه منع کړه چې زموږ بتانو ته ښکنځل وکړي اوبدیې ووایي اوکه نه مونږ به دده الله ته ښکنځل وکړو اوبد به یې وایونو الله ﷻ داایت نازل کړ: (وَلَا تَسُبُّوا الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

[1] - الکشاف ۳۹/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ دآیت ترپایه اوپه بل روایت کښې راځي چي مشرکانوویل: ای محمده یازموږ دخدایانوبدي مه وایه اوورته ښکنځل مکوه اویاموږ ستادرب بدي وایوورته ښکنځل کووبیادغه این نازل شو.[1]

تفسیر: بیرته خبره مشرکانو ته دالله ﷻ دمصنوعاتو اونادروتدبیرونو په هکله دلائلو ویلوته راوګرزیده نوالله وفرمایل: ﴿إِنَّ اللَّهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ﴾ بیشکه الله (چوونکی) څیرونکی د دانې دی (په ایستلو دډکی سره) اودزړي دی (په ایستلودنیالګی سره) یعني دانه ترمځکی لاندی چووي چي زرغونه شي اوزړی (مندته) چوو ي (څیري) چي نیالګي څیني راووزي قرطبي وايي چي مړه مندته (زړی) څیري چي زرغونه پانه څیني راووزی اوهمداراز دانه زرغونوي (۲) ﴿يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ﴾ (راباسی ژوندي له مړي اوایستونکی دمړی دی له ژوندي) یعني تازه نبات له وچي دانی رازرغونوی اووچه دانه له ژوندی وده کونکی نبات څخه پیداکیږي ابن عباس (رض) وايي معنا داچي مومن له کافرنه اوکافر له مومن څخه زیږ وي پدي اعتبار نوژوندي اومړی له مومن اوکافرڅه استعاره شوي دي ﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ دغه (ژوندي کونکی اومړکونکی) الله دی نو کوم طرف ته ګرزولی شي تاسی؟ دالله له عبادت څخه وروسته له دغه حقه بیا ن څخه ﴿فَالِقُ الْإِصْبَاحِ﴾ چونکی درڼا دسبادی (له تاریکیوڅخه) طبري وايي دسپیدوستنی یې دشپي له تیاروڅخه وچودلی (۴) ﴿وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا﴾ اوګرزولي یې ده شپه ارام ځای چي خلک له حرکاتو څخه سکون پکښې مومي اواستراحت کوي ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا﴾ او(ګرزولی یې دی) لمراوسپوږمي (نښی د)حساب (دپاره د اوقاتو) چي دخلکو مصالح پکښې دي اوشپه ورځ اودزمانې حساب ورباندي کیږي. ﴿ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ﴾ دغه (ذکرشوي شیان) اندازه کول دي دښه غالب (ذات اوښه عالم) یعني دغه ګرزول په معلوم حساب باندي دغالب اوتوانا خدای تقدیر دی هغه چي هیڅ څیز ترهغه لوړنه دي اوهمدا ذات دخلکو په مصلحتونو ښه خبردار اوتدبیرلرونکی دی ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ اودغه (الله) همغه (ذات) دی چي پیداکړي یې دي تاسي ته ستوري لپاره د دې چي لاره ومومی دهغو (په وسیله) سره په تیارو دبراوبحر کښې ( کله چي تاسو په سفروان یاست اوکله چي یې په دوي باندي دستورو اوکواکبوپیرزوینه وکړه ددي لپاره چي په بیدیا اوسمندرکښې سفرکونکي ورباندي لاره وموهي اوخپلو مقصدونوته ورسیږي ﴿وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ اودغه (الله ) هغه ذات دی چي

---

[2] - القرطبي ۶۲/۷.
[1] - اسباب النزول ص ۱۲۷.
[3] - القرطبي ۴۴/۷.
[4] - الطبري ۵۵۴/۷.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



پيدا كړي يې تاسي (ټول) له نفس يوه څخه (چي ادم عليه السلام وو) ﴿ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ﴾ نو (شته تاسي ته يو (ځاى دقرارى اويو ځاى دامانت ابن عباس (رض) وايي چي دقرارى ځاى په ارحامو كښې اودامانت ځاى په شاګانو (اصلابو) كښې يعني تاسوته ذسيندو په ارحاموكښې دقرارى ځاى اودپلرونوپه شاګانو كښې دي ابن مسعود (رض) وايي چي دقرار ځاى په ارحامو كښې اودامانت ځاى په ځمكه كښې

چيري چي هلته مړكيږي ([1]) ﴿ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ ﴾ په تحقيق ښكاره بيان كړي دي مونږ ايتونه له پاره دهغه قوم چي پوهيږي (اسرار اودقائق ورته معلوم دى) صاوي وايي چي دلته يې په

﴿ يَفْقَهُونَ ﴾ سره تعبير وفرمايل ددې لپاره چي دلته دانساني پيدا ايښت مختلف اړخونه اوداسي هيښونكى (حيرانونكى) حالات يادشوي چي عقلونه ورته هک پک حيرانيږي اودستورو حال خو څرګند اوښكاره دي ځكه يې په (يعلمون) كلمه ارشاد وكړ.([2]) ﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهِ

نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ اودغه (الله) هغه (ذات) چي نازلى كړي يې دي له (طرفه د) آسمانه اوبه نو راايستلى دى مونږ پدي (اوبو) سره زرغونه دهرشي (زرغونيدونكى) يعنى غلې، دانې، ميوې، واښه ونى اونورنباتات مودا سمان دباران داورښت له امله راټوكولي دي طبري وايي چي د (اخرجنا) معنى داچي په

هغه موراايستلي دي ټول هغه چي زرغونيږي اووده كوي سميږي ([3]) ﴿ فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا ﴾

نوراايستلي دي مونږ له هغه (زرغونه) څخه شين كښت ﴿ نُخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُتَرَاكِبًا ﴾ چي بياراباسو له دي (شنه ډكي) څخه داني يو په بل سوري (لكه وږي) د اوربشى، غنم اونورو ابن عباس (رض) وايي چي

دلته دغنم، اوربشي، جوارى او ږدن، وريجى اراده شوى ده ﴿ وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ ﴾ اوراباسو له (جنسه) دخرما څخه (داسى خرماچي راووزي) له لومړي وږي دهغي څخه وږي نږدى ځمكي ته چي اسانه ترلاسه كيږى ابن عباس (رض) وايي چي مراد له دې څخه وږي اواوښكي دي چي دټولونكى لپاره

مځكي ته نږدي راځوړند وي ﴿ وَجَنَّاتٍ مِنْ أَعْنَابٍ ﴾ اوراباسو باغونه له انګورو (داوبو په سبب) ﴿ وَالزَّيْتُونَ

وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ﴾ اوراباسو (دغه رنګه په اوبو سره) دزيتون اوانار (ونى) پدي حال كښې چي يودبله سره مشابه وي (په پاڼو اومنظر كښې) اونه وى متشابه (بلكه بيل وي په خوند كښې) قتاده رضى الله عنه وايي چي بني اوپاڼي يې يورنګه وي خوميوه يې يورنګه نه وي اوپدى كښې قاطع دليل دي چي الله صانع مختار اوعليم القدير دي

[1] - دمستقر تفسير په استقرار سره هم شوي دى چي دځمكي په سريې معناده اومستودع ترځمكى لاندي ته وايه شى اوطبرى عامه معنى غوره كړي ده.

[2] - حاشية الصاوى على الجلالين ٢/ ٣٤.

[3] - الطبرى ١١/ ٥٧٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ انْظُرُوا إِلَىٰ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ وَيَنْعِهِ ﴾ وګورئ تاسي طرف دميوې دهغې ونې ته کله چې ميوه ونيسي اوپوخوالې دهغه ته چې څرنګه له يوه حالته بل ته ليږدي يوځلې رنګ څه ډول وي اوبيا يې څرنګه ؟ بيا بل ځلې څه ډول غوره کړي کوچنيوالې اولويوالي ته يې وګورئ او دا سوچ وکړئ چې په لومړي سر کښې څرنګه ميوه ځيني تروه اوځينې ترخه وي هيڅ ګټه ورڅخه نشي اخيستل کيداى خوکله چې پخه شي خوږه ،خوندوره ،ګټه وره اوښائسته شي فسبحان القدير الخلاق ! ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ (بيشکه په دغه (تيروتولو ) کښې خامخا دلائل د (قدرت اووحدت) دي لپاره دهغه قوم چې ايمان لري يعنی په پيدا ښت اودغه ميوو اوکښتونوسره له اختلاف درنګونو، جنسونو اواشکالو کښې دالله په قدرت اووحدانيت ښکاره دلائل شته دهغه چالپاره چې دالله په وجود تصديق کوي ابن عباس (رض) وايي چې دوي باورکوي څوک چې دغه نبات يې رايستلي پدي قادر دی چې مړی هم راژوند ی کړي ([1]) ﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ الْجِنَّ ﴾ اومقرر کړي دي (کفارو ) الله ته شريکان جنيان (پيريانان) چې دبتانو په عبادت کولو کښې يې ددوي پيروی کړي ده ﴿ وَخَلَقَهُمْ ﴾ اوحال داچې پيدا کړي دی (الله ) دغه (جن) نوڅرنګه يې دوی ورسره شريکان کوي ؟ داخوبيخي زيات حماقت اودجهالت وروستي سرحد د ی ﴿ وَخَرَقُوا لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ اوتړي لپاره دالله زامن اولوڼي بی له علمه (په جهالت سره ) چې دوی وايي عزير دالله زوی اوپرښتي دالله لوڼي دي داټول ويل په جهل اوسفاهت سره کوي ﴿ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ پاکي ده الله لره (له ټولو عيبونو )اوډير پورته دی (شان دده ) له هغو (بدو ) خبرو چې بيانوي (يی ورته )دوی ﴿ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ (الله )بې نمونې پيداکوونکی داسمانونواوځمکي دی ﴿ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُنْ لَهُ صَاحِبَةٌ ﴾ څرنګه به وي ده ته زوي ،لورحال داچې نشته ده ته هيڅ ښځه ؟ (اوزوزات خوله ښځي څخه زيږي) ﴿ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴾ اوپيدا کړی دی (الله) هرشي اوهم دی پرهرشي ښه عالم دی اوڅوک چې همداسي وی هغه له هرڅه څخه بې پروا اوغنی دي په تسهيل نومی کتاب کښې وايی چې دلته په هغه چاچې دالله لپاره يې دولد نسبت کړی دي له دوو وجهو څخه ردشوي دي يوداچې ولدبه اورمرو دپلار له جنس څخه وي اوالله ﷻ له هم جنسو څخه پاک اومنزه دی ځکه هغه ټول څه پيداکړي اوخالق دی نوداسمه نه ده چې اولاد دی ورته منسوب شی دوهم داچې الله ﷻ اسمانونه اوځمکي پيداکړي څوک چې داسی وي هغه له ولد اوهرڅه څخه غني اوبې-پروا وي بيا الله تعالی په خپل وحدانيت ټينګارکوي چې همغه ذات په خلق اوايجاد کښې يوازی اولاشريک د ی فرمايي: ﴿ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ همدغه (ذات موصوف پدغو صفاتوسره ) الله دی رب ستاسي نشته هيڅ معبود (برحق) مګرهم دي دي ﴿ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ ﴾ پيداکوونکی دي دهرشي (اوڅوک

[1] تفسير الجوزی ۳/۹۶.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي همداسي وي هغه يوازي دعبادت وړدي ) نوعبادت کوي ددغه (الله يوازي ) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴾ (اوهم دی پرهرشي وکيل (ساتونکي کارجوړونکی )دی خپل ټول کارونه هغه ته وسپاري اويوازي دهغه عبادت وکړي ﴿ لَّا تُدْرِكُهُ ٱلْأَبْصَٰرُ وَهُوَ يُدْرِكُ ٱلْأَبْصَٰرَ ﴾ نشي موندلی (احاطه نشی کولاي )پرالله سترګې اوالله مومي سترګې (ويني يې) ځکه دهغه علم شامل اوخفيات پټ رازونه هم ورته څرګند د ي ﴿ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلْخَبِيرُ ﴾ (اوهمدی نهايت لطيف ښه خبرداردی ) يعني پخپلو بندګانولطيف اودهغوي په مصلحتونو خبرداردي ابن کثير وايي چي نه موندل دسترګو الله لره :په خانګړي توګه هغه دقيامت په ورځ ليدل نه منع کوي ځکه الله ﷻ به په هغه ورځ خپلو مومنو بندګانو ته چي څرنګه غواړي هسی ديدارورکوي چي رؤيت به يې وکړي اودالله ﷻچي څرنګه جلال اوعظمت دي سترګي له سره هغه نه شي احاطه کولاي ځکه به نو حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها په اخرت کښې دالله ﷻ رؤيت اوپه دنيا کښې دالله ﷻنه ليدل ثابتول اوپه تير آيت سره به يې دليل وايو[1] ﴿ قَدْ جَآءَكُم بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ ﴾ (ووايه ای محمده دوي ته )په تحقيق راغلی دی تاسي ته واضح دلائل له طرفه درب ستاسی چي هدايت اوګمراهي ،حق اوباطل سره بيل کړی زجاج وايي چي معنا يې داده تاسوته قرآن راغلي چي بيان اودلائل پکښې دي[2] ﴿ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ عَمِىَ فَعَلَيْهَا ﴾ زمخشری وايي چي معنايې داده څوک چي حق ووينې اوايمان ورباندې راوړي نودځان لپاره يې وليدل اوځان ته يې ګټه ورسوله اوڅوک چي ځان ړوند کړي اوليدنه نکوي نوځان يې زوند اوپدې ړوندوالی يې ځان ته تاوان ورساوو[3] ﴿ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ ﴾ (اونه يم زه پرتاسي ساتونکی) يعني زه پرتاسو څارونکی اوساتونکی نه يم بلکه زه رسول الله اوستاسو لپاره له عذابه ويرونکی يم پرتاسو څارونکی اوساتونکی يوازي الله تعالی دی ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ ٱلْءَايَٰتِ ﴾ اوهمداسي راز راز بيانوو مونږ آيتونه (دقدرت خپل دعبرت لپاره) ﴿ وَلِيَقُولُوا۟ دَرَسْتَ ﴾ اولپاره ددې چي ووايي دغه (کفارچي ) لوستلي زده کړي دي تا (له بل چاڅخه ) (يادي په کتابونوکښې لوستلي اوبيا دي دغه قران راوړی.لام د عاقبت لپاره دي ﴿ وَلِنُبَيِّنَهُۥ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ اولپاره ددې چي واضح بيان کړو داقرآن لپاره دهغه قوم چي پوهيږي (په حق اوپلوی يې کوي ) ﴿ ٱتَّبِعْ مَآ أُوحِىَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ﴾ پيروی کوه (ای محمده !) دهغه حکم (قرآن )چي وحې کړی شوي دي تاته له رب ستا څخه قرطبی وايي يعني داچي خپل خاطر اوزړه ددوي په هکله مه مشغوله کوه بلکه دالله ﷻ په

[1] -مختصر ابن کثير ۱/۶۰۵.
[2] -تفسير ابن الجوزی.
[3] -الکشاف ۲/۴۳.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عبادت مشغول شه !(١) ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ نشته هیڅ لائق دعبادت مګر هم دي دی ﴿ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ اومخ وګرځوه له مشرکانو (په خبرو یې پروامکوه اوداعتبار وړیې مه بوله) ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشْرَكُوا۟ ﴾ اوکه اراده فرمایلي یې الله د(عدم شرک ددوي ) نوشرک به نه وي کړي دوي ) خوالله ﷻ هغه څه کوی چي اراده یې شي ﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾ الأنبياء: ٢٣ ﴿ وَمَا جَعَلْنَٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ﴾ (اونه یې ګرزولی مونږ ته پردوی ساتوني ) چي ددوي داعمالو جزاورکړي ﴿ وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ ﴾ اونه یې ته پردوي وکیل دارزاقو اوامورو ددوي ،صاوي وایي چي دغه پخواني حکم تاکید دی معنایې داچي ته پردوي ساتونکی اوڅارونکي نه یې چي په ایمان یې مجبورکړي اودغه حکم دجهاد ترفرضیت پخواوو(٢) ﴿ وَلَا تَسُبُّوا۟ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ اوښکنځل مکوي (ای مؤمنانو ) هغو (معبودانو) ته چي عبادت کوي (دغه کفاردهغو ) بی له الله نه ﴿ فَيَسُبُّوا۟ ٱللَّهَ عَدْوًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ نوښکنځل به وکړي دوی (هم )الله ته (په ناحقه سره )له جهالته څکه دوی دالله ﷻ په عظمت نه پوهیږي ابن عباس(رضی) وایي چي مشرکانوبه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ویل یازمونږ بتانو ته بدردمه وایه اوکه نه مونږ بیا ستارب ته ښکنځل کوو نوالله ﷻ مومنان دبتانو له ښکنځل کولو منع کړل(٣) ﴿ كَذَٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ﴾ په شان ددغه (ښائست دعبادت دبتانو دو ي ته )ښائسته کړي مونږهرامت ته عمل ددوي ابن عباس وایي چي پرهیزګارانو ته یې طاعت ښائسته کړی کافرانو ته یې کفر ښائسته کړي دي ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِم مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ بیارب ددوی ته بیاورتګ ددوي دی (په آخرت کښې) پس خبربه کړي (الله) دوی په هغه شي چي دوي به کول (په دنیاکښې اوورباندي یې جزابه ورکړي) دغه دجزااوعذاب په هکله وعید اوتهدید د ي ﴿ وَأَقْسَمُوا۟ بِٱللَّهِ جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ ﴾ (اوقسمونه خوري دغه کفار (په الله) باندي په ډیروسختوقسمونو خپلوسره )یعني دغه دمکي کفارخوراسخته قسمونه خوري ﴿ لَئِن جَآءَتْهُمْ ءَايَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ﴾ چي خامخاکه چیري راغله دوي ته هغه معجزه (چي دوي یې غواړي )نوهرومرو به پري ایمان راوړي ﴿ قُلْ إِنَّمَا ٱلْءَايَٰتُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته !) بیشکه خبره داده چي معجزه په نزد دالله دي یوازي هغه دمعجزی په څرګندولو قادر دي زه نه یم ﴿ وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَآ إِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ اوڅه شي خبرکړي یاست تاسي (ای مومنانوبلکه ناخبره یې چي ) بیشکه دا(مطلوبې) معجزی کله چي راشي (دوی ته بیاهم )دوي ایمان نه راوړي ﴿ وَنُقَلِّبُ أَفْـِٔدَتَهُمْ وَأَبْصَٰرَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا۟ بِهِۦٓ أَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾ اواړوو مونږ

---

١ - القرطبی ٦٠/٧.

٢ -حاشية الصاوی عل الجلالين ٣٧/٢.

٣ -ابن کثیر٦٠٧/١.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



زړونه ددوي (له قبلولو دحق اوسترګي ددوي (له ليدلو دحق نه نو ايمان نه راوړي )لکه چي ايمان يې نه دي راوړي (په نورومعجزاتو ) لومړي ځل ، صاوی وايي چي دغه استئناف اوددي لپاره راوړل شوی چي داخرګندکړي چي دهدايت اوضلالت خاوند يوازي الله ﷻ دي چي دچادهدايت اراده وفرمايي زړه يې هغه لوري ته وګرزوی اوچي دچادبدمرغي اوشقاوت اراده يې وشي زړه يې هغه لوري ته وګرزوي [1]

﴿وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَـٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ﴾ اوپريږدو مونږ دوي په ګمراهي ددوي کښې حال داچي دوي حيران اومترددان دي.

بلاغت:

۱-(يُخْرِجُ ٱلْحَيَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ ) پدې کلمي کښې دطباق صنعت راغلي دي همدارازپه آيت شريف کښې يوبل بديعي صنعت هم شته چي هغه ته (رد العجزعلى الصدر )وايي ځکه په آيت شريف کښې داسي راځي (وَمُخْرِجُ ٱلْمَيِّتِ مِنَ ٱلْحَيِّ ).

۲-(فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ) استفهام انکاري دي اودنفي په معنا راغلي يعني ددليل له راتلو وروسته هيڅ دمخ اړولو وجه نشته.

۳-پدې آيت شريف کښې چي فرمايي :( فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ )پدي کښې التفات دي اصل خوداوو چي فرمايلي يې وايي: (فاخرج به) اوباريکي پکښې داده چي دغه دراوتلي شيانو په هکله پاملرنه اودنعمتونو دډيروالي اوستروالی ښرګندونه وشي.

۴-(وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلرُّمَّانَ )دغه عطف دخاص په عام باندي د ي چي زيات شرف يې ښکاره شي اودغه دواړه له سترو نعمتونوڅخه دي.

۵- پد ې کلماتوکښې چي فرمايي:( بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ ) مرسل مجاز دی اوتسميه د سبب په اسم دمسبب سره راغلي ده يعني هغه دلائل اوبراهين چي تاسو دهغو ي سبب حقويني اوحقائق ليدلي شي.

۶-ددي ددوولفظونوچي فرمايي:(أَبْصَرَ و عَمِيَ ) ترمنځ طباق اوهمدارنګه د (بصائر ،أبصر) ترمنځ اشتقاقی جناس دي.

تنبيه: دالله ﷻ پدي قول کښې چي فرمايي ( لَّا تُدْرِكُهُ ٱلْأَبْصَـٰرُ ) داحاطي نفي راغلي اودروَيت نفي نشته ځکه الله ﷻ هسي ندي فرمايلي چي (لاتراه الأبصار) نوهغه چاچي په آخرت کښې دالله ﷻ دعدم رؤيت عقيده خپله کړي لکه معتزله فرقه نودوي له حق څخه تجاوز کړي اولاز ځيني ورکه شوي ده ځکه په کتاب الله اومتواتر سنت درسول الله کښې ددې خبرې اثبات شته چي په قرآنکريم کښې فرمايي (وجوه يومئذ ناضرة الى ربها ناظرة) اوپه حديث کښې هغه چي امام بخاري روايت کړي فرمايي: (سترون ربکم کماترون هذ ا القمر لاتضا مون فی رؤيته ...) اوکتاب الله اوسنت درسول الله ښه دليل اولارښوونکی دي.

[1] -حاشية الصاوي على الجلالين ۳۹/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ ﴿١١١﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا ۚ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ ۖ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿١١٢﴾ وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُم مُّقْتَرِفُونَ ﴿١١٣﴾ أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ۚ وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ مِّن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ ۖ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ﴿١١٤﴾ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ۚ لَّا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿١١٥﴾ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿١١٦﴾ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١١٧﴾ فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كُنتُم بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ ﴿١١٨﴾ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ﴿١١٩﴾ وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ﴿١٢٠﴾ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ۗ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ ۖ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴿١٢١﴾ أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ۚ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكَافِرِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٢﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا فِيهَا ۖ وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿١٢٣﴾ وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ ۘ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٤﴾ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ۖ وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢٥﴾ وَهَٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٢٦﴾ ۞ لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ عِندَ رَبِّهِمْ ۖ وَهُوَ وَلِيُّهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٧﴾ ﴾ الأنعام: ١١١ – ١٢٧

مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی د توحيد، نبوت او بعثت دلائل وړاندې کړل او همدا ډول د مشرکينو ځينې وړاندېزشوې معجزې يادونه يې وکړه نو دلته يې دا وفرمايل چې د معجزاتو ليدل د هغه چالپاره چې زړه يې د منلو ديد نلري څه ګټه نه رسوي او که چيرې هغه دوی ته هغه معجزاتې ... هم را واستوي چې دوی غوښتې لکه د پرښتو نازليدل، د مړو ژوندي کول څوورسره خبرې وکړي او دا رنګه د ځزنده ګانو او پرندګانو را غونډول چې په ښتنولي د پيغمبرې شاهدي ورکړي بيا هم دوی په رسول الله او قرآنکريم باندې ايمان نه راوړي ځکه ضلالت او ګمراهي يې په ځته کښې اغښل شوې ده.

Bawar.net



## لغتونه:

(قُبُلًا) مخامخ اوله دي څخه داهم راغلي چي وايي (اتيتک قبلا لادبرا) زه مخامخ درته راغلي وم نه دشاله لوري (وَحَشَرْنَا) راټولول اوراوستل يې معني ده هرې ټولي ته حشر ويل کيږي لکه (فحشرفنادي) (زُخْرُفَ) زجاج وايي: چي زخرف زينت ته وايي اوابوعبيده وايي چي هرهغه شي چي ته يې ښائسته اومزين کړي خوهغه باطل وی ورته مزخرف ويل کيږي (وَلِتَصْغَىٰ) د(صغي) معنا يوشي ته ميل کول دي اوپه حديث شريف کښې راځي (فاصغى اليه الاناء) يعني لوښي يې ورته مائل کړ(مُقْتَرِفُونَ) کسب کولو ته وايي اوډير خله دشرپه کارونوکښې استعماليږي لکه چي وايي (اقترف بذنب) يعني گناه يې وکړه(يَخْرُصُونَ) دروغ وايي ازهری وايي چي اصل يې هغه گومان ته وايي چي يقين ورباندي نه کول کيږي[1] (صَغَارٌ) ذلت اوسپکتياته وايي (يَشْرَحْ) سپړلو او پراخولو ته وايي (حَرَجًا) خوراتنگ اوضيق ته ويل کيږي ابن قتيبه وايي حرج هغه تنگسياته وايي چي دوتلو منفذونلري.[2]

### دنزول سبب:

ابن عباس (رض) وايي چي يوه ورځ ابوجهل ملعون حضرت محمد مصطفیﷺ په پليتۍ وويشت چي ناڅاپه حضرت حمزه رضی الله عنه درسول الله کاکاچي هغه وخت لامسلمان شوي نه وو له ښکار څخه راستيندلو چاورته دغه (خورونکي) پيښه بيان کړه نوهغه په قهر سره راغي اوپه ابوجهل يې دغيشي لينده ونيوه ابوجهل ورته ويل ته نه گوری چي هغه زمونږ خدايانوته ښکنځل کوي ؟زمونږ پرعقلونو پسي خاندي اودپلرونومخالفت کوي !حضرت حمزه (رضی الله عنه) ورته ويل ترتاسو بی عقل لاڅوک دي ؟ تاسودډبرو عبادت کوی اودالله ﷻعبادت موپرې ايښي دي (اشهدان لااله الاالله وأشهدان محمداً عبده ورسوله) بيا الله ﷻ داايت نازل کړ(أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكَافِرِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ)[3]

### تفسير:

﴿ وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ ﴾ اوکه بيشکه مونږ راليږلي واي (دغوکفاروته )(په غوښتنه ددوي )پرښتي ،اوخبري کړي واي له دوي سره مړودغه دمشرکانو ددروغو بيان دي چي قسمونه به يې خوړل (لئن جاء تهم اية ليومنن بها) معناداچي که چيري ټولي هغه ددوي غوښتل شوي معجزي ورته څرگندي هم کړو چي پرښتي ورته راکوزي کړو مړي ورته راژوندي کړو اوله دوي سره خبري وکړي دپيغمبر عليه السلام په رښتنولي شاهدي ورکړي ﴿ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا ﴾ اوجمع کړی دي مونږ دوی

---

[1] -تهذيب اللغة مادة خرص.
[2] -غريب القران ١٦٠ .
[3] -اسباب النزول ص ١٢٨.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ته هرشي مخامخ (له ټولو مخلوقاتو څخه څرګند او عيان ﴿ مَّا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ﴾ نو نه به وو دغه (کفار) چي ايمان راوړي (په هيڅ وخت کښې) مګر (په وخت) دارادي فرمايلو دالله (دايمان ددوي) يعني که دغه ټولي وړانديز شوي معجزې هم ورکړو دوي به ايمان نه راوړي او غرض له دې څخه ددوي له ايمان راوړلو څخه دمسلمانانو ناهيلي کول دي. ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ ﴾ ليکن زيات ددوي (مشرکانو) جاهلان دي طبري وايي چي دوي پدي نه پوهيږي چي دايمان راوړلو واک دالله ﷻ په اراده کښې دي هغوي داسي ګومان کوي چي ايمان ددوي په لاس کښې دي کله چي وغواړي ايمان به راوړي بلکه دغسي نه ده الله ﷻ فرمايي چي دايمان راوړل زما په اراده دي چاته چي اراده وفرمايم ايمان ته يې هدايت کوم او چاته چي دضلال اراده وکړم هغه کافر کوم(١)﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ ﴾ او همداسې ګرزولي (پيداکړي) وو موږ هرنبي ته دښمن شيطانان دانسانانو او پيريانانو) يعنی لکه څرنګه چي مې دغه مشرکان ستا دښمنان ګرزولي چي ستامخالفت کوي دښمني ته دي ولاړدي همداسی مې دپخواينو پيغمبرانو لپاره انسي او جني شيطانان ګومارلي وو نو ته هم داسي زغم او صبر وکړه لکه چي هغو پيغمبرانو کاوو(ابن جوزي وايي معنايې داده :لکه چي تاته مې په دښمنانو ازمويښت او ابتلاء درکړي همداسي مې نورو نبيانو ته هم ورکړي وه ترڅو چي په ربړونو او تکاليفو صبر وکول ستر ثواب ورپه برخه کړئ ﴿ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا ﴾ (ورښوول (وسوسه به يې اچوله ) ځينو ددوي ځينو نوروته ښائسته کړي شوی خبري لپاره دغولولو) يعنی دشر او ګمراي وسوسې ځينی ځينو نورو ته وراچولی چي دخلکو دخطا ايستلو لپاره ښائسته شوي خبري وي مقاتل وايي چي ابليس دانسانانو لپاره شيطانان مقرر کړي چي ګمراه يې کړي کله چي انسی شيطان له جني سره يو ځای شي يو بل ته وايي چي ما خو خپل ملګري پداسي داسي اباطيلو ګمراه کړنو ته دي خپل ملګري په دغه دغه ناروا وو اخته او ګمراه کړه دغه دځينو ځينو نوروته وحي او ښودل دي (٢ ) ﴿ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ ﴾ (او که اراده فرمايلی وي رب ستا نو نه به وو کړي دوي دا(کارونه چي باطله وحی او غرور دي )يعنی که الله اراده کړي واي نو دوي به ددغو نبيانو عداوت نه کاوو خو دالله حکمت داغوښتی چي دا ابتلاء ترسره شی ابن کثيروايي داټول دالله تقدير او ازمويښت دي چي هرنبي لره دی له دغو کسانو څخه دښمنان و ي﴿ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴾ (پس پريږده دوي او هغه چي دوی له ځانه دروغ جوړه و ي )يعني دوي پريږده او دچل اوول تدبيرونه يې چي الله ستا لپاره مرستندوي او کافي دي ﴿ وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ﴾ (او لپاره ددې چي ميل وکړي دي دروغو ته زړونو دهغو کسانو چي ايمان نه راوړي په اخرت (قيامت) باندي) يعنی ددي لپاره (دوي پريږده )چي دغه مزخرف قول ته ددغو کافرانو چي په قيامت ايمان نلری زړونه مايل شي ﴿ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُم

---

١ -الطبری ۴۷/۱۲.
٢ -تفسير الجوزی ۱۰۹/۳.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ مُنَزَّلُونَ ﴾ اولپاره ددې، چې خوښ کړی دادروغ اودپاره ددي چې وکړي دوي (له گناهونو ) هغه چې دوي يې کسب کونکي دي﴿ أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا ﴾ ايا پس پرته له الله وغواړم زه حکم کونکی عادل (چې زمااوستا سوپه مينځ کښې فيصله وکړي) يعنی ورته ووايه ای محمده ؟ ابوحيان وايي چې دقريشو مشرکينو رسول الله صلى الله عليه واله وسلم ته وويل :ای محمده ! راشه زموږ اوستاترمينځ به ديهودو اويانصاراووکوم منځگړي قاضي وټاکوچې مونږته په هغه هکله بيان وکړي چې ستاپه باب ددوي په کتابونو کښې راغلي دي له هرې ډلې چې ستاخوښه شي غوره يې کړه نودا تيرشوي ايت نازل شو(١)﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ﴾ حال داچې دغه (الله )هغه (ذات دي)چې راليږلی دی تاسی ته کتاب (قران) حال داچې واضح کړي شو يدي پکښې (حق اوباطل ،هدايت اوضلالت )﴿ وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ مِّن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ ﴾ اوهغه کسان چې ورکړي دی مونږدوي ته کتاب پوهيږي دوی چې بيشکه دا(قرآن )رانازل شوي دي له (لوري د ) رب ستاپه حقه سره يعنی ديهودوعلماء پوهيږی چې دغه قرآن حق دی ځکه ددوی په کتابونو کښې يې تصديق شوی دي ﴿ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ﴾ نومه کيږه ته (ای سامعه )له شک کونکوڅخه ابوالسعودوايي چې دغه خبره دتهيج اوپاروني لپاره راغلي اوچابياويلي دي چې خطاب رسول الله ته دي اومراد خنې دهغه امت دي (٢) ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ﴾ اوتمامه شوي ده خبره درب ستاله جهته دريښتينوالی اوله جهته دعدل يعني دهغه دخبرې صدق اوريښتنولی اوداحکاموعدل کمال ته رسيدلی دي اخبارې ريښتونی اوقضاء قدريې په عدل اوانصاف دي)﴿ لَّا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ ﴾ نشته هيڅ بدلونکی دالله دخبرو ) يعنې نه يې حکم بدليږي اونه يې قضا اوفيصله بيرته اخيستل کيږي ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ اوهمدي د ي ښه اوريدونکي ښه خبردار دبندگانوخبري اوری په احوالوېې پوهيږی﴿ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ اوکه متابعت وکړي ته دزياتره هغو کسانوچې په ځمکه کښې دي (له کفارو جهالوڅخه ) نووابه اړوي تا(ای محمده ) له لاري دالله طبری وايي چې دايي وفرمايل(اکثرمن فی الارض) ځکه اکثر هغه وخت گمرهان کفاروو معناداچې ددوي بلني پيروي مکوه اوکه چيرې دې وکړه ددوي په گمراهي به ککړشې ځکه دوی تاسمي لاري ته نه بولی هغوي سمه لاره خطاکړي ده (٣) ﴿ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴾ (اونه کوي دوي پيروی مگردگومان اونه دي دوي مگردروغ تړی پرالله ) يعنی دوي ددين په امورو کښې داوهامواوگومانونو پيروي کوی پخپلو پلرونو پسي روان دي دوي سوچ کو ي چې هغه پرحقه لاره تللي خودادروغ د ي ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴾ بيشکه رب ستاهم دی ښه

---

[1] -البحر المحيط/٦/٢٠٦
[2] -ابو السعود ٤/٢٧٤.
[3] -الطبری ١٢/٦٤.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عالم په هغه چاچي ښوئيدلي دی له لاري دده اوهم دي ښه عالم دي په سمي صافي لاري موندونکوباندي په البحر المحيط کښې وايي چي دغه خبريه جمله په وعد اوعيد مشتمله ده ځکه چي دالله ﷻ پوهه په گمراه اومهتدي دواړو باندي دهغوي له مجازات کولو څخه کنايه راغلي د ي(١)﴿ فَكُلُوا۟ مِمَّا ذُكِرَ ٱسْمُ ٱللَّهِ عَلَيْهِ إِن كُنتُم بِـَٔايَـٰتِهِۦ مُؤْمِنِينَ ﴾ نوو خوري تاسی له هغي مذبوحې څخه چي يادکړی شوی وي نوم دالله ورباندي که تاسي پرآيتونو دالله ايمان لرونکی يی ابن عباس (رض) وايي چي مشرکانو به مؤمنانوته ويل:تاسی گومان کوی، چي دالله ﷻعبادت کوي نوهغه چي الله وژلي وی (مړزگه)هغه نه خوري اوچي پخپله يې ووژني (مذبوحه)هغه خوری، ترديد هغه دالله وژلي دخوراک وړدي نوبيادغه ايت نازل شو(٢)

﴿ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا۟ مِمَّا ذُكِرَ ٱسْمُ ٱللَّهِ عَلَيْهِ ﴾ اوڅه مانع دي تاسي ته چي نه خوري تاسی له هغي مذبوحې څخه يادکړي شوی دي نوم دالله پرهغي (په وخت دذبحي کښې)؟﴿ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا ٱضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ ﴾ حال داچي تحقيق واضح (ځرگند ) کړی دي (الله) تاسي ته هغه چي حرام کړی دي پرتاسي (اودغه مذبوحه باسم الله له هغه څخه نه ده ) مگرهغه محرمات چي اړکړي شوی ياست تاسي (خوراک د ) هغوته (نوهغه هم حلال دي ) نوتاسي ولي شبهاتو اوشائعاتو ته غوږنيسي کوم چي کافران يې خوروي ؟﴿ وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَآئِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ (اوبيشکه ډيرله خلکو خامخاگمراه کوي (خلک په تحليل اوتحريم) په ارزوگانو خپلوپه جهل اوناپوهي سره) يعني ډيرله دغوکفارو شخړه کونکوڅخه داسي دي چي حلال حراموي اوحرام حلالوي داټول پرته دالله له شريعت څخه اويوازی دخپلو هوسونواوخواهشاتو په سبب﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِٱلْمُعْتَدِينَ ﴾ بيشکه رب ستاهم دي ښه عالم دی په تيريدونکو له شرعی حدودو څخه ، هغوي چي تحليل اوتحريم له شريعت څخه پرته پخپله خوښه کوي اوپدي کښې دهغه چالپاره چي له شرعی حدودوڅخه تيريږي سخت وعيداوتهديد دي ﴿ وَذَرُوا۟ ظَـٰهِرَ ٱلْإِثْمِ وَبَاطِنَهُۥٓ ﴾ اوپريږدی تاسی ښکاره اوپټه گناه (يعنی مطلقاً گناه پريږدي هغه که پټه وي که ښکاره)مجاهد وايي معناداچي په پټه اوښکاره گناه کول پريږدي السدی وايي چي ځرگنده گناه له زانياتوسره زناکول (دفحشاءپه مرکز ونوکښې) اوپټه گناه له پټواشنايانو سره زناکولو ته وايي﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْسِبُونَ ٱلْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا۟ يَقْتَرِفُونَ ﴾ بيشکه هغه کسان چي کسب کوي دگناه (په پټه يابښکاره )ژربه سزا ورکړه شي (په آخرت کښې) دوي ته په سبب دهغوگناهونوچي دوي به کول﴿ وَلَا تَأْكُلُوا۟ مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ ٱسْمُ ٱللَّهِ عَلَيْهِ ﴾ اومه خورئ تاسي له هغي (مرداری) چي نه وي يادکړي شوی نوم دالله په هغي باندي (عمدا ) اوياهغه چي دبتانو نوم ورباندي يادشوی وي﴿ وَإِنَّهُۥ لَفِسْقٌ ﴾ اوبيشکه چي

---

١-البحر المحيط ٢١٠/٤.

٢-زادالمسير ١١٢/٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



داخوراک خامخا گناه ده (دالله له طاعت څخه وتل دي) ﴿ وَإِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰٓ أَوۡلِيَآئِهِمۡ لِيُجَٰدِلُوكُمۡ ﴾ اوبیشکه شیطانان خامخاوسوسې اچوي دوستانو خپلوته (چې کفاردي ) لپاره ددې چې جگړه وکړي (دغه کفار) له تاسې سره پدې ډول چې ورته وايي هغه چې تاسووژلی خوري اوکومه چې الله وژلي (مرداری )هغه نه خوری؟ ﴿ وَإِنۡ أَطَعۡتُمُوهُمۡ إِنَّكُمۡ لَمُشۡرِكُونَ ﴾ (اوکه اطاعت وکړی تاسی ددوي نوبیشکه تاسې به هم مخامخا مشرکان شی) یعنی که چیري موددغومشرکانو په حرام حلال گڼلو کښې پیروي وکړه اوله دوي سره موددوي داباطیلو په خپرولوکښې مرسته وکړه تاسوبه ددوي په شان شی! زمخشري وايي داځکه چې دلته دالله په دین کښې اتباع دغیرالله کیږي نوله الله ﷻ سره شریک ونیول شو بیا دبصیرت خاوند ته لازمه ده چې له هغه مذبوحې څخه چې دالله نوم وربانديي یادشوی نه وي هرډول چې وي هیڅکله هم خوراک ونکړي څکه سخت عظیم تشدید پکښې راغلي دي ﴿ أَوَمَن كَانَ مَيۡتٗا فَأَحۡيَيۡنَٰهُ ﴾ ایاهرڅوک چې وي مړ(په کفریاجهل) نوژوندي کړو مونږدی (په اسلام یاعلم سره) ابوحیان وايي کله چې دمؤمنانو اوکافرانو یادونه وشوه نوالله دمؤمن مثال دژوندی سره تشبیه کړهغه چې روښنايي لري هرچیري چې درومي اوکافر یې له هغه چاسره مشابه کړ چې هک حیران په تاریکیوکی ډوب وي ترڅو ددوي دواړو فرق څرگند شي ﴿ وَجَعَلۡنَا لَهُۥ نُورٗا يَمۡشِي بِهِۦ فِي ٱلنَّاسِ ﴾ (اووگرزوو (ورکړو ) مونږده ته نورچې تګ کوي دي پدې سره په خلکو کښې) یعني اوگرزولي دی مونږ ده ته سره له دغه هدایته ستر روښانه نورچې شیان وربانديي بیلولي شي اوحق له باطل څخه جلا کوي ﴿ كَمَن مَّثَلُهُۥ فِي ٱلظُّلُمَٰتِ لَيۡسَ بِخَارِجٖ مِّنۡهَا ﴾ په شان دهغه چادي چې حال دهغه (داسې وي چې واقع وي )په تیاروکښې حال داچې نه وي وتونکي له هغه (تورتم نه ؟) بیضاوي وايي دادهغه چالپاره مثال د ي چې په تیارو کښې واقع وي اوهیڅکله هم څیني نه وزي ([1]) ﴿ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلۡكَٰفِرِينَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ همداسې (لکه چې دوی تاریکیوکښې پاتې شوی ) ښائسته کړي شوي دی کافرانوته هغه شي چې دوي یې کوي (له شرک اوگناهونوڅخه ) ﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلۡنَا فِي كُلِّ قَرۡيَةٍ أَكَٰبِرَ مُجۡرِمِيهَا لِيَمۡكُرُواْ فِيهَاۖ ﴾ او(لکه چې موگرزولي په مکه کښې مشران چې حیلې کوي)همداسې گرزولی مونږ په هرښارکښې مشران فاسقان دهغه ښار دپاره ددې چې مکرونه وکړئ دوي په هغه کلیو(ښارونو ) کښې (چې فسادونه جورکړئ) ابن جوزي وايي څرنگه چې هرښار کښې فاسقان هغه مشران ددوي وي داځکه چې هغوي دخپلو ریاستونواوامکاناتو په سبب کفرته نژدې وي([2]) ﴿وَمَا يَمۡكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمۡ وَمَا يَشۡعُرُونَ﴾ اونه کوي مکرونه دوی مکرکه له خپلو ځانونوسره حال داچې نه پوهیږي دوی (چې وبال یې دوي ته راجع دي ) ﴿ وَإِذَا جَآءَتۡهُمۡ ءَايَةٞ قَالُواْ لَن نُّؤۡمِنَ حَتَّىٰ نُؤۡتَىٰ مِثۡلَ مَآ أُوتِيَ رُسُلُ ٱللَّهِۘ ﴾ (اوکله چې به راغي دوی ته کوم آیت (وحی)

---

[1] -البیضاوي ۱۸۱.

[2] -زادلمسیر ۱۱۷/۳.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



نوويل به دوي له سره مونږ ايمان نه راوړو (پدغې وحی) ترهغې پوري چي راکړي شي مونږ ته په شان دهغو آيتونوچي ورکړي شوی وو(نورو ) رسولانوداللہ ته ) يعنی کله چي دغومشرکينو ته دمحمد رسول الله صلی علیه وسلم درښتنولی په هکله قاطع دلائل اوڅرګند براهين راشي بياهم دوي وايي له سره به مونږ دده په رسالت ترهغو ايمان رانه وړو څوچي مونږ ته داسي معجزاتی راکول شي لکه چي پيغمبرانوته ورکول شوي وي په البحرالمحيط کښې وايي چي دو ي دغه خبره داستهزاء اوملنډو په توګه کوله که چيري يې باوردرلودي اودښمني يې نه کولی نودالله دپيغمبرانوپيروی به يې کړي وه اوروايت کيږي چي يووخت ابوجهل داسي وويل دعبدمناف زامنوله مونږ څخه شرافت يووړ آن تردي چي مونږ لکه دمسابقې دوه اسان غوندي شو دوي وايي په مونږ کښې نبی شته چي وحی ورته راځي قسم په الله چي دابه ونه منواونه به يې له سره پيروي وکړو ترڅو چي مونږ ته هم دغسی وحي راشی لکه چي دوی ته راځی نودا ايت نازل شو([1]) ﴿ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ﴾ الله ښه عالم (پوه) دي په هغه ځاي چي ږدي رسالت خپل هلته اودغه رنګه يې محمد مصطفی صلی الله علیه واله وسلم دپيغمبري لپاره غوره کړي دي اودمکي له نورومشرانولکه ابوجهل اووليد بن مغيرة څخه يې اعراض فرمايلی دي ﴿ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴾ ژربه ورسيږي هغو کسانوته چي مجرمان دي (په کفرسره ) سپکوالي (ذلت) په نزد دالله اوعذاب سخت په اخرت کښې په سبب دهغه چي وو دوي چي مکرونه به يې کول (له مؤمنانو ) سره په البحرالمحيط کښې راوړي چي ذلت اوسپکاوي يې ترعذاب دمخه څکه يادکړچي دوي په لومړي پيل کښې دپيغمبرله پيروي څخه سرغړونه وکړه چي ځان يې سترګڼل اوعزت کرامت يې غوښتل نو په سپکتيا اخته شول وروسته بيا په سخت عذاب واوښتل([2])

﴿ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ﴾ پس هرهغه چي اراده وفرمايي الله چي هدايت وکړي ده ته نوپراخوي سينه (زړه) دده لپاره (دقبلولو ) داسلام يعنی الله چي ديوچادهدايت اراده وکړي نوپه زړه کښې يې خلا اونورغورځوي هغه پراخ شي اودغه داسلام لپاره دلارښووني اوهدايت نښه ده ابن عباس (رضي الله عنه) وايي معنايی داده چي زړه يې دتوحيد اوايمان لپاره پراخوی کله چي رسول اللهﷺ له دغه آيت شريف څخه وپوښتل شو نورسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: کله چي نورزړه ته دننه شي نو وغوړيږی اوپراخ شي پوښتونکوووويل چي ايادديې لپاره کومه نښه شته چي وربانديې وپيژندل شي ويې ويل: داخرت لوري ته رجوع کول له دنيا څخه ځان راټول او دمرګ لپاره تياري نيول پخوا تردې چي مرګ ورته حاضر شي ([3]) ﴿ وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ ﴾ اوهرهغه چي اراده وفرمايي (الله) دګمراه کولو دهغه (دايمان له لاري) (يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا ) ګرځوي (الله)سينه (زړه) دده تنګ نهايته تنګ ،چي دهدايت څخه هيڅ هم پکښې نه ځائيږي اونه له ايمان څخه هيڅ شي ورننوزي عطاء وايي چي دخيرلپاره هيڅ منفذ

---

[1] -البحر المحيط ۲۱۴/۴.

[2] -البحر المحيط ۲۱۷/۴.

[3] -الطبری ۱۲/۱۰۰.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



پکښې نه وي(۱) ﴿ كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ﴾ (ګواکې پورته دروميږي (په زحمت اوزور سره) اسمان ته ،يعنی لکه چې دي داسمان ته ختلو هڅه کوي اوغیرممکن کارته يې ليځي رانغښتي وي ابن جرير (رح) وايي چې دغه مثال الله ﷻ دکافر دزړه لپاره فرمايلي چې خوراتنګ دي ايمان ورته لاره نه مومي لکه چې اسمان ته ختلي نشي اوځني عاجزدی همداراز دايمان له راوړلو څخه هم عاجزدی (۲) ﴿ كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ همداسی (چې الله تنګ کړي دي زړونه دکفارو له قبلولو دحق نه ) نازلوی الله عذاب (سپکاوي) په هغوکسانوچي ايمان نه راوړي (په ايتونودالله) مجاهد وايي چې (رجس) هغه څه ته وايي چې خيرپکښې نه وي اوزجاج بياوايي( رجس) لعنت په دنيااوعذاب په آخرت کښې دي ﴿ وَهَٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا ﴾ (اوهم دااسلام) لاره درب ستادي سمه صافه ) يعني دغه دين چې ته ورباندي مشرف يې ای محمده هغه سمه سيخه لاره ده کوږ والی پکښې نشته نووربانډ ټينګ اوسه ﴿ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴾ په تحقيق واضح بيان کړي دی مونږ آيتونه لپاره دهغه قوم چې پندتري اخلي (پکښې غورکوي په عقلونوخپلو سره) ﴿ لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ شته دی دغو (مومنانوپند اخيستونکوته ) کور دسلامتيا (له مشکلاتو څخه چې جنت دي ) په نزد درب ددوي يعني دميلمستيااوتکريم په ډول ﴿ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (اوهم دغه (الله ) مددګار (ولي )ددووی دی په سبب دهغه (اعمالو )چې دوي به کول )يعني الله ﷻ ددوي ساتونکي مرستندوي اوملاتړدي څکه چې دوي ښه اعمال کول ابن کثير وايي الله ﷻ چې دلته جنت ته دارالسلام وفرمايل څکه دوي سمه لاره تعقيب کړی اودانبياء کرامو پيروي يې کړي ده نولکه څرنګه چې دوي له کږوالی څخه دسلامتيالاره غوره کړي وه هغسي الله ﷻ دوي ته دارالسلام ورکړ(۳).

بلاغت:

۱-(وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ ) دربوبيت وصف اواضافت يې درسول الله ضميرته دتشريف اوتکريم لپاره دي اود تسلا په هکله دلطف مبالغه ده.

۲- (فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ) خطاب رسول الله صلی الله عليه واله وسلم ته دپاروني اوتهيج لپاره دي

۳-(وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ) دلته کلام مراد اوګواکي جزيې راوړي اراده يې دکل ده اودمرسل مجاز صنعت پکښې راغلي دي

---

۱ -ابن کثير ۱/۶۱۷.
۲ -الطبری ۱۲/۱۰۹.
۳ -مختصرابن کثير ۱/۶۱۸.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴-پدي كلماتو كښې چي (وَذَرُوا۟ ظَٰهِرَ ٱلْإِثْمِ وَبَاطِنَهُۥٓ) د(ظاهر)او(باطن) ترمينځ دطباق صنعت راغلي دي.

۵-(أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَٰهُ) دلته (موت)او(حيات) (نور) او(ظلمت) ټول له استعاراتو څخه دي لکه څرنګه چي كفر يې له مرګ څه او ايمان له ژوند څخه استعاره كړي هغسې يې (نور) او(ظلمات) دهدايت او ګمراهي لپاره راوړي دي.[1]

۶-پدي كلام كښې چي فرمايي:(يَشْرَحْ صَدْرَهُۥ لِلْإِسْلَٰمِ) دلته مراد له شرح څخه دحق اوهدايت منل دي هغه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم راوړي دي اوبياد(شرح) او(ضيق) ترمينځ دطباق صنعت راغلي دي.

فائده:

وايي چي (حكم) تر(حاكم) ابلغ اوپه رسوخ باندي دلالت كونكي دي ځكه دهغه اطلاق يوازي په عادل باندي اوهغه چاچي په واروارځيني حكم صادرېږي راځي اوحاكم دغسې نه وي(٢)

تنبيه:

امام رازى رحمه الله وايي: چي دغه ايت شريف چي فرمايي:(وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَآئِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ) پدي دلالت كوي چي په دين كښې په يوازي (دهوس اوخواهش) تقليد باندي خبري كول حرام كاردي ځكه په يوازي (داسى )تقليد سره خبره دهوا اوشهوت منل دي اودغه په دين كښې حرام پيژندل شوي چي دغه ايتورباندي دلالت كوي(٣).

## الله تعالى فرمايي:

﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا يَٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ قَدِ ٱسْتَكْثَرْتُم مِّنَ ٱلْإِنسِ ۖ وَقَالَ أَوْلِيَآؤُهُم مِّنَ ٱلْإِنسِ رَبَّنَا ٱسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَبَلَغْنَآ أَجَلَنَا ٱلَّذِىٓ أَجَّلْتَ لَنَا ۚ قَالَ ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ خَٰلِدِينَ فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٢٨﴾ وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّى بَعْضَ ٱلظَّٰلِمِينَ بَعْضًۢا بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿١٢٩﴾ يَٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِى وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ۚ قَالُوا۟ شَهِدْنَا عَلَىٰٓ أَنفُسِنَا ۖ وَغَرَّتْهُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا وَشَهِدُوا۟ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا۟ كَٰفِرِينَ ﴿١٣٠﴾ ذَٰلِكَ أَن لَّمْ يَكُن رَّبُّكَ مُهْلِكَ ٱلْقُرَىٰ بِظُلْمٍ وَأَهْلُهَا غَٰفِلُونَ ﴿١٣١﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا۟ ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٢﴾ وَرَبُّكَ ٱلْغَنِىُّ ذُو ٱلرَّحْمَةِ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنۢ بَعْدِكُم مَّا يَشَآءُ كَمَآ أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ ءَاخَرِينَ ﴿١٣٣﴾ إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَءَاتٍ ۖ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ﴿١٣٤﴾ قُلْ يَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عَامِلٌ ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ۗ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿١٣٥﴾ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ ٱلْحَرْثِ

---

[1] -البحر ۴/۲۱۴.

[2] -محاسن التاؤيل ۶/۲۴۷۴.

[3] -التفسير الكبير ۱۳/۱۶۷.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَالْأَنْعَـٰمِ نَصِيبًا فَقَالُواْ هَـٰذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ وَهَـٰذَا لِشُرَكَآئِنَا فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى ٱللَّهِ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَىٰ شُرَكَآئِهِمْ سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿١٣٦﴾ وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَـٰدِهِمْ شُرَكَآؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُواْ عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا فَعَلُوهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿١٣٧﴾ وَقَالُواْ هَـٰذِهِۦٓ أَنْعَـٰمٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ لَّا يَطْعَمُهَآ إِلَّا مَن نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَـٰمٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا وَأَنْعَـٰمٌ لَّا يَذْكُرُونَ ٱسْمَ ٱللَّهِ عَلَيْهَا ٱفْتِرَآءً عَلَيْهِ سَيَجْزِيهِم بِمَا كَانُواْ يَفْتَرُونَ ﴿١٣٨﴾ وَقَالُواْ مَا فِى بُطُونِ هَـٰذِهِ ٱلْأَنْعَـٰمِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِنَا وَإِن يَكُن مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَآءُ سَيَجْزِيهِمْ وَصْفَهُمْ إِنَّهُۥ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٣٩﴾ قَدْ خَسِرَ ٱلَّذِينَ قَتَلُوٓاْ أَوْلَـٰدَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُواْ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ قَدْ ضَلُّواْ وَمَا كَانُواْ مُهْتَدِينَ ﴿١٤٠﴾ ﴾ الأنعام: ١٢٨ ــ ١٤٠

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله ﷻ دا یادکړل چي بشر په دوه ډولګي ویشل کیږي یوه موندونکي اوبله یې ګمراهان دي هغه کسان چي الله ﷻ یې سینه پراخه اوزړه ته یې نور وردننه کړي نوایمان راوړي اوهدایت یې په برخه شي اوڅوک چي دشیطان پیروي کوی اودخپلو نفسی غوښتنوپابندوي هغه ګمراه کیږي وروسته دلته داذکرکوي چي خلک به ډول په قیامت کښې راپاځي اوحساب به ورسره کیږي هرچاته به دخپل عمل اودژوند دکړو وړو سره سمه جزا ورکول کیږي

## لغتونه:

(مَثْوَىٰكُمْ) هستوګنځی ستاسي ویل کیږي (ثوی بالمکان) یعني په خاي کښې واوسیدو (يَقُصُّونَ) حکایت کوي ویل کیږي (قص الخبر) حکایت یې وکړ (ذَرَأَ) پیدا یې کړ (ٱلْحَرْثِ) کښت (لِيُرْدُوهُمْ) چي هلاک یې کړي (ارداء) هلاکولوته وایي (حِجْرٌ) حرام ته وایي چي په اصل کښې معنا یې منع ده اوعقل ته هم (حجر) ویل کیږي ځکه هغه خپل خاوند له بدو افعالو ،اقوالو رامنع کوی لکه چي الله فرمایي: ( هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ) (سَفَهًۢا) حماقت اوجهالت ته وایي اوسفه همداسی دعقل سپکوالي ته ویل کیږي.

## تفسیر:

﴿ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ﴾ او(یاده کړه )هغه ورځ چي جمع به کړي(الله) دوي ډول (انسانان اوپیریانان دحساب له پاره )اوورته به وویل شي ﴿ يَـٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ قَدِ ٱسْتَكْثَرْتُم مِّنَ ٱلْإِنسِ ﴾ (ای جماعته دپیریانو په تحقیق ډېر موتابع کړي دي تاسي له انسانانو) یعني ډیرمو ګمراه کړي اوتبنتولي دی ابن عباس (رض) وایي چي تاسوله دوي ځخه ډېر کسان ګمراه کړي دي اودغه خبره دتوبیخ اوتقریع په توګه ده ﴿ وَقَالَ أَوْلِيَآؤُهُم مِّنَ ٱلْإِنسِ رَبَّنَا ٱسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ ﴾ اووبه وایي دوستان ددوي له انسانانو ځخه ای ربه زمونږ نفع اخیستی ده ځینو زمونږ په ځینو نورو )بیضاوي وایي چي انسانانو په پیریانوداسي ګټه اخیستي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي هغوي يې شهوتونو اودهغولاروچاروته رهبری کړي اوپيريانوبياله انسانانو داگټه پورته کړي چي ددوي پيروي يې کړي اوددوي مقصد ترسره شوی ده.(١) ﴿ وَبَلَغْنَآ أَجَلَنَا ٱلَّذِىٓ أَجَّلْتَ لَنَا ﴾ اورسيدلي يو مونږ نيټې خپلې ته هغه نيټه چي تا مونږته مقرره کړي ده (چي دمرگ اوقبرده) دغه گواکي ددوی له لوری اعتذاراوپخپل حال اقراردي چي دوي دشيطانانو پيروي کړي اوهواهوس يې غوره کړي وو اوس افسوس کوي ﴿ قَالَ ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ ﴾ وبه فرمايي (دوی ته الله) چي ستاسي ځای اور دي ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ﴾ حال داچي هميشه به اوسي تاسي په دغه اورکښې مگر(کله) چي اراده وفرمايي الله (دعدم خلود ددوي) طبري وايي چي داهغه موده ده چي دددوي له پاڅيدلو اوبيادا ورته لويدلو ترمينځ وي(٢) اوزمخشري بياوايي چي دوي به تل ترتله په دوزخ کښې وي مگر هغه موده چي دوي له اورڅخه زمهريرته ليږدي په تحقيق سره داسي روايت کيږي چي دوي به دزمهرير کندي ته ورلويږي اوهلته به چيغي وهی غواړ ي به چي بيرته جحيم ته ستانه شي (٣) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بيشکه رب ستاښه حکمت والا (دی پخپل کارکښې) ښه عالم د ي(دبندگانو په کړوړو باندي ) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّى بَعْضَ ٱلظَّٰلِمِينَ بَعْضًۢا بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ اوهمداسی (لکه چي انسی اوجنی کفارمو يوپه بل باندي مسلط کړی) مسلط کوو مونږ ځيني ظالمان په ځينو نورو په سبب هغه اعمالو ددوي چي کول به يې قرطبی وايي چي دغه دظالم لپاره تهديداواخطارد ي که چيري له ظلم څخه لاس وانخلي نوبه بل ظالمورباندي مسلط کاندي ابن عباس (رض) وايي کله چي الله ﷻ له يوقوم څخه راضي اوخوښ وی نوترددوي غوره څوکورباندي وگوماري اوکه چيري الله پاک له چاڅخه ناراضه وي نودچاروواک يې اشرارو ته په لاس ورکړي اوهغه ورباندي پاچاکړي (٤) مالک بن دينار وايي چي مادحکمت اوپوهي په ځيني کتابونو کښې ولوستل الله ﷻ وايي (اني اناالله مالک الملوک قلوب الملوک بيدی فمن اطاعني جعلتهم عليه رحمة ومن عصاني جعلتهم عليه نقمه فلاتشغلوا انفسکم بسب الملوک ولکن توبوا اليّ اعطفهم عليکم (٥) يعنی زه دپاچهانوپاچاه يم ددوی زړونه زما په واک کښې د ي کوم کسان چي زما اطاعت کوي په هغوي باندي به دپاچازړه مهربان اوڅوک چي له ماڅه سرغړونه کوي پاچابه ورته په قهرکړم نوتاسی دپاچهانوپه ښکنځلو ځان مه مشغولوي خوماته توبه وکاږي چي پاچهان درباندي مهربان کړم ﴿ يَٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِى ﴾ (ای جماعته دپيريانواوانسانانو ايانه وو راغلي تاسوته رسولان له تاسی ؟(بلکه راغلي وو )چي بيانول به دوي پرتاسو آيتونه زما ،دغه ندا اوغږبه دقيامت په ورځ اواستفهام دتوبيخ لپاره دی ﴿ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَآءَ

١ -البيضاوي ١٨١.
٢ -الطبری ١١٨/١٢.
٣ -الکشاف ٥١/٢.
٤ -القرطبی ٨٥/٧.
٥ الفخرالرازی ١٩٤/٣.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ﴾ اوویرولي به یې تاسی له ملاقاته دورځی ستاسی څخه چي داده (سخته ورځ) ﴿ قَالُوا شَهِدْنَا عَلَىٰ أَنفُسِنَا ﴾ (نووایي به چي شاهدي وایو پرخانونوخپلو) یعني دوی به پرته له اعتراف څخه بله لاره نه مومي اووایي به چي موږ شاهدان یوچي ستاپیغمبران مونږ ته راغلی اومونږیې له دغي ورځي څخه ویرولی یوابن عطیه وایي چي دغه ددوي پخپل کفر باندی اقراردی لکه چي دوي وایي (قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا) ﴿ وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ﴾ (اوغره کړي وو دوی ژوندون ددنیا) یعني په ښکلااونعمتونو یې غولیدلی وو ﴿ وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ ﴾ اوشاهدي ورکړه دوی په ځانونوخپلو باندي چي بیشکه دوی کافران وو (په دنیاکښې) بیضاوي وایي پدي کښې ددوي دناسم نظر اوخطارایي څرګندونه ده څکه دوي ددنیا په فاني لذتونو غولیدلي و اوله اخرت څخه یې مخ اړولی وو ترديې چي اوس پخپل ځان باندي په کفر اعتراف کوي اودتل ترتله عذاب لپاره ځانونه سپاري پدي کښې داوریدونکولپاره ویرونه ده چي دهغوي په شان نشي.(١) ﴿ ذَٰلِكَ أَن لَّمْ يَكُن رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ وَأَهْلُهَا غَافِلُونَ ﴾ (دغه رالیږل درسولا نو دپاره ددې دي چي ستارب هلاکونکی دکلیو(ښارونو) نه دي په ظلم سره حال داچي ددې کلیو(ښارونو خلک بی خبر(غافلان)وي طبری وایي معناداچي ای محمده دغه درسولانو لیږل مو ددې لپاره کړی چي دوي ته زمونږ ایات ولولی اوداخرت له ورځي څخه یې وویروي اوداپدي چي ستارب پرته له خبرداري ،تنبیه اویادوني دوی داسي نه هلاکوي چي دوی ناخبروي(٢) .

﴿ وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ مِّمَّا عَمِلُوا ﴾ (اوهرچاته درجې دی له (جزاء) دهغو اعمالو چي دوي یې کوي )یعنی دهرچالپاره دعمل په مساوي میچه چي طاعت یې کړي وي یامعصیت مرتبې دی چي په اخرت کښې به یې مومي که ښه یې کړی وي ښه به پیداکړي اوکه چیري یې بدکړي وي بدبه ورته ورسیږي ابن جوزي وایي چي پدي وجه یې درجات وبلل چي دیودبله به لکه دزینوپه شان لوړوالي اوټیټوالي لري(٣) .

﴿ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴾ (اوستارب غافل نه دي له هغوشیانو چي دوي یې کوي )یعني الله ﷻ دخپلو بندګاوله کړو وړوڅخه غافل اوخطاکیدونکی نه دي پدي کښې وعیداوتهدید نغښتي دي

﴿ وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ﴾ اورب ستابي پروادي ،له خلکواوعبادت ددوي نه ،نه ددوي عبادت ورته ګټه رسوی اونه هم ددوي معصیت الله ﷻ ته زیان رسوي ﴿ ذُو الرَّحْمَةِ ﴾ خاوند درحمت دي (بشپړ)ابن عباس (رض) وایي چي په خپلو اولیاوو اوطاعت کونکوبندګانوباندي درحمت خاونددي بل څوک بیاوایي په ټولو خلکو مهربان دي اودهغه له رحمت څخه داهم دي چي له مخالفینوڅخه سمدستي انتقام نه اخلی هغه یې څندولي دي ابوالسعودوایي چي پدي کښې داتنبیه هم شته کومه هغه پخواني خبره چي درسولانو لیږل

---

١ -البیضاوي ١٨٢.

٢ -الطبری ١٢/١٢٤.

٣ -ابن الجوزی ٣/١٢٦.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دي دادالله ﷻ دګتي لپاره نه بلکه پخپلو بندګانو درحم له کبله وو(١) ﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ﴾ (که اراده وکړي نوتاسي به بوزي )يعنی که دالله اراده وشي نو تاسی ګنهکاران به يومخ هلاک کړي ﴿وَيَسْتَخْلِفْ مِنۢ بَعْدِكُم مَّا يَشَآءُ﴾ اوځای نيونکی به کړی وروسته له تاسی هرهغه څوک چي اراده يې وفرمايي (او تر تاسی ښه حکم منونکي او اطاعت کونکي وي) ﴿كَمَآ أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ ءَاخَرِينَ﴾ لکه چي پيداکړي يي يې تاسي له اولادي دقوم نورونه ابوحيان وايي چي دايت شريف په ترڅ کښې دالله ﷻ له سمدستي نيولو (هلاکت) څخه تحذير شته(٢) ﴿إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَءَاتٍ﴾ بيشکه هغه څه چي له تاسي سره يې وعده کړل شوي راتلونکي دي خامخا ﴿وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ﴾ اونه يې تاسي عاجزکونکی (دالله په قدرت کښې) چي له واکه يې ووزی اوله عذابه يې خلاص شی که څه هم دتيښتي ټولي لاري چاري وسنجوي ﴿قُلْ يَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ﴾ (محمده)ووايه چي ای قومه زما عمل کوی، تاسي پرحالت خپل سره (چي کفراودښمنی ده ) يعني درباندي ټينګ اوسی امردلته دتهديد لپاره دي لکه چي بل ځای فرمايي (اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ) ﴿إِنِّى عَامِلٌ﴾ زه هم عمل کونکی يم په خپل حال سره (چي ايمان اواستقامت دي لکه چي الله راته فرمايلي دی ) ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ﴾ پس ژر به پوه شی تاسي چي چاته به (محمود ) عاقبت (دار داخرت وي) ماله اوکه تاسوته ؟ ﴿إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ شان دادي چي نه مومي بري ظالمان زمخشري وايي په ايت شريف کښې دويروني څرک شته چي په خوراښه ادبي انځور سره په انصاف يادشوي سره له دي چي سخت وعيد دي اوپدي باندی ښکاره شوي چي ويرونکي (پيغمبر) په حق اوقوم په باطل دي (٣) ﴿وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ ٱلْحَرْثِ وَٱلْأَنْعَٰمِ نَصِيبًا﴾ اومقرر کړی دي دغو(مشرکانو )الله ته له هغه شي چي پيداکړي دی الله تعالی (هغه) له کښتنه اوچارپايانويوه برخه ،چي په فقيرانويې ويشي اودغه رنګه دبتانولپاره يې ونده ټاکلي چي خپلو مشرانوته يې ورکوي ابن کثيروايي چي دغه دالله ﷻ له لوري ددوي توبيخ اوذم دي چي دوي هسي بدعت ،کفراوشرک غوره کړی دي له الله ﷻسره يې شريکان نيولی حال داچي الله پاک هرڅه پيداکړي دي(۴) ﴿فَقَالُوا۟ هَٰذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ﴾ نو وايي دوي دغه برخه لپاره دالله ده په عقيده ددوي سره (بی له شرعي دليله ) په تسهيل نومي کتاب کښې وايي چي (زعم) ډيرځله په دروغو کښې استعماليږي

---

١ -ابوالسعود ١٣٨/٢.
٢ -البحر المحيط ٢٣٥/۴.
٣ -الکشاف ۵۴/٢.
۴ -مختصرابن کثير ۶٢٢/١.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(۱)﴿ وَهَٰذَا لِشُرَكَائِنَا ﴾ اودا(بله ) برخه لپاره دشریکانو زمونږ ده (چي خدایان ددوی اوبتان دي )ابن عباس وایي دالله ﷻ دښمنانوچي به کله کرونده وکرله فصل به يې وشو اويابه يې ميوي واخیستي نويوه برخه به يې دالله لپار ه بله به دبتانو په نامه ګڼله؛ رده هغه چي دبتانو ونده به وه هغه به يې وساتله اووګڼله اوکه به دالله له برخی څه ولویدو هغه به يې هُم دبتانو په برخه کښيښوده اوويل به يې چي الله غني دي اوبتان خورامحتاج دي (۲)﴿ فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ ﴾ نوهغه برخه چي لپاره دشریکانودوي ده پس هغه نه رسیږي الله ته ﴿ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَىٰ شُرَكَائِهِمْ ﴾ اوهغه برخه چي وی لپاره دالله هغه رسیږی ددوي شریکانو ته مجاهدوايي چي دوی به یوه برخه دکښت کروندي حاصل دالله په نامه کړاوبله برخه به يې دبتانو په نامه نوکله به چي هوا(باد ) دالله له برخي څخه دبتانولوري څه ورووړهغوي به پریښود اوکله به چي دبتانو له برخي څخه دالله برخي ته باديوڅه راوړل بیرته به يې دبتانوبرخي ته ستون کړاوکله چي به کاختي (قحط) راغي نودالله ﷻ له برخي څخه به يې خوړل اودبتانو برخه به يې خوندي کوله ﴿ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴾ (ډير)بددي هغه حکم چي دوي يې کوي ﴿ وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَاؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ ﴾ او(لکه چي ښائسته شوي وودوي ته دمالونودغه ویشل) همداسی ښائسته کړي دي ډيردمشرکانوته وژل داولاد ددوی خپلو شریکانو ددوي (چي شیطانان دي ) نوياخپل اولادونه ژوندي ښخوي اويايې دخپلو خدایانو په نامه حلالوي زمخشری وایي چي په جاهلیت کښې به يوسړي داسي لوړه (قسم )کاوو که چيري زماهومره اولادونه وزیږیدل یوبه حلالوم لکه چي عبدالمطلب هم دغسي لوړه کړي وه (۳)﴿ لِيُرْدُوهُمْ ﴾ لپاره ددې چي هلاک کړی دوي (په سرغړونه) ﴿ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ﴾ اولپاره ددې چي (داشیطانان) ګډ کړي پردوي باندي دین (اسماعیلی) ددوي(وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا فَعَلُوهُ ) اوکه اراده فرمایلي وی الله (په نه کولو ددغه کار) نودوي به دغه (بد ) کارنه ووکړي ﴿ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴾ نوپريږده دوي اوهغه چي دروغ وايي دوي (په الله باندي پدي کښې تهدید اووعیددي ) ﴿ وَقَالُوا هَٰذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ ﴾ (اووايي چي (دغه برخه دبتانو که ) چارپایان د ی اوکه کښت ممنوع (حرام ) دی (په بل چا )دغه دمشرکانو له جرائمو اوبدو افعالوڅه حکایت دي ﴿ لَا يَطْعَمُهَا إِلَّا مَن نَّشَاءُ ﴾ نه به خوری له دې مګرهغه څوک چي زمو نږ خوښ و ي ﴿ بِزَعْمِهِمْ ﴾ په ګومان ددوي سره (هغه بی دلیله باطل ګومان ) ﴿ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا ﴾ او(خیني) چارپایان دي چي حرامې کړي شوی د ي شاګاني ددوي

---

۱- التسهیل ۲۲/۲.
۲- مختصرابن کثیر ۶۲۲/۱.
۳- الکشاف ۵۳/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(چي څوک وربانديې نه سپريږي) لکه بحائر، سوائب، اوحوامی ﴿ وَأَنْعَٰمٌ لَّا يَذْكُرُونَ ٱسْمَ ٱللَّهِ عَلَيْهَا ﴾ او(څيني ) نورحيوانات د ي چي نه يادوي (دغه مشرکان په وخت د(ذبحې کښې) نوم دالله پردوي (بلکه نوم دبتانو پري يادوي ) ﴿ ٱفْتِرَآءً عَلَيْهِ ﴾ (اونسبت کوی ددغواحکامو الله ته ) په طريقه ددروغ تړلو په الله باندی ﴿ سَيَجْزِيهِم بِمَا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴾ ژربه سزاورکړي دوی ته الله په سبب ددې چي په الله به يې دروغ تړل اودغه سخت تهديد او وعيد د ي ﴿ وَقَالُوا۟ مَا فِى بُطُونِ هَٰذِهِ ٱلْأَنْعَٰمِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا ﴾ (اووايي دوي چي هغه شي په ګيډوددغوو حيواناتوکښې دي خالص دي لپاره دنارينه ووزمونږ)دغه ددوي له قبائحو څخه يوبل ډول قبيح عمل ته اشاره ده چي ويل به يې ددې بحائرو، سوائبو حيواناتو په ګيډو کښې چي څه دي هغه زمونږ دنارينه وو لپاره حلال دي ﴿ وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِنَا ﴾ (اوحرام کړي شوی دي په ښځوزمونږ) ،چي هغوي به څني څه نه خوري ﴿ وَإِن يَكُن مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَآءُ ﴾ اوکه وي هغه مرداره نودوی (نراوښځه) پکښې شريکان دي (چي دغه مردار زيږيدلی حيوان وخوري ) ﴿ سَيَجْزِيهِمْ وَصْفَهُمْ ﴾ (ژربه سزاورکړي (الله) دوی ته د(دې) تقريرددوی) چي په تحليل اوتحريم کښې يې په الله ﷻ دروغ تړلي وو﴿ إِنَّهُۥ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بيشکه دغه (الله) ښه حکمت والادي پخپلو کړوورو کښې اوښه پوه دي په مخلوقاتو خپلو ﴿ قَدْ خَسِرَ ٱلَّذِينَ قَتَلُوٓا۟ أَوْلَٰدَهُمْ ﴾ (بيشکه زيان کړي د ي هغوکسانوچي وژلي يې دي اولادخپل ) يعني قسم دي چي دغه کسان چي خپل اولادونه يې وژلی بی عقلان دي زيان يې کړي دي زمخشري وايي: دغه ايت دربيعة اومضراونورو عربو په شان کښې رانازل شوی کوم چاچي ژوندي لوني به يې دلوړ ي اوبندي کيدلو له ويري ښخولي[1] .

﴿ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ له جهته دعقل دسپکتيا اوسفاهته اوداچي پدي نه پوهيدل چي الله دوي اوددوي اولادونوته روزي ورکوي ﴿ وَحَرَّمُوا۟ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ (اوحرام کړی يې دي هغه شيان چي روزي ورکړي ده دوي ته الله ) يعنی حرام کړي يې دي پرڅان باندي بحيره ،سائبه اونورامثال دهغو ﴿ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ ﴾ له جهته ددروغ تړلو په الله باندي ﴿ قَدْ ضَلُّوا۟ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴾ بيشکه ګمراهان شوی دی دوي اونه دي دوي لاره موندونکي (حق ته ) يعنی دوی له سمي صافي لاري څخه خطاوتلي لاره يې ورکه کړي ده چي داهسی بدعمل يې ترسره کړي اودوي په لومړي پيل کښې هم لاره موندونکي نه ووځکه سيرت يی بدوو ابن عباس (رض) وايي: که پدې خوښحاليږي چي دعربو ناپوهی درته معلومه شي نوسوره

[1] -الکشاف ٥٧/٢.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



انعام له یوسل او دیرشم ایت نه وروسته ولوله چي الله فرمايي ﴿ قَدْ خَسِرَ ٱلَّذِينَ قَتَلُوٓاْ أَوْلَـٰدَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُواْ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ ۚ قَدْ ضَلُّواْ وَمَا كَانُواْ مُهْتَدِينَ ﴾ (۱)

بلاغت:

۱: پدي کلام کښې چي الله فرمايي (قَدِ ٱسْتَكْثَرْتُم مِّنَ ٱلْإِنسِ ) يعني ډيرمو گمراه کړي اواغواء کړي دي دلته ايجازبالحذف دی همدا راز پدي کلام کښې چي (ٱسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ ) يعني دا چي گټه اخيستي ځيني انسانانو په ځيني پيريانانو اوگټه اخيستي ځيني پيريانانو په ځيني انسانانو.

۲: (ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ ) دواړه خواوي معرفه ذکرشوي چي حصرافاده کړي.

۳: (أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ ) استفهام دتوبيخ اوتقريع لپاره دي.

۴: پدي جمله کښې چي (وَلِكُلٍّ) ، تنوين له مُحذوف ځخه عوض راغلي د ي معنادا چي دهرعامل لپاره.

۵: پدي آيت شريف کښې چي: ( إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَأَتٍ ) توعدون دمضارع صيغه ددي لپاره غوره شوی چي په تجددي استمرار دلالت وکړي اوهمدا راز (ان) او (ل) دتاکيد لپاره راوړل شوی ځکه مخاطبين له بعث اوپاځيدلو ځخه منکروونو يې دوه تاکيدات راوړل.

۶: ( مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ ) دلته داسم جليل اظهار کول دضميرپه ځای کښې ددوي دزياتي سرغړوني له کبله شوي اوداچي دوي گمراهان د ي.(۲)

فوائد اوگټي:

لومړی فائده: جلال الدين سيوطي په اکليل نومې کتاب کښې د ( وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ ٱلظَّـٰلِمِينَ بَعْضًا ) آيت سره ليکی چي داسي دحديث شريف معناهم ده چي فرمايي: (کماتکونون يولى عليکم) لکه چي ياست هغسي ځوک به دڅربانډي گومارل کيږي.فضيل بن عياض وايي چي: کله ووينې چي يوظالم له بل ځخه کسات اخلي نوورته ودريږه ننداره يې وکړه.

دوهمه فائده:

جمهور علماء داسي وايي چي پيمغبران يوازي له انسانانوځخه غوره شوی اوله پيريانوځخه هډوهيڅکله نه وو راغلي اوداچي الله ﷻ فرمايي (أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ ) دغه دتغليب له پلوه راغلي دي لکه چي الله فرمايي: ﴿ يَخْرُجُ مِنْهُمَا ٱللُّؤْلُؤُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴾ الرحمن ۲۲ .بلکه دغه يوازي له مالگين درياب ځخه راوزی له خواږه درياب ځخه نه وي.

---

۱- مختصرابن کثير.

۲- دغه خبره ابوالسعود راايستلي ده ۲/۱۴۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دریمه فائده:

قرطبی پخپل تفسیر کښې لیکي چې داصحابانورضوان الله علیهم له ډلي یوڅوک همیشه درسول الله صلی الله علیه وسلم په مخ کښې پریشان ناست وو نورسول الله ﷺ ورته وویل (مالک تکون محزونا؟) ولی خفه یې؟! نوهغه ورته وویل ای دالله استازي ماپه جاهلیت کښې ګناه کړي پدي ویریږم که مسلمان هم یم چې الله به یې راته ښنه ونکړي نورسول الله ورته وویل ستاګناه راوښیه هغه وویل زه په جاهلیت کښې دهغوکسانوله ډلی څخه وم چې لوڼې به یې ښخولي نوزماپه کورکښې لوروزیږیدله ښځي مې راته زاري جګړي وکړي چې له وژلو یې تیرشم هغه مي پریښودله څولویه شوه اوبلوغ ته ورسیده خورابښائسته ښځه شوه چاراڅخه وغوښتله چې په نکاح یې کړي خوماته غیرت وراندي شو زړه مي نه غوښتل چې هغه واده کړم اویایې بي له واده پخپل کورکښې پریږدم نومي ښځي ته وویل چې زه غوارم دخپلوانوکره ولاړشم نودانجلي هم له ماسره ولیږه هغه خوشحاله شوه هغه یې په ګینه سینګاره کړه ښې جامي یې ورواغوستي اوله ماڅخه یې ژمني اوټینګي وعدي واخیستی چې خیانت ورسره ونکړم نوهغه مې کوهی ته وروستله اوکوهی ته مې لاندي وکتل هغی ته داسي څرګنده شوه چې زه یې په کوهی کښې غورځوم نویې ترلمن ونیولم په ژړاشوه اوزمازړه وراندي وسوځیده اوبیامی کوهی ته وکتل غیرت راباندي غلبه وکړه اوشیطان راباندي زورورشونوهغه مې سرپه څیړه په کوهي کښې وویشتله ترهغوپوري هلته تم شو م څویې غږبندشو اوبیاراوګرزیدم نورسول الله ﷺ اواصحابانووژړل اورسول الله ﷺ ورته وویل: که ماته ددې امرشوي واي چې یوچاته دجاهلیت په کړنه سزاورکړم نوتاته به مي درکړي وه. (١)

الله تعالی فرمایي:

﴿ ۞ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنشَأَ جَنَّٰتٍ مَّعْرُوشَٰتٍ وَغَيْرَ مَعْرُوشَٰتٍ وَٱلنَّخْلَ وَٱلزَّرْعَ مُخْتَلِفًا أُكُلُهُۥ وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلرُّمَّانَ مُتَشَٰبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَٰبِهٍ ۚ كُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَءَاتُوا۟ حَقَّهُۥ يَوْمَ حَصَادِهِۦ ۖ وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿١٤١﴾ وَمِنَ ٱلْأَنْعَٰمِ حَمُولَةً وَفَرْشًا ۚ كُلُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿١٤٢﴾ ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ ۖ مِّنَ ٱلضَّأْنِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْمَعْزِ ٱثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ ٱلْأُنثَيَيْنِ أَمَّا ٱشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ ٱلْأُنثَيَيْنِ ۖ نَبِّـُٔونِى بِعِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿١٤٣﴾ وَمِنَ ٱلْإِبِلِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْبَقَرِ ٱثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ ٱلْأُنثَيَيْنِ أَمَّا ٱشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ ٱلْأُنثَيَيْنِ ۖ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصَّىٰكُمُ ٱللَّهُ بِهَٰذَا ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ ٱلنَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٤٤﴾ قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُۥٓ إِلَّآ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُۥ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ ۚ فَمَنِ ٱضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤٥﴾ وَعَلَى ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ حَرَّمْنَا كُلَّ ذِى ظُفُرٍ ۖ وَمِنَ ٱلْبَقَرِ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُم بِبَغْيِهِمْ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿١٤٦﴾ فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٤٧﴾ سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴿١٤٨﴾ قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٤٩﴾ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴿١٥٠﴾ الأنعام: ١٤١ ـ ١٥٠

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله ﷻ دا یادونه وکړه چي مشرکینو دالله ﷻ په نعمتونو او ارزاقو کښې ځیني شیان په ځان حرام کړي وو نو دده غوبد مرغه کسانو ځیني قبائح یې وشمیرل دلته یې بیا هغه څه وفرمایل چي الله ﷻ وربانديي احسان کړي او روزي یې ورکړ ي خودوي له خپله لوري پکښې تصرفات کوي او په الله ﷻ باندي دروغ تړي ورپسي یې دددوي هغه په شرک احتجاج او په قضاقدر باندي دایمان نه راوړلو بیان وکړ چي داهم ددوي دکذب ،بهتان او په الله باندی دافتراء یوه برخه ده.

## لغتونه:

(مَّعْرُوشَٰتٍ )لوړ شوي په لرگیو اوچت پورته کړی ته وایي (حَصَادِهِ) دمیوو دراټولو وخت (درمند اخیستل) (حَمُولَةً) هغه اوښ چي درانه بارونه په شاوړي (فرشا) هغه واړه اوښان (جونگیان)چي بارونه نشي وړلاي زجاج وایي چي (فرش) کوچني اوښان (جونگړیان) د ي(ٱلْحَوَايَآ) دپچوځای (غوز) هغه کولمي چي وربانديي وازدې وي څکه دغوته حوایا وایي چي نس (لړمون )وربانديي راتاودي (هَلُمَّ) راشئ (يَعْدِلُونَ) وربانديي مشرکان کیږي

## تفسیر:

﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَ جَنَّٰتٍ مَّعْرُوشَٰتٍ وَغَيْرَ مَعْرُوشَٰتٍ ﴾ او الله هغه ذات دي چي پیدا کړي یې دي باغونه (دانگورو له ځمکي نه ) هسک کړي شوي (په لرگیو )او غیر هسک کړی شوی (پراته پرځمکه ) ﴿ وَٱلنَّخْلَ وَٱلزَّرْعَ مُخْتَلِفًا أُكُلُهُۥ ﴾ (او دخرماونه او کښت چي مختلفي وي میوي دهغو(په رنگ او خوند کښې) یعني الله پاک ستاسو لپاره میوه لرونکي دخرماوني هغه چي غذا او فاکهة وي هماراز نور غذایي غلی داني کښتونه چي په رنگ او خوند کښې مختلف وي او دادول په بوي او حجم کښې یو له بله توپیرلري .

﴿ وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلرُّمَّانَ مُتَشَٰبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَٰبِهٍ ﴾ او زیتون او انارچي متشابه وي (په رنگ او شکل کښې) او غیرمتشابه و ی(په خوند کښې ) ﴿ كُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ ﴾ خورئ تاسي له میوې دهغي ځیني کله چي میوي ونیسي (له لمدو خرما او انگورو او نورو څخه ) ﴿ وَءَاتُوا۟ حَقَّهُۥ يَوْمَ حَصَادِهِۦ ﴾ او اداکوی حق

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دهغې په ورځ دريبلودې يعني مسكين اوفقيرته دشكولو په وخت كښې يې چې څه موزره غواړي نقله وركوي ابن عباس (رض) وايي چې معنايي هغه فرض شوی زكات دي چې ددرمند اخيستلو په وخت كښې كله چې يې پيمانو كوی وركړي (١) ﴿ وَلَا تُسْرِفُوٓاْ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ اوبې ځای يې مه لګوی بيشكه چې الله نه خوښوي مسرفان (تيريدونكي له حده) يعني په خوراک اومصرف كولو كښې يې اسراف مه كوی څكه پدې كښې دعقل اوبدن زيان دي طبری وايي چې دعطاء قول ترټولو غوره دي هغه وايي چې مرادله دې څخه نه اسراف كول په هرشي كښې فرمايل شوي د ي(٢) ﴿ وَمِنَ ٱلْأَنْعَٰمِ حَمُولَةً وَفَرْشًا ﴾ او(پيداكړي مودي )له چارپايانوباروړونكی اوغځيدونكی په ځمكه (حلاليدلو لپاره )ابن اسلم وايي چې (حمولة) هغوچارپايانوته ويل كيږي چې دسورلی وړوي او(فرش) بياهغوته وايي چې تاسي يې غوښې اوشيدي خورئ ﴿ كُلُواْ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ ﴾ خوری تاسی له هغه څيني چې الله رزق دركړي د ي تاسوته (له ميوو كښتواوچارپايانونه ) ﴿ وَلَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ (اومتابعت مه كوی (مه ځی) تاسی په قدمودشيطان) يعني دشيطان دلارو اوحكمونوچې تاسي ته يې په تحليل اوتحريم كښې كوي متابعت مكوی لكه چې به دجاهليت دزمانی خلكو دهغوي پيروي كوله ﴿ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ بيشكه داشيطان تاسی ته دښمن ښكاره دی (څني وويريږي) ﴿ ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ مِّنَ ٱلضَّأْنِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْمَعْزِ ٱثْنَيْنِ ﴾ (الله پيداكړي دي حلال اته جوړي (نراو ښځه ) له ميږو څني دوه (نراوښځه )اوله وزوڅخه دوه (نراوښځه) يعنی له چارپايانوڅخه يې اته جوړي حلال درته پيداكړي له ميږو څخه نراوښځه اوله وزو څخه نراوښځه قرطبی وايي چې اته افرادمراددي اوهرفرددعربو په نزدزوج ته اړوي نونارينه ته هم زوج وايي اوښځينه ته هم زوج اومراد دميږوله زوجين څخه نارينه پسه(ګډ ) اوميږه ده له وزوڅخه يې مرغومي اووزه مراددي ﴿ قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ ٱلْأُنثَيَيْنِ ﴾ ووايه (ای محمده دوي ته )چې ايا(الله ) دواړه نران حرام كړی دميږو اواووزوكه دواړه ښځي (له دوي څخه ) دغه ددوی دهغه عمل چې دالله حلال يې حرام ګرزولی وو انكاردي يعني اي (محمده ﷺ )دوی ته دتوبيخ په توګه ووايه چې اياالله پاک دواړه نارينه دميږو وزو حرام كړي اوكه دواړه ښځينه دميږو اووزو ﴿ أَمَّا ٱشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ ٱلْأُنثَيَيْنِ ﴾ (ياكه حرام كړی يې دي )هغه بچي چې مشتمل وی په هغوباند ي(چونه) ددغوددواړو ښځينه (چارپايانوهغه كه نروي كه ښځه ) ﴿ نَبِّـُٔونِى بِعِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ راوښيئ تاسي ماته سند(چې علم دي نه دروغ اوافتراء) كه يې تاسي صادقان دربنتوني په تحريم ددې شيانو كښې الله ته ﴿ وَمِنَ ٱلْإِبِلِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْبَقَرِ ٱثْنَيْنِ ﴾ او(الله پيداكړي دي )له اوښانودوه (نراوښځه چې اوښ او اوښه ده )او له

---

١ -مختصرابن كثير١/٦٢٤.

٢ -الطبری ١٢/١٧۶.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



غوايانو دوه (چي غوا او غويي دي) ﴿قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ ٱلْأُنثَيَيْنِ أَمَّا ٱشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ ٱلْأُنثَيَيْنِ﴾ ووايه (ای محمده دوي ته) چي ايا دواړه نران حرام کړي دي الله که دواړه ښځي يا هغه (بچي يې حرام کړي دي) چي مشتمل دي پري رحمونه ددې دواړو ښځو) دغه خبره يې دتوبيخ اوترټني لپاره مکرره راوړه ابوالسعود وايي چي مراد دلته ددې خبری انکار دی چي الله دي دغه څلورډوله حرام کړي دي او پدي هکله ددوي دډروغو څرګندونه ده څکه دوي به کله نارينه چارپايان حرام ګڼل او کله به يې ښځينه کله کله به يې دهغوي اولادونه حرام ګڼل ([1]) ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصَّىٰكُمُ ٱللَّهُ بِهَٰذَا﴾ ايا وی تاسي حاضران کله چي وصيت (حکم) کاوو الله تاسی ته پدي شيانو (دتحريم)؟ دغه دزيات توبيخ لپاره راوړل شوي او دتهکم په توګه راغلي دی ﴿فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ ٱلنَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ نو څوک دي ډير ظالم؟ (يعني نشته لوي ظالم) له هغه چا چي تړی پر الله باندي دروغ (تحريم دحلالو) دپاره ددې چي ګمراه کړي خلک بی له علمه (دليل او برهان څخه!) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ بيشکه الله نه کوي هدايت قوم ظالمانو ته (په عامه توګه کردو ظالمانو ته) بيا الله خپل پيغمبر ته امر کوي چي دوي ته هغه چي الله حرام کړي بيان کړي فرمايي: ﴿قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُۥٓ إِلَّآ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُۥ رِجْسٌ﴾ ووايه (ای محمده دوي ته) چي نه مومم زه په هغه کښې چي وحی شوي ده ماته (تر اوسه) يو شئ حرام کړي شوي پر کوم خوړونکی چي خوري هغه مګر که وي داشئ مرداره يا وينه بهيدونکی يا غوښه دخنزير نو بيشکه دغه خنزير پليت دي) يعنی ای محمده دمکي کفارو ته ووايه چي زه په قرآني وحی کښې په هيڅ انسان باندي حرام څيزنه مومم مګر هغه چي مرداره وي يا بهيدلي وينه او يا د خنزير غوښه وي څکه چي خنزير مردار او مردار خوړونکي دي ﴿أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ﴾ يا ناجائزه ذبيحه چي وي ورباندي بی دالله (له نامه) غږ کړي شوی وي (په وخت دذبحي کښې) لکه دبتانو په نوم چي حلاله شوي وي او دالکه چي (ګواګی) پخپله فسق وي څکه دبتانو نوم ورباندي يادشوي دي ﴿فَمَنِ ٱضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (بيا که څوک (له لوږي) بی اختياره شی په دغه حال چي نه وي ظالم او نه تيريدونکی نو بيشکه رب ستالوي ښښونکی نهايت مهربان دي) يعني که چيري څوک داضطرار او ضرورت په وخت کښې دغه محرمات وخوري خونه يې دتلذذ او خوند اخيستلو قصد وي چي بی له ضرورته يې خوری او نه هم تر ضرورت زيات (هغه چي هلاکت څني منعه کوي) خوري نو په ده ګناه نشته او الله لوي ښښونکي او زيات مهربان دي ﴿وَعَلَى ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ حَرَّمْنَا كُلَّ ذِى ظُفُرٍ﴾ او پر هغو کسانو باندي چي يهودان دي حرام کړي وو مونږ هر نوک داره ابن عباس (رض) وايي چي دغه لکه اوښان، شترمرغ، مرغابی دي هغه چي پراخی ګوتي نلري ﴿وَمِنَ ٱلْبَقَرِ

[1] - ابوالسعود ۱۴۲/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا ﴾ اوغوايانواوله ميږوحرام کړی وو مونږپردوي باندي وازدي ددوی دواړو ﴿ إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا ﴾ مگرهغه وازده چي بارکړي وه شاگانوددوي دواړو يا کولموباندي به وه ﴿ أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ﴾ ياهغه وازده چي لگيدلی به وه له هډوکي سره (لکه دپښتورگي وازده ) يعني دغه وازدي تولي دوي ته رواد ي ﴿ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُم بِبَغْيِهِمْ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴾ (داتحريم ددي شيانو )جزاورکړي وه مونږدوي ته (په هغه سره )په سبب دظلم ددوي اوبيشکه مونږ خامخا رښتياويونکي يو) يعني دغه تحريم ددوي دظلم اودښمني په سبب وو چي پخوابه دوي نبيان وژل اودسودخوړل اوپه نارواتوگه دخلکومالونه به يې وړل اومونږ پدي کيسه کولو کښې رښتياويونکي يو پدي کښې دي خبري ته تعريض دي چي هغه څوک چي حلال حرام گڼي دروغجن دي اودغه دروغجنان يهودان دي ﴿ فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ ﴾ نوکه نسبت ددرغوکړدوي تاته (پدغه وحي کښې) نووايه (ای محمده دوي ته ) چي رب ستاسی څښتن درحمت پراخ دي ،چي تاسوته ژرترژره په عذاب سره سزانه درکوي سره له دي چي سخت مجرمان ياست په البحرالمحيط کښې وايی چي ددې مثال داسي دي لکه چي ته يوستر معصيت اوگناه ويني خوبياهم وايي چي الله څومره دزيات حلم خاوند دي ستامطلب داوي چي څومره زيات حلم لري چي گناه گاريې پري ايښي دي له دي وروسته يې په رحمت پسي سخت وعيدذکرکړ ﴿ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴾ (اونه گرځاوه شي عذاب دالله له قومه گنهگارانو ) يعنی دالله په پراخ رحمت مه مغروره کيږي دالله عذاب له گنهکارانوځخه نه گرزي (پدي امهال سره )بلکه هغه له رحمت سره سره دسختونيولو (بطش) خاوندهم دي پدي آيت شريف ترغيب اوترهيب دواړه راوړل شوي ترڅوگنهکارله رحمته دالله ﷻ ناهيلي نشي اونه هم گنهگار دالله ﷻ په حلم باندي مغرورشي ﴿ سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ ﴾ ژربه ووايي هغه کسان چي شرک يې کړي دي که اراده فرمايلي وي الله نوشرک به نه ووغوره کړي مونږاونه پلرونوزمونږ اونه به حرام کړی وو مونږ هيڅ شي ،دوي داسي انگيري چي ددوي شرک اوحرامول دشيانو دالله ﷻ په اراده شوي دي که الله ﷻ غوښتي واي چي دوی دی هسي نه کوي نودوي به نه ووکړي گواکي دوی دالله ﷻ اراده خپل دليل گڼی لکه چي يوڅوک په گناه کښې اخته وي اوڅوک ورته ووايي چي داکارمه کوه نوگنهکارورته وايي چي دغه زمالپاره تقديرليکلي د ي نوهيڅکله څني تښتيدلاي اوخلاصيدلای نشم خودغه دليل هيڅ کته نلري ځکه دوي مکلف دي چي ښه کارونه وکړي اوله بدوځخه ځانونه وژغوري خودغه جبريه آند دي چي ناپوهان بله لاره نلري ورباندی آستدلال کوي کوم چي الله تعالی ددوي په ردکښې فرمايي: ﴿ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ﴾ لکه همدغه (مکذبان) نسبت ددروغوکړي وو هغوکسانو (دامتونو)چي پخواله دوي څني ووترهغه پوري چي وڅکل دوي زمونږعذاب ﴿ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ﴾ (ووايه (ای محمده دوي ته )اياتاسي سره څه علمی سند شته چي مونږته هغه راوباسئ ) دلته استفهام انکاري اومراد ورڅخه تهکم دي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ﴾ پيروي نه کوئ تاسي (دهيڅ شي) مګردتش ګومان (اټکل) او نه يې تاسې مګرخودروغ وايي (په الله) ﴿قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ ووايه (دوي ته اى محمده اکه تاسي سره څه دليل نه وي ) نوالله لره دي کامل دليل (څرګنداوقناعت ورکونکی) نو که اراده فرمايلی وي( الله دهدايت ستاسی نو) خامخا هدايت به يې فرمايلي ووتاسي ټولوته ، خوالله تعالى اختيارخلکوته پرې ايښي د ي چې ايمان راوړي اوکه کفر غوره کوي ؟ څوچې تکليف بشپړشي ﴿وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاءَ فَلْيَكْفُرْ﴾ (الكهف: ٢٩) ﴿قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا﴾ (ووايه اې محمده دوي ته !) راولي شاهدان خپل هغوي چې شاهدي ورکوي دوي (پدي) چې بيشکه الله حرام کړي دي دا شيان چې بحيره ،سائبه اونوردي ﴿فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ﴾ (نو که شاهدي ورکړه دوي نوته شاهدي مه وايه له دوي سره ) يعني که چيرى بياهم دغه شاهدان حاضرشول په دروغويې شاهدی ولوستله نوته ددوي شان شاهدي مه وايه اوددوي په ګواهی تصديق اوباورمه کوه ځکه هغه خالص سوچه دروغ دي ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ﴾ اومه کوه متابعت دارزوګانودهغوکسانوچې نسبت ددروغو کوی آيتونو زمونږ ته اودهغو کسانوچې نه راوړي ايمان په اخرت باندي ﴿وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ﴾ حال داچې دوی له ربه خپله سره برابروي (نورشيان په عبادت کښې يعني دبتانوعبادت کوي

بلاغت:

١:(حَمُولَةً وَفَرْشًا ) ددې دووکلموتوترمينځ دطباق صنعت دی ځکه حمولة هغه لويان چې باروړلاي شی اوفرشاهغه کوچني چې ځمکي ته نژدي اولکه فرش غوندی د ي.

٢:داکلام چې فرمايي (خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ) له باريکو استعاراتوڅخه دی اودغه ترټولو خوراابلغ تحذيراوويرونه ده چې دشيطان له ملګرتيا ځانونه وژغوري([1])

٣:(غَفُورٌ رَّحِيمٌ ) دواړه دمبالغي صيغي دی چې خورابښونکی اوزيات مهربان يې معناوی د ي

۴:په البحرالمحيط کښې وايي چې دغه جملې چې فرمايي(رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ) لومړي يې جمله اسميه ده ځکه هغه ترفعليه جملې په اخبارکولوکښې ابلغ اوزياته اغيزمنه ده اودالله ﷻ دپراخ رحمت سره مناسبه ده اودوهمه جمله فعليه ده چې فرمايي (وَلَا يُرَدُّ ) ددې لپاره چې له دواړو صفتونو څخه اخبار يورنګه برابرونشي ځکه درحمت دروازه خورا پراخه ده[2]

---

[1] تلخيص البيان ص١١.

[2] - البحرالمحيط ۴/٢۴٦.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## فائده او نکته:

پدي کلام دالله تعالی کښې چي فرمايي: (قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا) دې خبري ته اشاره ده چي تحريم په وحي سره معلوميږي دايوازي دهواهوس مارينې (غوښتني) نه دي او داچي الله ﷻ داحکاموشارع او رسول الله دهغه مبلغ او پيغام رسونکی دي لکه چي الله تعالی وايي: ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلْهَوَىٰٓ ۝٣ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْىٌ يُوحَىٰ ۝٤ ﴾ النجم: ٣ – ٤

## الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ قُلْ تَعَالَوْا۟ أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ ۖ أَلَّا تُشْرِكُوا۟ بِهِۦ شَيْـًٔا ۖ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا ۖ وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَوْلَٰدَكُم مِّنْ إِمْلَٰقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ۖ وَلَا تَقْرَبُوا۟ ٱلْفَوَٰحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۖ وَلَا تَقْتُلُوا۟ ٱلنَّفْسَ ٱلَّتِى حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ۝١٥١ وَلَا تَقْرَبُوا۟ مَالَ ٱلْيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُۥ ۖ وَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ وَٱلْمِيزَانَ بِٱلْقِسْطِ ۖ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۖ وَإِذَا قُلْتُمْ فَٱعْدِلُوا۟ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۖ وَبِعَهْدِ ٱللَّهِ أَوْفُوا۟ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ۝١٥٢ وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِى مُسْتَقِيمًا فَٱتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا۟ ٱلسُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِۦ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝١٥٣ ثُمَّ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ تَمَامًا عَلَى ٱلَّذِىٓ أَحْسَنَ وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لَّعَلَّهُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ۝١٥٤ وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ مُبَارَكٌ فَٱتَّبِعُوهُ وَٱتَّقُوا۟ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝١٥٥ أَن تَقُولُوٓا۟ إِنَّمَآ أُنزِلَ ٱلْكِتَٰبُ عَلَىٰ طَآئِفَتَيْنِ مِن قَبْلِنَا وَإِن كُنَّا عَن دِرَاسَتِهِمْ لَغَٰفِلِينَ ۝١٥٦ أَوْ تَقُولُوا۟ لَوْ أَنَّآ أُنزِلَ عَلَيْنَا ٱلْكِتَٰبُ لَكُنَّآ أَهْدَىٰ مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَصَدَفَ عَنْهَا ۗ سَنَجْزِى ٱلَّذِينَ يَصْدِفُونَ عَنْ ءَايَٰتِنَا سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ بِمَا كَانُوا۟ يَصْدِفُونَ ۝١٥٧ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَوْ يَأْتِىَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِىَ بَعْضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ ۗ يَوْمَ يَأْتِى بَعْضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَٰنُهَا لَمْ تَكُنْ ءَامَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِىٓ إِيمَٰنِهَا خَيْرًا ۗ قُلِ ٱنتَظِرُوٓا۟ إِنَّا مُنتَظِرُونَ ۝١٥٨ إِنَّ ٱلَّذِينَ فَرَّقُوا۟ دِينَهُمْ وَكَانُوا۟ شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِى شَىْءٍ ۚ إِنَّمَآ أَمْرُهُمْ إِلَى ٱللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَفْعَلُونَ ۝١٥٩ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَىٰٓ إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝١٦٠ قُلْ إِنَّنِى هَدَىٰنِى رَبِّىٓ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝١٦١ قُلْ إِنَّ صَلَاتِى وَنُسُكِى وَمَحْيَاىَ وَمَمَاتِى لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝١٦٢ لَا شَرِيكَ لَهُۥ ۖ وَبِذَٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْمُسْلِمِينَ ۝١٦٣ قُلْ أَغَيْرَ ٱللَّهِ أَبْغِى رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَىْءٍ ۚ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ۝١٦٤ وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ ٱلْأَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِى مَآ ءَاتَىٰكُمْ ۗ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ ٱلْعِقَابِ وَإِنَّهُۥ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌۢ ۝١٦٥ ﴾

الأنعام: ١٥١ – ١٦٥.

Bawar.net



مناسبت اوتړاو:

کله چې الله ﷻ هغه دکفاروپه افتراء حرام شوی توکی بیان کړل وروسته یې هغه چې الله ﷻ غلو، دانو، میووا وحیواناتوڅخه حلال ګرزولي راوړل نودلته الله پاک هغه څه ذکر کوي چې په حقیقي توګه حرام اوضرررسونکی زیانمن شیان دي او دغه لس ګوني وصیتونه یې راوړل چې دبشریت نیکمرغي ورپوري تړلي اوګرد اسماني شرائع وربانذي متفق دي.

لغتونه:

(أَتْلُ) ولولم او کیسه یې درته وکړم (إِمْلَٰقٍ) فقرچې (أملق الرجل) کله چې ناوسي اومسکین شی (أَشُدَّهُۥ) قوت ته ویل کیږي اوداهغه دنکاح اوبلوغ وخت دی (أشدّ) دجمعي صیغه ده چې واحدنه نلري (بِٱلْقِسْطِ) په عدل سره چې نقصان پکښې نه وي (ٱلسُّبُلَ) دسبیل جمع اوهغه لاري ته وایي (شِيَعًا) دشیعه جمع اوتولۍ فرقوته وایي څوک چې دخپل مذهب لپاره یوموټي کیږي (قِيَمًا) مستقیم اوسم چې کږوالي پکښې نه وي (وَنُسُكِي) (نسک) د(نسیکة) جمع دي او(ذبیحي) ته وایي زجاج وایي چې معنایې (عبادت زما) دي اوله دي څخه ناسک هم اخیستل شوي هغه چې الله ﷻ ته په عبادت نزدیوالی کوي[1]

تفسیر:

﴿ قُلْ تَعَالَوْا۟ أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ ﴾ (ورته ووایه ای محمده ادوی ته) راشي چې زه ولولم (درواوروم) هغه چې حرام کړي د ي رب ستاسی پرتاسي ) په یقیني توګه نه په تخمین ،اوګومان باندي ﴿ أَلَّا تُشْرِكُوا۟ بِهِۦ شَيْـًٔا ﴾ چې شریکان مه نیسي تاسي له دغه (الله) سره هیڅ شئ ﴿ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا ﴾ (اونیکي کوی) تاسي له مورا وپلارسره) دغه هم دمحرماتوپه کتار کښې یادکړل څکه (أمر) په یوشي باندي (نهي) له ضدهغه څخه وي ګواکي چې ویلي یې د ي چې له موراوپلارسره بدچلندمکوي ابوالسعود وایي چې پدي کښې داراز نغښتي دي چې زیاته مبالغه اوپدي دلالت وکړي چې دبدسلوک پرېښودل دموراوپلار دحقوقوپرځاي کولوکښې بسنه (کفایت) نکوي[2] ﴿ وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَوْلَٰدَكُم مِّنْ إِمْلَٰقٍ ﴾ اومه وژني تاسی اولادخپل له (ویري د) فقر(خواري) نه ابن جوزی (رح) وایي چې مراد ځني هغه دلونو ژوند ي خښول دي چې دو ي دغه کاردلوږي اوخواري له ویري کاوو[3] ﴿ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ﴾ (مونږ روزي درکووتاسي ته اوهم دوي ته )څکه الله دبندګانورازق (روزی رسان )دي ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا۟ ٱلْفَوَٰحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ﴾ (اومه نژدي کېږۍ بی حیایی ناکاره کارونو ته هغه چې ښکاره وي له دوي اوهغه چې پټ وي )یعني منکراتو کبائروته هغه که پټ وي که ښکاره مه نژدي کېږي !.

---

1- تفسیر القرطبی ۱۵۲/۷.
2- ابوالسعود ۱۴۶/۲.
3- زادالمسیر ۱۴۸/۳.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ابن عباس (رض) واي چي دوي به په جاهليت کښې دزناکولو څه باک نه درلود چي په پټه ترسره شي خوکله چي به چابښکاره زناکوله نوهغه به يې بده ګڼله الله پاک دواړه دوله حرام وګرزول (۱) ﴿ وَلَا تَقْتُلُوا۟ ٱلنَّفْسَ ٱلَّتِى حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾ اومه وژني تاسي نفس هغه چي حرام کړی دي الله (وژل يې) مګر(وژني يې) په حقه سره چي موجب يې وي اوددې تفسير درسول الله صلی الله عليه وسلم قول داسي کوي (ديومسلمان وينه تويول چاته روانه دي مګرپه يوله دي دريوحالتونوکښې يوهغه واده لرونکي چي زناوکړي بل په قصاص باندی ديوچاوژل اودريم هغه څوک چي دين يې پري ايښې (مرتد) اوله مسلمان امت څخه بيل شوی وي ) ﴿ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ (دا(څلورنهی اويو امر) حکم کړي دي الله تعالی تاسوته پدي سره لپاره ددې چي عقل (وچلوی )تاسی، يعني دامذکور شيان هغه څه دي چي الله پاک يې تاسوته دساتلواوپرڅای کولو مارينه (حکم کوي) ښايي تاسوددې تکاليفواوحکمونوګتي په دين اودنياکښې دخپلو عقلونوپه کاراچولو سره وپيژنئ ابوحيان (رح) وايي چي د(وصاکم ) په لفظ کښې مهرباني اولطف نغښتي دی يعني دوی دالله ﷻ اوصياء جوړشول چي دغه دالله پاک داحسان څرګنده نښه ده (۲) ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا۟ مَالَ ٱلْيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُۥ ﴾ (اومه نژدي کېږي تاسی مال ديتيم ته مګر(ورنژدي شي ) په هغي طريقي سره چي هغه ډيره ښه وي ترهغه پوري چي ورسيږي دغه يتيم قوت (ځلميتوب) خپل ته په هيڅ ډول له ډولونوديتيم مال ته مه ورنژدي کېږي مګر هغه ډول چي دده لپاره خوراګټوروي ترڅوچي هغه بلوغ ته رسيږي دلته منع له نژدي والي څخه ټولو تصرفاتو ته ورغلي نوکله چي له نژدې کيدلو يې منع راغله له خوړلو يې په طريقه اولی منع راغلي ده اوهغه ډول چي ديتيم لپاره خوراګټوروی داچي مال يې په کارواچول شي ابن عباس (رض) وايي معناداچي ديتيم لپاره داسی دښيګړي کاروکړي اودهغه په سبب (له شريعت اوله دودسره سم ) دده له مال نه څه واخلي ﴿ وَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ وَٱلْمِيزَانَ بِٱلْقِسْطِ ﴾ اوپوره کوی تاسي پيمانه اوتول په عدل سره (په راکړه ورکړه کښې) ﴿ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ (نه ورکوو موږ تکليف هيڅ نفس ته مګرپه اندازه دتوان دهغه )يعني موږ هيڅوک دهغه له توان څخه لوړنه مکلف کوو بيضاوي وايي معنايې داچي پداسي څه يې مکلف کوو چي په توان کښې يې وي اونه ورباند ي پيټي کېږي اودغه خبره يې دپيماني پوره کولو څخه وروسته راوړه څکه دحق پوره ورکول سخت اومشکل کاردي نويې وفرمايل چي پرتاسو باندي هغه څه دي چي ستاسو په توان اوطاقت کښې وی اوله هغه پورته نورتاسی ته عفو اوبښل شوی دي (۳) ﴿ وَإِذَا قُلْتُمْ فَٱعْدِلُوا۟ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ﴾ اوکله چي خبري کوي تاسي نوحق (رښتيا )ووايي اګرکه وي (مقول له اويامقول عليه )خاوند دخپلوي يعني تاسو په حکومت اوشهادت کښې عدل کوئ که څه هم مشهودعليه

---

[۱] – الطبری ۲۱۹/۱۲.

[۲] – البحر ۲۵۲/۴.

[۳] – البيضاوی ص ۱۸۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ستاسی له خپلوانو څخه وی ﴿ وَبِعَهْدِ ٱللَّهِ أَوْفُوا۟ ﴾ (اودالله په عهدتاسي وفاکوي) يعنی کله چي وعده وکړي نوورباندي وفاکوی. قرطبی وايي چي دغه دټولو هغوشيانو لپاره عام دي چي الله بندګانو ته دهغوي عهد ورکړي وی اووددې احتمال هم لري چي هغه وعدې مراد وی کوم چي دخلکوترمينځ يې ترونونه شوي وی اوالله ﷻ ته يې ددې لپاره نسبت شوی دي څکه هغه يې په ساتلو اووفاکولوامرکړی دی[1] ﴿ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ دغه (اتباع دسمې لارې) حکم کړي دي (الله) تاسی ته پدي سره لپاره ددې چي پندواخلي تاسی ! ﴿ وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِى مُسْتَقِيمًا فَٱتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا۟ ٱلسُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِۦ ﴾ او (حکم کړی دی الله چه) په تحقيق چي دغه (ددې سورت ذکر شوي احکام )لاره زماده برابره (جنت ته ) نومتابعت وکړی. تاسی ددغي (لاري) اومکوی متابعت د(نورو کږو ) لارونوتارپه تاربه کړي (دغه متابعت) تاسی له لاري (سمي) دالله نه ) يعنی دغه زما سم مستقيم دين چي ستاسو لپاره مې شريعت ګرزولي په هغه منګولي ولګوی اودنورومختلفو اديانوپيروي مکوی. چي کړي لاري وی نوتاسي به له سمي لاري چي دهدايت لاره ده وار وي له ابن مسعود(رض) نه روايت شوی چي يوه ورځ مونږ ته رسول الله صلی الله عليه وسلم يوخط وکيښ اوبيايي وويل دغه دالله ﷻ لاردي بيايې له ښی اوکيڼ لوري نورخطونه اوکرښی وايستلي اوويي ويل دغه لاري دی چي په هريوه يې شيطان ولاړدي اوخلک وربولي بيايې داآيت شريف تلاوت کړ ﴿ وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِى مُسْتَقِيمًا فَٱتَّبِعُوهُ ۖ ﴾ [2] ﴿ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ (دغه (اتباع دسمې لاري ) حکم کړي دی (الله )تاسي ته پدې سره لپاره ددې چي ځان وساتی. تاسي (له ګمراهي نه ) توصيه يې دتاکيد لپاره مکرره راوړه يعنی ښايي چي تاسوددوزخ له اوره ځانونه داوامروپه امتثال اودنواهيوپه اجتناب کولو وساتی. ابن عطية وايی څرنګه چي لومړنی محرمات داسی ووچي هوښيار سړي به پکښی نه لويدو نويې په ﴿ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ تعبيروفرمايل اووروستي محرمات بياداسی شهوات وو چي هغه څوک وربانډي اخته کيدل چي په يادبه يې نه وو نويې تعبير په ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ راغي اوپه سمه لاره تلل دفضائلو فعل دي اوهغه تقوی ته اړتيا لري نوځکه يې تعبيرپه ﴿ تَتَّقُونَ ﴾ سره وشو[3]. ﴿ ثُمَّ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ تَمَامًا عَلَى ٱلَّذِىٓ أَحْسَنَ ﴾ پس (له دی نوداواوری)چي ورکړي وومونږ موسی ته کتاب(تورات) دپاره دتمام (پوره کول دنعمت) پرهغه چاباندی چي نيکي کوي طبري وايي چي معنايي داده چي ورکړي دي مونږموسي (عليه السلام ) ته کتاب لپاره دبشپړولو دنعمت زمونږ پردوي باندي چي هغه په امراونهی عمل کړ ي وو څکه موسي (عليه السلام) ته دالله ﷻ له لوري د تورات ورکول نعمت اوسترمنت (احسان) ووچي هغه پخوانيو اعمال

---

[1] القرطبی ۱۳۷/۷.
[2] مختصرابن کثير ۶۳۳/۱.
[3] البحرالمحيط ۲۵۴/۴.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او طاعت ترسره کړی وو (¹) ﴿ وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ ﴾ او (لپاره د بيان او ) تفصيل د هر (ديني ) څيز (چي بني اسرائيل ورته اړوو ) ﴿ وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ مُبَارَكٌ ﴾ او دا (قرآن يو ) کتاب دی چي نازل کړی دی مونږ هغه مبارک (برکتناک ) په محمد صلی الله عليه وسلم چي خورا ډير ګټور او ديني دنيوي فوائد پکښي دي ﴿ فَٱتَّبِعُوهُ وَٱتَّقُوا۟ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ نو متابعت وکړي تاسی د دغه (قرآن ) او وويريږي (له عذابه او خان وژغوري له مخالفته يې ) لپاره ددې چي درباندی رحم وکړل شي . يعنی منګولی ولګوي پدي قرآن او ځان لپاره يې پيشوا (امام) وټاکي له دي څخه وويريږي چي مخالفت يې وکړي ترڅو دالله د رحمت او مهربانی هيله من شی ﴿ أَن تَقُولُوٓا۟ إِنَّمَآ أُنزِلَ ٱلْكِتَٰبُ عَلَىٰ طَآئِفَتَيْنِ مِن قَبْلِنَا ﴾ (او نازل کړی وو مونږ دغه کتاب لپار ه ددې) چي و(نه) وايي (ای عربو په قيامت کښې) بيشکه خبره داده چي نازل کړی شوی وو کتاب پردوو طائفو (يهود او نصاراوو ) پخواله مونږه ) يعنی مونږ په دغه ستروصف موصوف کتاب چي دګردو ښيګړو د دنيا او اخرت راغونډونکی (جامع) دی نازل کړي ددې لپار ه چي تاسی په اخرت کښې ونه واياست چي مونږ ته کتاب ندی راغلي چي مونږ يې متابعت وکړلای بلکه سپيڅلي کتابونه خو په يهودانو او نصاراوو را نازل شوی وو ابن جرير وايي پدغه آيت سره چي د قرآنکريم نزول په حضرت محمد صلی الله باندی ښيي الله تعالی د عربو دغه دليل غوڅ کړ ﴿ وَإِن كُنَّا عَن دِرَاسَتِهِمْ لَغَٰفِلِينَ ﴾ (او بيشکه شان دادی چي وو مونږ له لوستلو ددوي څخه عاقلان ) يعني مونږ په هغه څه نه پوهيدلو کوم چي ددوي په کتابونو کښې راغلي وو ځکه هغه زمونږ په ژبه نه وو ﴿ أَوْ تَقُولُوا۟ لَوْ أَنَّآ أُنزِلَ عَلَيْنَا ٱلْكِتَٰبُ لَكُنَّآ أَهْدَىٰ مِنْهُمْ ﴾ (يا چي و(نه) وايي (ای عربو په قيامت کښې) که واي مونږ چي نازل کړل شوی واي پر مونږ باند ي کتاب (لکه چي پردوي نازل شوي ) نو هرو مرو به مونږ تر دوي ښه لاره ميندونکی وای) ځکه مونږ زيات ذکاوت لرو او په عمل کولو کښې تردو ي پياوړي يو او د پيغمبر د امر او حکم ژر منونکی وو ﴿ فَقَدْ جَآءَكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ ﴾ (نو په تحقيق راغلي دی تاسي ته حجت ښکاره (عربی قرآن) له ربه ستاسی او هدايت او رحمت )يعني تاسو ته ستاسي د پيغمبر (محمد صلی الله عليه وسلم )په ژبه قرآن عظيم نازل شوی چي حلال او حرام پکښې دي د زړه لپاره هدايت او لار ښونه او د بندګانو لپاره د الله رحمت دی قرطبی وايي معنادا چي عذر د محمد ﷺ په راتلو زايل شو نو غير مقبول دی ابن عباس (رض) وايي چي له (بينة) څخه مراد حجت او هغه نبي ﷺ او قرآن کريم د ي ﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ نو څوک دی زيات ظالم (يعنی نشته لوي ظالم ) له هغه چا چي نسبت د دروغو کوي په آيتونو د الله ﴿ وَصَدَفَ عَنْهَا ﴾ او څنګ کوي له د ی آيتونو ابو السعود وايي چي معنايي داده چي خلک څني ګرزوي نو دلته هغه د ضلال او اضلال يو ځای کيدل کوي (²) ﴿ سَنَجْزِى ٱلَّذِينَ يَصْدِفُونَ عَنْ ءَايَٰتِنَا سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ بِمَا كَانُوا۟ يَصْدِفُونَ ﴾ (ژر به

---

¹ -الطبری ۱۲/۲۳۶.

² -ابو السعود ۲/۱۴۹.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مونږ سزاوار کړو هغه کسانو ته چې څنگ کوي گرځي دوي له ایتونو زمونږنه سخت عذاب په سبب ددې چې دوي ووچې څنگ به یې کاوو (گرزیدل به له حق څخه اودانبیاوو به یې تکذیب کاوو) دغه ددوي لپاره وعید دي ﴿ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ نه کوی انتظار دوي د(هیڅ شي)مگرددې چې راشي دوی ته ملائک د(موت یاعذاب) اوداهغه وخت د ي چې بیابه توبه ایستل ورته گټه نه رسوي ﴿أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ ﴾ (یاراشي عذاب د ) رب ستایاراشي ځیني دلائل (دقدرت) درب ستا ) ابن عباس (رض) وایي چې معنایې داده چې راشي حکم درب ستا ددوي دوژلو اویا نورو په باب طبري وایي مراد دادي چې راشي رب ستا دقیامت په تم ځای کښې ترڅودخلکو ترمنځ جلا والي وکړي اویاراشي ځیني دلائل دقدرت درب ستا چې دلمرراختل دی له لویدیزڅخه (۱) ﴿ يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَٰنُهَا لَمْ تَكُنْ ءَامَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِيٓ إِيمَٰنِهَا خَيْرًا ﴾ (په هغه ورځ کښې چې راشي ځیني دلائل دقدرت درب ستانه به رسوي گټه هیچاته ایمان راوړل دده چې ایمان یې پخوانه وي راوړي یانه وي چې کسب کړی یې وي په ایمان خپل کښې څه خیر(نیکی) یعني کله چې دقیامت څه نښي ځرگندي شي نوکافران چې په دغه وخت کښې ایمان راوړي نه به ځني منل کېږي اونه به دهغه چاڅخه چې هیڅ نیکی یې نه وی کړ ي توبه ومنلی شئ طبري وایي معنایې داچې دمشرکانوایمان راوړل به له دغه آیت راتلوروسته ورته گټه نه رسوی اوداپه سبب ددې چې په دوي باندي به دالله ﷻ دامر سترهیبت خپور وي ددوی دایمان حکم گواکی داسی دی لکه چې دوی دقیامت په ورځ ایمان راوړي (۲) اوپه حدیث شریف کښې راځي چې :ترهغو قیامت نه راځي څوچې لمرله مغرب څخه راوخیژي اوکله چې لمرله لویدیزڅخه راپورته شي اوخلک یې ووینې گرد(ټول) خلک به ایمان راوړي خوداهغه وخت دي چې هیچاته دهغه ایمان گټه نه رسوي چې پخواتردې بې ایمان راوړ ي نه وي (۳) ﴿ قُلِ ٱنتَظِرُوٓاْ إِنَّا مُنتَظِرُونَ ﴾ (ووایه (ای محمده) دوی ته چې انتظار کوي تاسي بیشکه مونږهم انتظار کونکی یو ) دغه دتهدید اووعیدامر دي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ فَرَّقُواْ دِينَهُمْ وَكَانُواْ شِيَعًا ﴾ بیشکه هغه کسان چې تارپه تارکړ ي یې دي دین خپل اوشول دوي فرقي فرقي ابن عباس (رض) وایي چې دغه یهود اونصارادي چې دابراهیم حنیف دین یې توټي توټي کړی د ي ﴿لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ﴾ نه یې ته له دوی نه په هیڅ شي کښې (یعنی ته له دوي څخه برئ یې ) ﴿ إِنَّمَآ أَمْرُهُمْ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ بیشکه هم داخبره ده چې امر(کار) ددوي (سپارلی شو یدي )الله ته ،ددوي جزااوعقاب به الله ورکوی ﴿ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُواْ يَفْعَلُونَ ﴾ (بیابه خبرکړی (الله )دوي په هغه چې وودوی چې کول به یې) یعنی ددوي په بدو افعالوبه یې اگاه کړ ي طبري وایي په اخرت کښې به ددوی دتیرو کړوورو خبر ورکول

---

۱ -الطبری ۱۲/۲۴۵.
۲ -الطبری ۱۲/۲۶۶.
۳ -اخرجه البخاري.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شي اوجزابه ورباندي ي ورکړي (١) ﴿ مَن جَآءَ بِٱلۡحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشۡرُ أَمۡثَالِهَا ﴾ هرهغه چي راتګ بي وکړيه يوه نيکي نوده ته به (جزاءد) لسو (نيکيو په) مثل دهغي (نيکي ورکول شي) يعنى څوک چي دقيامت په ورځ يوه نيکي راوړي دهغي په مثل دلسو جزاء به مومی اودغه دالله دفضل اوکرم له کبله اوداترټولو لږ جزاده څکه دنيکى کله کله تراووه سوو پوري بدل ورکول کېږي اوتر د ي لاهم زيات ﴿ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجۡزَىٰٓ إِلَّا مِثۡلَهَا ﴾ اوهرڅوک چي په بدي راتله وکړي نوسزانشي ورکولی (ده ته) مګرپه مثل دهغي (بدی) ﴿ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ ﴾ اوپه دوي به ظلم ونکړ ی شي يعنى ددوي له جزا څخه به هيڅ هم کم نشي په قدسي حديث شريف کښې راځي چي :الله ﷻفرمايي څوک چي يوه نيکي راوړي هغه ته دلسونيکيو يازيات ثواب ورکسوم. اوڅوک چي يوه بدی راوړي دهغي يوي سزابه ورکسوم اويابه بي ورته بښم (٢) نوپه نيکيو کښې زياتوالى دالله دفضل اومهرباني له کبله دى اوبدي چي په مثل بدل ورکول کېږي دغه دعدل له سببه ده ﴿ قُلۡ إِنَّنِي هَدَىٰنِي رَبِّيٓ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴾ ووايه (اى محمده دغو مکذبانو ته) بيشکه ماته هدايت کړى دى رب زما لاري سمى برابري ته اودين حق ته چي ابراهيمي دين دى ﴿ دِينٗا قِيَمٗا مِّلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۚ ﴾ (دين صحيح برابرملت (دين) دابراهيم حال داچي حنيف (مائل له باطل وحق ته) ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ (اونه وو له مشرکانو) يعني حضرت ابراهيم مشرک نه وواوپدي کښې دغي خبري ته تعريض دي چي څوک له اسلامه مخالفت وکړي نوهغه مشرک دي څکه له ابراهيمي دين څخه ووت ﴿ قُلۡ إِنَّ صَلَاتِي ﴾ ووايه (اى محمده دوي ته) چي بيشکه لمونځ زما (هغه چي ز ه بي خپل رب ته ګذارم) ﴿ وَنُسُكِي ﴾ اوقرباني (ذبح) زما (٣) ﴿ وَمَحۡيَايَ وَمَمَاتِي ﴾ ژوندون زمااومرګ زما (اوهغه چي زه بي په دغه ژوند کښې له نيکواعمالوترسره کوم ﴿ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ خاص الله لره دي چي پالونکى دټولو عالميانودى (نه دهغه چالپاره چي تاسوورسره شريکان نيولى دي) ﴿ لَا شَرِيكَ لَهُۥۖ ﴾ نشته هيڅ شريک ده لره ﴿ وَبِذَٰلِكَ أُمِرۡتُ ﴾ اوپه همدي (اخلاص دعبادت الله ته) حکم کړي شوي دي ما لره ﴿ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلۡمُسۡلِمِينَ ﴾ اوزه اول دمسلمانانو (الله ته غاړي اېښودونکو) څخه يم ﴿ قُلۡ أَغَيۡرَ ٱللَّهِ أَبۡغِي رَبّٗا ﴾ ووايه (اى محمده دوي ته) ايابي له الله غواړم زه بل رب ؟ (پالونکى بلکه نه بي غواړم) دغه تقرير اودکفارو لپاره توبيخ دي اوسبب بي دادي چي دوى رسول الله ﷺ ته بلنه ورکړه چي ددوي دخدايانو عبادت وکړي ﴿ وَهُوَ رَبُّ كُلِّ

---

١ -الطبرى ٢٧٤/١٢.

٢ -رواه مسلم.

٣ -دغه دابن عباس اومجاهد قول دي اوطبرى غوره کړي ځينى مفسرين بياوايي چي له نسک څخه عبادت مراددى لومړي قول راجح دي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شَيْءٍ﴾ حال داچي دي (پالونکی) دهرڅیز دي یعني هغه دهرشي خالق اومالک دي نوڅنګه بنايي چي زه بل رب وغواړم؟ ﴿وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا﴾ اوکسب نه کوي د(بدی) هیڅ یونفس مګر(ضرریې دي)په (ذمه د )ده ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ اونه باروي هیڅ نفس ګنهکار ګناه دبل نفس (بلکه هرڅوک خپل باروړي ) ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ﴾ (بیا خاص طرف درب ستاسی ته بیرته ورتلل ستاسی دي (په قیامت کښې) نوخبربه کړي تاسي په هغه شي چي وی تاسي چي په هغه کښې به مواختلاف کاوو ) دغه وعیداوتهدیددي یعنی ستاسومرجع په ورځ دقیامت کښې الله ﷻ ته دي هلته به تاسوته دخپلو اعمالو سره سم جزا درکړل شي اونیکوکاربه موله بدکار څخه بیل شي ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ﴾ (اودغه (الله )هغه ذات دي چي ګرځولی یې تاسی خلیفه ګان دځمکي )یعني الله پاک تاسودپخوانیوامتونو خلیفه ګان ګرزولي یاست چي تاسو ځیني دځینونورو اخلاف یاست طبری وایي معنایې داده چي تاسو می دپخوانیوهلاک شوي امتونو خلیفه ګان کړی یاست چي په ځمکه کښې ددوي خلافت ترسره کړي[1] ﴿وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ﴾ اوپورته کړي یې ځیني ستاسی دپاسه پرځینونوروپه درجومرتبوکښې یعني ستاسواحوال یې مختلف کړي د ي په بډایي اوفقر،علم اوجهل ،قوت اوضعف اونورو کښې چي بندګان سره متفاوت وي ﴿لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ﴾ دپاره ددې چي تاسي وازمویي په هغو (حکمونو) کښې چي تاسي ته یې درکړی دی ابن الجوزي وایي ترڅو تاسي وازمویي په شکر کولو دنعمتونو اوهغه څه له تاسو څرګند شي چي عذاب اوثواب ورباندي ورکول کیږي[2] ﴿إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ بیشکه رب ستادیرژر دي عذاب (دده په هغه چاچي نافرماني یې کوي) اوبیشکه الله د ي ښه بخښونکی (دبندګانو ) ډیر رحم والادي (په هغوی ) په تسهیل نومي کتاب کښې وایي چي دلته یې دخوف اورجاء ترمینځ اجتماع وکړه اومرادله ژرعذاب څخه یاخوپه دنیاکښې مراددي چي ژرېږي ونیسي اویاپه آخرت کښې چي هغه راتلونکي دي اوهرراتلونکي نژدې دي [3].

## بلاغت:

۱:(وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ ) دلته (سبل) یعني لارې له بدعتونو اوګمراهیوڅخه چي منحرف مذاهب د ي عبارت اواستعاره شو ي د ي.

۲:پدې کلام کښې چي فرمایي (لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا ) تنکیردعموم اوشمول دافادي لپاره راغلي دي.

۳:(وَبِعَهْدِ اللَّهِ ) دلته اضافت دتشریف اوتعظیم لپاره دي.

---

[1] -الطبری ۲۸۷/۱۲.
[2] -زادالمسیر ۱۶۳/۳.
[3] -التسهیل ۲۸/۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴:پدي جمله کښې چي فرمايي: (يَصۡدِفُونَ عَنۡ ءَايَٰتِنَا) دظاهر راتلل دضمير په ځاى کښې (عنها) ددې لپاره دي چي ددوى دطغيان اوسرغړوني بدي په ډاګه شي.

۵:پدي کلام کښې چي (قُلِ ٱنتَظِرُوٓاْ) دى امردتهديد اووعيد لپاره دي

۶:(لَا يَنفَعُ نَفۡسًا إِيمَٰنُهَا) دآيت ترپايه دغه کلام دبيان دعلم په هغه صنعت چي (لف) بې بولي مشتمل دى اواصلى کلام داسى ده چي :(يوم ياتى بعض آيات ربک لاينفع نفسالم تکن مومنة قبلُ ايمانابعد،ولانفسالم تکسب فى ايمانهاخيراقبل ما تکسبه من الخيربعد) خودغه کلام پداسي ډول نغاړل شوى چي دواړه خبري يوه جوړه[1] شوى اودغه اختصار قرآني اعجاز اوبلاغت ښيي دا افاده دانتصاف مؤلف راوړي ده.

۷:ددې کلماتوترمينځ چي (ظهر) او(بطن) او(حسنة) او(سيئة) دطباق صنعت دى اودغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

۸:(وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزۡرَ أُخۡرَىٰۚ) شريف رضى وايي چي په حقيقت کښې خوپه شاګانوباندي بارول نشته خودغه دګناهونواستعاره شوي چي لطيفه استعاره ورته ويلاي شو[2].

فايده:

الله تعالى فرمايلى چي (سبيله) واحد ذکر کوي څکه حق يودي او(السبل) بې څکه جمع راوړي دي چي دګمراهيولاري ډيري اوڅانګي دي.

تنبيه:

حافظ ابن کثير وايي چي په قرانکريم کښې ډيرځله الله ﷻ دوه صفتونه سره څنګ په څنګ راوړي چي (إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ ٱلۡعِقَابِ وَإِنَّهُۥ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ) لکه دالله ﷻ داقول چي وايي: ﴿نَبِّئۡ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا ٱلۡغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ۝٤٩ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ ٱلۡعَذَابُ ٱلۡأَلِيمُ ۝٥٠﴾ ﴿الحجر: ٤٩ - ٥٠﴾ اودغه رنګه نورايتونه چي په ترهيب اوترغيب مشتمل وى کله کله بندګان دخان لوري ته بولي جنتونه ورپه يادوي اونعمتونه چي ورسره دى ورښيئ اوکله کله بيايې ويروي اور،عذابونه اوتکاليف ورته يادوي قيامت ته يې متوجه کوي کله کله بيادواړه يوځاى راوړى چي له دواړو سم په اندازه سره ګټه واخلي.

دالله ﷻ په مرسته دالانعام سورت تفسير بشپړشوولله الحمدوالمنة

***

---

[1] - حاشيه الكشاف ۶۴/۲.

[2] - تلخيص البيان ص۴۰.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



# دالاعراف سورت مکي اودوه سوه شپیته آیتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دالاعراف سورت دمکي سورتونوله خورااوږدوسورتوڅخه يودي اودالمومنۍ سورت دي چي دانبياءعليهم السلام کيسي په تفصيل سره وړاندي کوي اودنده يې دنورومکي سورتونوپه شان ده چي داسلامي دعوت بنستونه ايږدي دالله ﷻ توحيدبيانوي دبعث اوجزاخبري کوي اودوحي اورسالت تقرير راوړي.

* سورت په لومړي پيل کښې قرآنکريم ته دتلپاتي معجزي وايي اوپدي ټينګارکوي چي دغه قرآن درحمان اومهربان الله په ټول بشريت باندي يونعمت دی نوپردوی لازمه ده چي دهغه لارښوني اوهدايات عملي کړي ترڅو ددارينو نيکمرغي يې په برخه شي.

* اوددوي نظردي ته راجلبوي چي هغوی له يوه پلاره پيدا اودالله هغه تکريم چي دغه انساني نوعی ته يې وربښلی ددوي دپلارپه هکله څرګند وی چي پرښتوته يې حکم وکړهغه ته سجده ولګوي وروسته يې دشيطان له چل اودوکي خبروي اوويروي چي هغه څرنګه دخلکوپه لارکښې تيارناست دي چي له سمی لاري څخه يې کږي ته بوزي اوله خپل خالق څخه يې ليري کړي.

* په تحقيق سره چي الله دادم (عليه السلام ) کيسه له ابليس سره اودهغه راوتل له جنت نه اوځمکی ته راکوزيدل يې ياد کړي اولکه چي دخيراوشر، حق اوباطل ترمينځ جګړي ته يې پکښې اشاره فرمايلي وی اودابليس لعين هغه چل ول چي دادم داولاد لپاره يې په کاروی بيان کړی نودالامل دي چي الله پاک دآدم زامنوته وروسته له دي چي دابليس دښمني يې ددوي له پلاره سره ورته بيان کړی څلور خلی پرله پسی غږکوی اودادم په زامنويې ستايي چي :(يابنی آدم ) اوداد سورت هغه ځانګړي نداا وغږدي چي انسانان له خپل هغه دښمن څخه ويروي کوم چي له پيله يې دښمني ورسره درلوده اوددوي پلار آدم ته يې وسوسه وراچولي وه ترڅويې وښويااوو اودالله ﷻ دحکم په مخالف کښې يې وغورځاووفرمايي: ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ كَمَآ أَخۡرَجَ أَبَوَيۡكُم مِّنَ ٱلۡجَنَّةِ يَنزِعُ عَنۡهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوۡءَٰتِهِمَآۚ ﴾ (الأعراف: ۲۷)

* لکه چي سورت دقيامت دورځي له مشاهدوڅخه يومشهدراوړي اوهغه دهغودريو ډلو ترمينځ محاوره اومناظره ده چي يوه يې دمومنانوډله جنتيان اوبله يې دکافرانوډله چي دوزخيان دي دريمه يې هغه ډله چي په ټول قرآن کريم کښې يې بل ځای يادونه نده شوي مګر په دغه سورت کی اوداهغه کسان دی چي داعراف خاوندان بلل شوی دی اوپدغه نامه باندي سورت هم نومول شوی دی داهسي مشهددي چي اورمرو به يې دقيامت په ورځي خلک په حقيقي توګه ووينی نه به تمثيل اونه به هم خيال وي پدي کښې به دجنتيانو هغه دحق دپلويانوشماتت چي په مبطلانو کافرانويې سخي پخي شي وليدل شي هلته به له پاسه په دغودباطل پلويانوباندی دلعنت اوله رحمت څخه دشړلو غږوشي پداسي حال کښې چي دحق دپلويانواودباطل دپلويانوترمينځ به يوه پرده وغوړل شوي اوپه هغه باندي به خلک ولاړوی چي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تول به په تنډو (وچوليو) باندي پيژندل کيږي د جنت خاوندان به په ښکلي مخونو او ښائسته څيرو پيژندل کيږي دوزخيان به بيا په تورو مخونو او کرکجنو څيرو.

* په سورت کښې د انبياوو عليهم السلام کيسې په ښه تفصيل سره راغلي چي په هغه کښې د نوح (ع)، هود، صالح، لوط، شعيب او موسى عليهم السلام کيسې راځي پيل يې په شيخ الانبياء حضرت نوح عليه السلام شوي چي له خپله تبره يې ډيري ناخوالى، سرغړوني، انکار او تکذيب ليدلي دي او په تفصيل سره يې د کليم الله موسى عليه السلام کيسه راوړي چي له سرکښ فرعون سره يې مقابله وه او همداسې له بنى اسرائيلو څخه غږيږي چي څومره ربړونه او سختي يې وليدي او بيا په امن او سوکالۍ کښې غوپه شول او څرنګه کله چي يې د الله ﷻ د نعمتونو کفران پيل کړ او له حکم څخه يې سرغړونه او مخالفت وکړ الله پاک دوى په خنزيرانو او بيزوګانو مسخ او واړول.

* سورت همدارنګه د علماء سوء هغه شرمونکى مثال راوړى چي په قباحت او بدي کښې ترهغې زيات يې خيال هم تصورنشي کولاي لکه هغه سپي چي اوږده ژبه يې راايستلي وي او په ختو کښې رغړي ﴿ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَٰهُ بِهَا وَلَٰكِنَّهُۥٓ أَخْلَدَ إِلَى ٱلْأَرْضِ وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ ۚ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ۚ ﴾ (الأعراف: ۱۷۶) او دا په الله قسم چي خوراشرمونکى د هغه چالپاره انځوردي چي الله پاک ورته د علم ګټور نعمت ورکړي وي خو هغه د دنياوي امورو او فاني لذاتو څخه قربان کړي او دده لپاره وبال شي هغه پدغه نفع وانخلي د ايمان لاره ونه نيسى او له نعمت څخه ګوښي او بربنډ شوي د شيطان پلوي غوره کړي او له سرغړونکو څخه وګڼل شي.

* په پاي کښې سورت شريف د توحيد اثبات کوي په هغه چاباندي تهکم کوى څوک چي د هغه څه عبادت کو ي چي نه ګټه رسوي او نه هم ضرر، نه ويني او نه اوري هغه ډبرې او بتان دي خو دوي له الله (ﷻ) سره په عبادت کښې شريکان نيولي و ي دوي يوازي الله پاک پنځولي (پيداکړي) او ددوي د ناستي ملاستي ځاى ورته معلوم دي همداسي د سورت پاى هم په توحيد راغلى لکه چي پيل يې شوي وو نو د الله وحدانيت ته بلنه ګواکى د سورت پيل او پاي ده.

تسميه او نوموليې:

دغه سورت ته (الأعراف) سورت ځکه وايي چي د أعراف نوم پکښې راغلي او هغه ديوال دى چي د جنت او دوزخ ترمينځ وهل شوي چي دواړه ډلي سره بيل کړي ابن جرير (رح) له حذيفة څخه يو روايت راوړي چي له هغه څخه وپوښتل شول چي په اعراف کښې به څوک وي؟ هغه ويل دا هغه کسان دي چي نيکى او بدى يې سره برابري شوى د ددوي سيئاتو هغوي له جنت څخه راګرزولي او همدارنګه نيکي يې دوزخ ته غورځولو ته نه پريږدى نو همدلته په دغه ديوال باندي ولاړ وي ترڅو چي الله پاک ددوي په هکله فيصله وکړي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اللہ تعالیٰ فرمایے:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿ الٓمٓصٓ ﴿١﴾ كِتَٰبٌ أُنزِلَ إِلَيْكَ فَلَا يَكُن فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنذِرَ بِهِۦ وَذِكْرَىٰ
لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٢﴾ ٱتَّبِعُوا مَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿٣﴾ وَكَم مِّن قَرْيَةٍ
أَهْلَكْنَٰهَا فَجَآءَهَا بَأْسُنَا بَيَٰتًا أَوْ هُمْ قَآئِلُونَ ﴿٤﴾ فَمَا كَانَ دَعْوَىٰهُمْ إِذْ جَآءَهُم بَأْسُنَآ إِلَّآ أَن قَالُوٓا إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ
﴿٥﴾ فَلَنَسْـَٔلَنَّ ٱلَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ وَلَنَسْـَٔلَنَّ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٦﴾ فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِم بِعِلْمٍ وَمَا كُنَّا غَآئِبِينَ ﴿٧﴾ وَٱلْوَزْنُ
يَوْمَئِذٍ ٱلْحَقُّ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٨﴾ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓا أَنفُسَهُم
بِمَا كَانُوا بِـَٔايَٰتِنَا يَظْلِمُونَ ﴿٩﴾ وَلَقَدْ مَكَّنَّٰكُمْ فِي ٱلْأَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَٰيِشَ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿١٠﴾ وَلَقَدْ
خَلَقْنَٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَٰكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا لِـَٔادَمَ فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿١١﴾ قَالَ مَا
مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ قَالَ أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُۥ مِن طِينٍ ﴿١٢﴾ قَالَ فَٱهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا
فَٱخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ ٱلصَّٰغِرِينَ ﴿١٣﴾ قَالَ أَنظِرْنِيٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٤﴾ قَالَ إِنَّكَ مِنَ ٱلْمُنظَرِينَ ﴿١٥﴾ قَالَ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ
صِرَٰطَكَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ لَءَاتِيَنَّهُم مِّنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَٰنِهِمْ وَعَن شَمَآئِلِهِمْ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَٰكِرِينَ ﴿١٧﴾ قَالَ
ٱخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٨﴾ وَيَٰٓـَٔادَمُ ٱسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ ٱلْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ
شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٩﴾ فَوَسْوَسَ لَهُمَا ٱلشَّيْطَٰنُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وُۥرِيَ عَنْهُمَا مِن سَوْءَٰتِهِمَا وَقَالَ
مَا نَهَىٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةِ إِلَّآ أَن تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ ٱلْخَٰلِدِينَ ﴿٢٠﴾ وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ ٱلنَّٰصِحِينَ
﴿٢١﴾ فَدَلَّىٰهُمَا بِغُرُورٍ فَلَمَّا ذَاقَا ٱلشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ ٱلْجَنَّةِ وَنَادَىٰهُمَا رَبُّهُمَآ أَلَمْ
أَنْهَكُمَا عَن تِلْكُمَا ٱلشَّجَرَةِ وَأَقُل لَّكُمَآ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿٢٢﴾ قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا
لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٢٣﴾ قَالَ ٱهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ وَلَكُمْ فِي ٱلْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٢٤﴾ قَالَ فِيهَا
تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴿٢٥﴾ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَٰرِي سَوْءَٰتِكُمْ وَرِيشًا وَلِبَاسُ ٱلتَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ
خَيْرٌ ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿٢٦﴾ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ كَمَآ أَخْرَجَ أَبَوَيْكُم مِّنَ ٱلْجَنَّةِ
يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَٰتِهِمَآ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ إِنَّا جَعَلْنَا ٱلشَّيَٰطِينَ أَوْلِيَآءَ لِلَّذِينَ لَا
يُؤْمِنُونَ ﴿٢٧﴾ وَإِذَا فَعَلُوا فَٰحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَآ ءَابَآءَنَا وَٱللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِٱلْفَحْشَآءِ أَتَقُولُونَ عَلَى
ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾ قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِٱلْقِسْطِ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَٱدْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴿٢٩﴾ فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ۗ إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴿٣٠﴾ ﴾ الأعراف: ١ ـ ٣٠

## لغتونه:

﴿ حَرَجٌ ﴾ تنګسیاته ویل کېږي (حرج المکان اوالصدر) کله چي تنګ شي ځای اویاسینه ﴿ بَيَٰتًا ﴾ راغب وايي چي (بیات) او(تبییت) په شپه کي په دښمن پسي تللوته وايي.(١) ﴿ قَآئِلُونَ ﴾ له قیلولة څخه اخیستل شوی اودورځي په نیمايي کي خوب ته وايي لکه چي (قائلة) غرمي ته وايي.﴿ مَذْءُومًا ﴾ دمذموم په معني اوبدته وايي ﴿ مَّدْحُورًا ﴾ شړل شوی ﴿ سَوْءَٰتِهِمَا ﴾ سوأة عورت اوشرمګاه ته ویلی شي ځکه يې سوأة بولي چي انسان يې ښکاره کېدل بدګڼي ﴿ وَطَفِقَا ﴾ شروع يې وکړه دواړو ﴿ يَخْصِفَانِ ﴾ چي نښلولي يو پربل ایښودلي يې (ریشًا) هغه جامې چي تاسي وربادي تجمل اوسینګارکوئ د(ریش) دلغت مال اوجمال معناده اوله دې څخه (ریش الطیر) هم اخیستل شوی ځکه په هغه يې زينت اوښکلاوي (قبیله) لښکریان يې (قبیل) په اصل کي ټولی ته وايي هغه که له یوه ټبره وي اوکه له جلاجلانه (فاحشة) هغه شي ته وايي چي په بدوالي کي انتهاته رسېدلی وي اودلته ورڅخه مراد په کعبه شریفه باندي بربنډ طواف کول دي هرناکاره فعل ته فاحشه ویل کېږي ځکه نوفحشاء سختوګناهونوته ویل کېږي لکه چي زنا فاحشة بلل شوي ده.

## تفسیر:

﴿ الٓمٓصٓ ﴾ دالبقرة دسورت په پیل کي له مقطعاتو حروفو څخه بیان وشو اوداچي حکمت له راوړلو څخه يې دقرآن کریم داعجاز څرګندونه ده پدې اشاره سره چي قرآنکریم له همداسي حروفو څخه جوړ دی خوله دې سره سره نومیالي پوهان اودبلاغت اوفصاحت دډګراتلان له داسي کلام راوړلو څخه عاجزدي له ابن عباس رضی الله عنهما څخه يې داسي معناهم روایت شوي چي (أنا الله اعلم وأفصل) چي( زه الله یم پوهېږم اوپه تفصیل بیان کوم. ابوالعالیة وايي چي : د(الف)توری دالله دنوم پیل ، د(لام) توری د لطیف ،د(میم) توری د مجید أو د (صاد) توری دصادق دنوم پیل ښیي﴿ كِتَٰبٌ أُنزِلَ إِلَيْكَ ﴾ (دا ) کتاب دی چي نازل کړی (لېږلی) شوی دی تاته (اې محمده !) چي قرآنکریم دی ﴿ فَلَا يَكُن فِى صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ ﴾ نونه دي وي په سینه ستاکي تنګي ( له رسولو ) دده چي پدې وویرېږې ستاقوم به يې تکذیب وکړي ﴿ لِتُنذِرَ بِهِۦ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ لپاره ددې چي ووېروې (ته اې محمده !) په دغه (کتاب) سره (کفارله جهنم څخه) او(لپاره ددې چي پندورکړې ته پردې ) په پندورکولو سره مؤمنانوته (ځکه هغوی وربادي نفع اخیستونکي دي ﴿ ٱتَّبِعُوا۟ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ (متابعت کوئ اې مکلفانو !) دهغه شي چې نازل کړی شويدی تاسوته له (جانبه ) درب ستاسو ) یعني اې خلکو ! د هغه قرآن چي له هدایت اونور څخه ډک دی متابعت وکړئ کوم چي درب له لوري تاسي ته راغلی دی

(١) المفردات للراغب مادة بيت-

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ ﴾ اومتابعت مکوئ پرته له الله د(نورو) دوستانو ستاسولکه بتان، رهبانیان، او کاهنان چې تاسو خپل اموردوی ته سپارئ اودهغوی دحکمونو پیروي کوئ ﴿ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴾ لږشاني پنداخلئ تاسي ( خازن ) وايي: چې تاسوپندنه اخلئ مګرلږکسان ستاسي يې اخلي .(١)﴿ وَكَم مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَـٰهَا ﴾ اوډېرله اوسېدونکو دکليود (کفارو فجارو ) څني هلاک کړيدي موږ﴿ فَجَآءَهَا بَأْسُنَا بَيَـٰتًا ﴾ نورابه غی هغوی ته عذاب زموږ حال داچي دوی به ويده وودشپې ﴿ أَوْ هُمْ قَآئِلُونَ ﴾ ياوېده به ووپه غرمه کي. ابوحيان وايي: چې دهلاکت لپاره يې دغه دوه وختونه ځانګري کړل ځکه دسکون اوآرام لپاره دي نوپدې وخت کي دعذاب راتلل خوراسخت اوبددی ځکه دوی پدې وخت کي دهلاک کونکوڅخه غافل وي (٢) ﴿ فَمَا كَانَ دَعْوَىٰهُمْ إِذْ جَآءَهُم بَأْسُنَآ ﴾ ( نونه به وه ويناددوی کله چي رابه غی دوی ته عذاب زموږ) يعني کله چي به دوی دعذاب راتللونښي او علامې وليدې نوددوی دعااو استغاثه به بله نه وه ﴿ إِلَّآ أَن قَالُوٓاْ إِنَّا كُنَّا ظَـٰلِمِينَ ﴾ مګرداچي ويل به دوی بېشکه چي موږ وو ظالمان )يعني خودابه يې ويناوه چي په خپل ظلم به يې په افسوس اوپښېماني اعتراف کاوو خو ارمان داچي پدې وخت ورته پښېماني ګټه نه رسوله ﴿ فَلَنَسْـَٔلَنَّ ٱلَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ ﴾ (نوخامخاوبه پوښتو(په قيامت کي ) هرومروهغه (امتونه) چي لېږلي شوي وي دوی ته رسولان ) يعني موږبه ټول امتونه پوښتوچي آيا پيغمبرانودرته تبليغ کړی اوتاسودهغه اجابت څرنګه وکړ؟ مقصدله دغه پوښتني څخه دکفاروتقريع اوتوبيخ دی ﴿ وَلَنَسْـَٔلَنَّ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ اوخامخا وبه پوښتوارو مرو رسولان ( هم) چي رسالت يې رسولی امانت يې سپارلی ؟. په البحرالمحيط کي وايي چي دامتونوڅخه پوښتنه دکفاروا و ګنهکارانولپاره تکونه (تقريع ) اوددوی په باب توبيخ دی خودرسولانوپوښتل بيادالفت نيولو ( تأنيس) کرامت اوثواب لپاره دی (٣)﴿ فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِم بِعِلْمٍ ﴾ نوخامخابيان به کړوموږ اروم‌رو(احوال دهغوی) دوی ته په علم سره) يعني دوی ته به موږله خپل علم نه ټول هغه کړه وړه چي دوی ترسره کړي وښايو. ابن عباس ؓ وايي: چي کتاب به کښېښودل شي اوهغه به دهغه څه چي دوی کړي دي خبرې وکړي﴿ وَمَا كُنَّا غَآئِبِينَ ﴾ اونه يو موږ غائبان (له دوی څخه چي ددوی په احوالونه خبرېږو. ابن کثيروايي: چي الله ﷻ به دقيامت په ورځ خپلوبندګانوته ددوی دويلواوکولو (اقوالواوافعالو ) که لږوي ، که ډېر درانه وي ، که سپک ټول څه ووايي ځکه الله پاک په هرڅه حاضردی له هغه څخه هيڅ هم پټ نه دی هغه ﷻ من يعلم خائنة الاعين وماتخفی الصدوردی (٤)﴿ وَٱلْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ ٱلْحَقُّ ﴾ او تول دعملونوپه دغي ورځ کي حق دی ( په عدل سره چي الله ﷻ به په هيڅاظلم نه کوي. ﴿ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ ﴾ نودهرچاچي درانه وختل تولونه ( ياتلل شوي نېک عملونه ) دده ) يعني په ايمان اودحسناتو په کثرت سره يې

---

(١) الخازن ٢ / ١٧٣
(٢) البحر ٤ / ٢٦٩
(٣) البحرالمحيط ٤ / ٢٧٠
(٤) مختصر ابن کثير ٢ / ٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تلي درنې وي ﴿ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ نو دغه کسان هم دوی دي په مراد رسېدلي (بريالي) له عذاب څخه ژغورل شوي او ثواب موندونکي ﴿ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ ﴾ او د هر چا چي سپک وختل تولونه (یا تلل شوي بدعملونه) د ده په سبب د کفر او گناهونو یې ﴿ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُم ﴾ نو دغه کسان هغه دي چي زيان رسولی دی دوی خانونو خپلو (او نېکمرغيو) ته ﴿ بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ ﴾ په سبب د هغه چي وو دوی چي په آياتونو زموږ به يې ظلم کاوو (منکرېدل به) ابن کثير وايي: چي هغه شی چي د مېزان په تله کي به د قيامت په ورځ اېښود ل کېږي هغه ځوک وايي: چي اعمال به وي که څه هم هغه اعراض وي خو الله تعالى به يې په اجسامو بدل کړي دغه روايت له ابن عباس رضي الله عنه څخه شوی دی. ځوک بيا وايي: د اعمالو ليکلی (کتاب) به تلل کېږي لکه چي د (البطاقة) په حديث کي راغلي دي. ځوک بيا وايي: چي پخپله د عمل خاوند به تلل کېږي لکه چي په يوه حديث شريف کي راغلي (يؤتى يوم القيامة بالرجل السمين فلايزن عندالله جناح بعوضة) يعني د قيامت په ورځ به يو خښ چاغ سړی راوستل شي چي د الله ﷻ په نزده به د ملخ د يوه وزر غوندي تول هم نلري او دا تول صحيح دی ځکه کله به اعمال کله به يې هم کاغذونه کله به هم د اعمالو کونکي پخپله تلل کېږي[1] والله اعلم. او زه وايم چي پدې کي هېڅ د تعجب خبره نشته چي د اعمالو نېکيو او بديو تلل به څرنگه کېږي ځکه کله چي معاصر علم د تودوخي او يخنۍ، د باد و نود الوتلو او د هغوی د اتجاه او پلو د بارانونو د راتللو لپاره موازين او آلات موندلي نو آيا هغه قادر ذات الله ﷻ چي په هر څه قدرت لري له دې څخه به ناتوان شي چي د بندگانو د اعمالو د تللو لپاره موازين وټاکي؟ هيڅکله نه.

﴿ وَلَقَدْ مَكَّنَّاكُمْ فِي الْأَرْضِ ﴾ (او خامخا په تحقيق ځای درکړی دی موږ تاسي ته (اې انسانانو) په مځکه کي) بيضاوي وايي: معنا يې دا ده چي تاسو ته موږ د اوسېدلو لپاره پکي ځای درکړ او دا چي تاسي پکي تصرف او زراعت (کرکېله) وکړئ[2] ﴿ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ ﴾ (او پيدا کړيدي موږ تاسي ته پدغه ځمکي (هرقسم) اسباب د ژوندانه) چي تاسو ورباندي ژوندي او سئ لکه خوراک څښاک او نور ﴿ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴾ (تاسي لږشاني شکر وباسئ) يعني سره له دې فضل، مهرباني او انعام بيا هم لږ کسان له تاسو نه د خپل رب شکر کاږي ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ ﴾ (او خامخا په تحقيق پيدا کړ موږ (پلار) ستاسي بيا صورت جوړ کړ موږ (د پلار) ستاسي) يعني موږ ستاسو پلار له ختې څخه پيدا کړ پداسي حال کي چي مصور نه وو او بيا مو په ښکلي صورت او احسن تقويم سره جوړ کړ دا چي د جمع په ضمير يې وستايل ځکه هغه ابو البشر او تعظيم يې ترسره شو ﴿ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ ﴾ (بيا وويل: موږ پرښتو ته چي سجده وکړئ تاسي آدم ته) يعني موږ ملائکو نه امر وکړ چي آدم ته سجده وکړئ ترڅو چي ده او د اولاد يې تکريم وشي ﴿ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴾ (نو سجده وکړه دوی (ټولو) مگر ابليس (سجده ونکړه او) نه وو دی له سجده کونکو څخه) يعني گردو ملائکو او پرښتو) سجده وکړه او ابليس د تکبر او عناد له کبله له سجده کولو څخه سرو غړاوو. استثناء منقطع

---

[1] مختصر ابن کثير ۲/ ۷

[2] البيضاوي ص: ۱۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ده څکه دغه استثناء له غیرجنس څخه ده لکه چې ښخوا دحسن بصري رحمه الله قول تېرشو چې ویلي وو: ابلیس دسترګو په رپ کې هم له ملائکو څخه ندی شوی (١)﴿ قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ﴾ وویل: الله ابلیس ته ) څه شي منع کړې ته ( زما دحکم له منلو څخه ) چې سجده دي ونکړه کله چې حکم وکړماتاته !؟ دلته استفهام دتوبیخ اوتقریع لپاره دی ﴿ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ﴾ ( وویل: (ابلیس ) زه غوره یم له آدم نه ) نوڅرنګه به بهترسجده کوي هغه چاته چې هغه کهتروي وروسته یې دامتناع علت یادکړچي: ﴿ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ ﴾ ( چې پیدا کړی دي یم زه له اوره اوپیدا کړی دي دی تادغه (آدم) له ختې څخه ) یعني زماعنصر دهغه له عنصر څخه شرافت لري څکه زه له اوره هغه له ختې دی. ابلیس مسکین دې ته ونه کتل چې ده ته چاسجدې کولو حکم کړیدی دغه امرخو الله جل جلاله ورته کړی وو. ابن کثیر وایي: چې ابلیس لعین اصلي عنصر ته کتلي خودې ته یې پام ندی کړي چې الله پاک پخپل (ید ) باندې دهغه پیدا ینبت فرمایلی اوله روح څخه یې پکې پوکړیدی دغه ملعون فاسد قیاس کړی اوغولېدلی دی چې اورګواکې ترختې بهتردی څکه ختې دحلم او دروندوالي خاوندخوبرعکس اور دحملې اوسوڅولوښتنن دی ختې نبات زرغونوي او وده ورکوي اور بیاخای دعذاب اوله منخه ورلودی څکه نوابلیس خپل عنصر هلاکت خواري اوبدمرغي ته ورساوه (٢) ابن سېرین وایي: لومړی هغه څوک چې قیاس یې وکړ خطاشوهغه ابلیس وو اوڅوک چې دین پخپله رایه قیاسوي الله جل جلاله به یې له ابلیس سره ملګری کړي(٣) ﴿ قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا ﴾ (الله وویل: (ابلیس ته) نوکوزشه له دغه(آسمان ، یاجنت نه) نونه دی لائق تاته داکارچې تکبر(لویي) وکړې پدې څای کې) یعني اې ابلیسه ! له جنت نه کوزشه دانه بنایي چې ته زماله طاعت څخه سرغړونه کوې اوله دې سره سره بیازماپه سپېڅلي څای کې هم اوسې ﴿ فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ﴾ نو ووزه ) بېشکه چې ته له ذلیلانو څخه یې. زمخشري وایي: داپدې چې ابلیس استکبار څرګندکړ الله جل جلاله سپکاوی اوذلت ور واغوستل . نوڅوک چې دالله جل جلاله لپاره تواضع وکړي الله به یې لوړکړي اوکه څوک تکبرکوي الله جل جلاله یې سپکوي (٤)﴿ قَالَ أَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴾ ( وویل: ( ابلیس چې اې الله ! ) وګوره (مهلت راکړه ) ماته ترهغې ورځې پورې چې مخلوقات بېرته ژوندي کاوه شي ) ابلیس لعین له موقع نه په استفادې سره دقیامت تر ورځې مهلت وغوښت څکه له هغه وروسته بیامرګ هډونشته. نو الله جل جلاله یې غوښتنه داسې ومنله چې ﴿ قَالَ إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴾ ( وویل ( الله ) بېشکه ته له مهلت ورکړل شوو څخه یې ) ابن عباس رضی الله عنهما وایي : چې ترلومړۍ شپېلۍ پوکولو(نفخې) پورې الله جل جلاله مهلت ورکړ کله چې ټول خلګ به مره کېږي خوده تردوهمې شپېلۍ (نفخې ) پورې مهلت غوښتی ووکله چې بیاخلګ دالله جل جلاله په وړاندې دربېږي الله جل جلاله هغه ونه منل اوپدې باندې دغه آیت شریف دلالت کوي چې: ﴿ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ۝٨٠ إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ۝٨١ ﴾ ص: ٨٠ – ٨١ ﴿ قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ﴾ ( وویل ابلیس نوقسم

---

(١) وګوره زموږهغه څېړنه چې دابلیس په هکله موکتاب لیکلی اودلائل موراغونډکړي چې هغه له پېریانو څخه دی اوله پرښتوڅخه ندی. النبوة والانبیاء ص: ٤٨

(٢) مختصر ابن کثیر ٢/ ٧

(٣) البحر ٤/ ٢٧٣

(٤) الکشاف ٢ / ٩٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی په ګمراه کولو ستامالره چي خامخابه کېنم زه هرو مرو دوی ته په لاره ستاکي چي سمه صافه لاره ده ) يعني زماپدې سبب چي ګمراه دي کړم نوزه به دآدم اودهغه د اولادې هغه سمه صافه لاره دجنت داسي ونيسم لکه چي لاري وهونکی په لاره کي ناست وي ﴿ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّنۢ بَيۡنِ أَيۡدِيهِمۡ وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ وَعَنۡ أَيۡمَٰنِهِمۡ وَعَن شَمَآئِلِهِمۡ ﴾ ( بیاخامخا راځم زه هرومرو دوی ته له وړاندي ددوی اوله وروسته ددوی اوله ښيو طرفونو ددوی اوله کيڼو خواوو ددوی ) يعني زه به دوی ته له ټولو خلورو خواوو راځم چي ستاله دين څخه يې منع کړم . طبري وايي: معناداچي زه به دټولو حق اوباطلو خواوو ورته راځم له حق څخه به يې بندوم اوباطل به ورته ښائسته کوم . ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي ابليس نشي کولای له پورته ( لوړه ) لوري ورته راشي څوچي دبنده اوالله جل جلاله درحمت ترمنځ حائل نشي.[1]﴿ وَلَا تَجِدُ أَكۡثَرَهُمۡ شَٰكِرِينَ ﴾ ( اونه به مومې ته اکثره ددوی شکرايستونکي ) يعني مؤمنان اطاعت کونکي اوستاد نعمتونو شکرکونکي ﴿ قَالَ ٱخۡرُجۡ مِنۡهَا مَذۡءُومٗا مَّدۡحُورٗاۖ ﴾ وويل: ( الله اې ابليسه ! ) ووزه له دې ځايه پدغسي حال کي چي غمجن کړی شوی او رټل شوی يې ( له رحمت څخه ) ﴿ لَّمَن تَبِعَكَ مِنۡهُمۡ لَأَمۡلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴾ ( قسم دی ) خامخاهرڅوک چي متابعت وکړي ستاله دغوانسانانو ) خامخادک به کړم هرومرو دوزخ له تاسي ټولو ) لام دقسم لپاره توطئه ده اودغه په عذاب باندي دهرهغه چالپاره وعيددی چي دشيطان ومني اودالله جل جلاله امرپرېږدي.﴿ وَيَٰٓـَٔادَمُ ٱسۡكُنۡ أَنتَ وَزَوۡجُكَ ٱلۡجَنَّةَ ﴾ !

ا وويل: ( الله اې آدمه ) اوسه ته اوښځه ستاپه جنت کي ) يعني اوويل موږاې آدمه ! ته دي له مېرمني سره په جنت کي اوسه وروسته له دې چي شيطان وايستل او وشړل شو ﴿ فَكُلَا مِنۡ حَيۡثُ شِئۡتُمَا ﴾ نوخورئ تاسي دواړه له هره ځايه ( اوهرشی ) چي خوښه مو وشي . ﴿ وَلَا تَقۡرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ ( اومه نژدې کېږئ تاسي دواړه دې ونې ته ( په قصد د خوراک ) دوی دواړوته يې دټولوميوو دخوړلو اجازه ورکړي خو يوازي يوه ونه يې وروښودله چي ځان به ترې ژغورئ اودغه د امتحان اوابتلا لپاره اوپدې وخت کي شيطان له هغوی سره رخه (کينه) وکړه اوزياريې و يوست چي دوی ته په مکراو دوکه وسوسه ورواچوي ﴿ فَوَسۡوَسَ لَهُمَا ٱلشَّيۡطَٰنُ ﴾ ( نو وسوسه واچوله شيطان دوی دواړوته ) يعني هغوی ته يې په کرار آواز له ونې څخه دخوړلوووېل: ترڅودوی وغولوي ﴿ لِيُبۡدِيَ لَهُمَا مَا وُۥرِيَ عَنۡهُمَا مِن سَوۡءَٰتِهِمَا ﴾ دپاره ددې چي ښکاره ( بربنډ ) کړي دوی دواړوته هغه چي پټ کړی شوي دي له دوی دواړونه ( غليظه عورتونه چي لوڅول يې بدښکاري ) ﴿ وَقَالَ مَا نَهَىٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنۡ هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةِ إِلَّآ أَن تَكُونَا مَلَكَيۡنِ أَوۡ تَكُونَا مِنَ ٱلۡخَٰلِدِينَ ﴾ او وويل ( ابليس دوی ته ) نه ياست منع کړي تاسي رب ستاسي له (خوراک) ددې ونې څخه مګر له دې جهته چي نشئ تاسي دواړه پرښتې اوياچي نشئ تاسي له تل پاته کېدونکو(په جنت کي) ﴿ وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ ٱلنَّٰصِحِينَ ﴾ اوسخت قسم يې وکړی ( دالله په نوم) دوی ته چي بېشکه زه تاسو دواړوته له نصيحت کونکو څخه يم اوکله کله مسلمان دالله جل جلاله په نوم تېر ايستل کېږي. الوسي وايي: تعبير يې دمفاعلې په صيغه سره وکړځکه څوک چي له يوچاسره سيالي ( مسابقه ) کوي نوخورا

---

[1] الطبري ۱۲ / ۳۴۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



زيار باسي(١) ﴿ فَدَلَّىٰهُمَا بِغُرُورٍ ﴾ (پس راکوز کړل دوی دواړه ابليس ( له اوچتې مرتبې ښکته مرتبې ته په وسوسه سره) . ابن عباس رضی الله عنهما وايي: دوی يې په قسم تېرايستل . آدم عليه السلام داسې خيال کاوو چې هيڅوک به هم دالله جل جلاله په نوم په دروغو لوړه ( قسم ) نکوي نودوی يې په وسوسه لوړه اوقسم باندي رغولېدل ﴿ فَلَمَّا ذَاقَا ٱلشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا ﴾ نوکله چې وڅکله دغو دواړو ( مېوې ددغې ممنوعه ) ونې (نو) ښکاره شول دواړو ته عورتونه ددوی. کلبي وايي: چې جامې ځنې توی شوې اوهريو دبل عورت وليداو وشرمېدل ﴿ وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ ٱلْجَنَّةِ ﴾ اوپيل کړل دواړو چې سره نښلولې دوی پر عورتونو خپلو باندي له پاڼو(دونو ) دجنت نه ( چې ځان پرې پټ کړي ) وروسته له دې چې ددوی جامې دجنتي لباسونو څخه وې. قرطبي وايي: چې دونو پاڼي يې شو کولې او پرځانو نو يې نښلولې اوله دې څخه ( خصف النعل ) هم راغلی دی(٢) وهب ابن منبه وايي: چې آدم عليه السلام او حوآء رضی الله عنها لباسونه ددوی په غليظه عورتونو داسې يو نور وو چې يو دبل عورت به يې نه ليدل خو کله چې ګناه ځني صادره شوه نو عورات يې ښکاره شول(٣) ﴿ وَنَادَىٰهُمَا رَبُّهُمَآ أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَن تِلْكُمَا ٱلشَّجَرَةِ وَأَقُل لَّكُمَآ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ اوغږ وکړدوی ته رب ددوی ( داسې) چې آيا ما نه وئ منع کړي؟ تاسې له ( خوراکه د ) دغې ونې څخه او( نه وو ) ويلي ما تاسوته چې ( پام کوئ ) بېشکه شيطان تاسې دواړو ته ښکاره دښمن دی دغه نداء دعتاب اوتوبيخ په ډول وه. روايت کېږي چې الله پاک آدم عليه السلام ته وويل: آيا ما تاته دجنت ټولې ونې رواکړي نه وې اوله دې څخه مې منع کړی نه وې؟ نوآدم عليه السلام وويل: چې هو زمادي ستاپه عزت لوړه وي ! خو لکن ما داسې ګومان نه کاوو چې ستاله مخلوق څخه به هيڅوک په دروغو قسم کوي نو الله جل جلاله ورته وفرمايل: زمادي پخپل عزت سوګند وي چې مځکي ته به دي ښکته کړم اوهلته به بيا په تکليف ژوند ترسره کوې ﴿ قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ نو وويل: دواړو(آدم او حواء ) اې ربه زموږ ! ظلم کړی دی موږ پرځانونو خپلو اوکه مغفرت ونکړې ته موږ ته اورحمت ونکړې ته پرموږ نو خامخا به شو موږ هرومرو له زيانکارانو ) يعني دوی پخپله ګناه اعتراف وکړاوله ګناه څخه يې توبه وايستله له الله جل جلاله څخه يې دمغفرت اورحمت غوښتنه وکړه. طبري وايي: چې همدغه آيت هغه کلماتي دي چې له الله جل جلاله څخه آدم عليه السلام زده اوترلاسه کړي وې(٤) ﴿ قَالَ ٱهْبِطُوا۟ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ﴾ (وفرمايل( الله ) چې کوزشئ ( له جنته) حال داچې ځيني ستاسې دځينو نوروته به دښمن يئ ) يعني خطاب آدم ، حوآء او ابليس ته دی څکه نو دجمعي په صيغه راغلي يعني له قدسي آسمان څخه مځکې ته کوزشئ پداسې حال کي چې ځيني ستاسو دځينو نورو دښمنان ياست شيطان د انسان دښمن اوانسان بيا دشيطان دښمن دی لکه دالله جل جلاله قول ﴿ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَٱتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ﴾ ﴿ وَلَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴾ او(مقرردی) تاسي ته په مځکه ځای دهستوګني او( اسباب ) دنفع اخيستلو تروخته د(مرګ ) پوري ﴿ قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا

---

(١) روح المعاني ٨/١٠٠.

(٢) القرطبي ٧/١٨١.

(٣) الطبري ١٢/ ٣٥٥. البحر ٤ / ٢٨١

(٤) دغه روايت طبري له ضحاک څخه راوړی دی اوپه هغه کي دالله جل جلاله دې قول ته اشاره چې فرمايي: ﴿ فَتَلَقَّىٰٓ ءَادَمُ مِن رَّبِّهِۦ كَلِمَٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ البقرة: ٣٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴾ وفرمایل: ( الله ) چي پدې مځکه کي به ژوندون کوئ تاسي او په همدغي مځکه کي به مرئ تاسي او هم له دغي مځکي څخه به را ایستل کېږئ ( په قیامت کي د جزا لپاره ) لکه داقول دالله تعالی ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴾ طه: ۵۵ بیاالله تعالی هغه احسان بیانوي چي په بني آدم باندي یې دلباس ، ګاڼې او ښایست لوروړلی دی فرمایي: ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَٰرِي سَوْءَٰتِكُمْ وَرِيشًا ﴾ اې زامنو دآدم په تحقیق نازل کړیدی موږ پر تاسي لباس چي پټوي عورتونه ستاسي او دزینت کالي ) یعني پر تاسو مې دوه کالي (لباسونه ) نازل کړي یو لباس چي ستاسي عورتونه پټوي او بل دزینت او تجمل لباس . زمخشري وایې: چي (ریش) دسینګار لباس ته ویل کېږي چي له ( ریش الطیر ) څخه اخیستل شویدی څکه هغه یې لباس او زینت دی(١)﴿ وَلِبَاسُ ٱلتَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ خَيْرٌ ﴾ او لباس دتقوی دغه لباس ډېر غوره دی ( له نورو ) یعني د پرهېزګاري او تقوی لباس تر ټولو غوره او بهتر لباس دی چي سړی ورباندي ډېل وډال کوي داځکه چي دباطن پاکوالی او سپېڅلتیا د ظاهر تر ښایست غوره دی. ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ دغه رالېږل شوی پوښاک ) له علاموُ (دفضل اورحمت ) دالله دی ( پر بندګانو خپلو ) ﴿ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی پند واخلي (اوشکریې وکاږي ) ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾ ( اې دآدم زامنو ! فریب دي درنکړي تاسي ته شیطان ) په ګمراه کولو او فتنه کي اچولو باندي ﴿ كَمَآ أَخْرَجَ أَبَوَيْكُم مِّنَ ٱلْجَنَّةِ ﴾ لکه چي ایستلي یې دي مور او پلار ستاسي له جنته ( په فریب سره چي دممنوعه وني مېوه یې وخوړه ﴿ يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَٰتِهِمَآ ﴾ (پدې حال چي ایستل یې له دوی دواړو نه لباس ددوی لپاره ددې چي وښیې دوی ته غلېظه عورتونه ددوی ) دلباس ایستلو نسبت یې ابلیس ته څکه وکړچي هغه یې دایستلو ، سبب وو او همدغه دلعین هدف ووچي ستریې څېري اوله هرډول حسي او معنوي فضائلو څخه یې بربند کړي ﴿ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ﴾ ببشکه دغه شیطان ویني تاسي (هم پخپله ) دی او ( هم قوم ) لښکر دده له هغې خواچي تاسي یې نه وینئ ) هغه ستاسو په انتظار ناست دی نو دهغه له چل او دوکې څخه وویرېږئ څکه هغه دښمن چي راتلل یې سړی نه ویني ډېر ویرونکی او ترهونکی دی ﴿ إِنَّا جَعَلْنَا ٱلشَّيَٰطِينَ أَوْلِيَآءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ ببشکه موږ ګرځولي دي شیطانان دوستان لپاره دهغو کسانو چي دوی ایمان نه راوړي ( کافران وي ) ﴿ وَإِذَا فَعَلُوا۟ فَٰحِشَةً ﴾ او کله چي وکړي دوی ناکاره کار ( لکه دبیت الله شریفي طواف په بربنډه ( لغړ ) حالت کي ) ﴿ قَالُوا۟ وَجَدْنَا عَلَيْهَآ ءَابَآءَنَا ﴾ ( نو وایې دوی موندلي دي موږ پر دغه ( ناکاره کار ) پلرونه زموږ ) یعني دوی عذر وایې چي موږ په دغه ( ناکاره ) فعل د پلرونو تقلید کوو ﴿ وَٱللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا ﴾ او الله جل جلاله (هم) امرکړی دی موږته په کولو ددې سره ) یعني موږته یې دجامود ایستلو ویلي دي څکه څرنګه موږ دګناه په جامو کي دکعبې طواف وکړو؟! او دغه په الله ذالجلال باندي دروغ تړل دي . بیضاوي وایې: دوی په دووشیانو دلیل ووایه : یو دپلرونو تقلید بل په الله جل جلاله افتراء نوله لومړي څخه په قرآن کریم کي اعراض

---

(١) الطبري ١٢/ ٣۵۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وشوځکه چي فسادېي ترلمرروښانه دی اودوهم يې په دې قول باندي ردکړچي: ﴿ قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ ﴾ (١) ووایه (اې محمده ! دوی ته ) چي بېشکه الله نه کوي امرپه ناکاره کارونو ) يعني الله سبحانه له نقص نه منزه دی خپلوبندګانوته دبدو اعمالواوناکاره خويونو مارېينه (حکم) نه کوي ﴿ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ . ؟! (ایاوایاست تاسي پرالله جل جلاله باندي هغه شی چي نه پوهېږئ (پرې) تاسي؟) استفهام دتوبيخ اوانکارلپاره دی يعني آياتاسي پرالله دروغ تړئ اوقبيح افعال ورته نسبت کوئ چي تاسي ورباندي هيڅ علم اوصحيح دليل نلرئ؟. ﴿ قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ ﴾ ووايه (اې محمده ادوی ته) چي حکم کړی دی رب زما په عدل ، استقامت سره ﴿وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ او(بل حکم کړيدی رب زماچي سم واړوئ (برابرکړئ ) تاسي مخونه خپل د( الله عبادت ته ) په نزدد( وخت ) دهرلمانځه ) يعني په ټوله معناالله جل جلاله ته متوجه شئ دهرلمانځه په وخت کي ﴿وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ﴾ ( اوبولئ تاسي ( عبادت کوئ) دده حال داچي خالص کونکي اوسئ ده ته دين ( له هرنقصان څخه ) يعني په اخلاص دده عبادت او اطاعت کوئ. ابن کثيروايي: چي معنايې داده چي الله جل جلاله تاسوته په عبادت کي داستقامت امرکړی چي هغه دپيغمبرانو پيروي ده هغوی چي په معجزاتويې ملاتړاوتائيدشوی اوبل په عبادت کي داخلاص امرشويدی ځکه الله جل جلاله عمل ترهغونه قبلوي ترڅوچي دغه دوه رکنونه ونلري: يوداچي حق اوصواب دشريعت په موافق وي اوبل دا چي له شرک څخه خلاص وي (٢) ﴿كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴾ لکه چي اول ځل يې پيداکړي ياست تاسي ( له ځمکي نه ) بيابه هم داسي ورشئ تاسي (ځمکي ته) ﴿ فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ﴾ يوې ( ډلي ته هدايت وکړ الله جل جلاله دايمان په توفيق سره ) اوهدايت ندی کړی بلي ډلي ته چي مقرره شويده پردوی ګمراهي) الله جل جلاله فعال لمايريدی له هغه څخه دهيڅ کاردکولواونه کولوپوښتنه نه کېږي ﴿إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ بېشکه چي دوی نيولي دي شيطانان دوستان ( معبودان ) دغه دهغوکسانولپاره چي دوی ګمراهان دي تمثيل راوړل شويدی يعني دوی له الله جل جلاله پرته له شيطانانوڅخه مرسته غواړي ﴿وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴾ اوګمان کوي دوی چي بېشکه هم دوی هدايت موندونکي (دبصيرت خاوندان) دي

## بلاغت:

١-پدې جمله کي چي فرمايي ﴿ حَرَجٌ مِّنْهُ ﴾ دمضاف حذف راغلی تقدير داسي دی چي (ضيق من تبليغه ) اولکه چي الله ﷻ بل ځای فرمايي: ﴿ وَسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ ﴾ يعنی دقريی اهل وپوښته ! . -

٢ - ﴿ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ دلته دربوبيت وصف ته تعرض سره له اضافته چي دمخاطبينوضميرته شويدی دزيات لطف اوددې لپاره دی چي د اوامرو امتثال ته يې ترغيب کړی(٣)

---

(١) البيضاوي ص: ١٨٩
(٢) مختصرابن کثير٢/ ١٣
(٣) ابو السعود٢/ ١٥٥.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۳ - پدې کلماتوکي چي ﴿ ثَقُلَتْ ﴾ او ﴿ خَفَّتْ ﴾ دی دطباق صنعت دی اوهمدارنگه د ﴿ بَيَٰتًا ﴾ او ﴿ قَآئِلُونَ ﴾ ترمنځ هم ځکه چي د(بيات) معناشپه او(قائلون) ورځ دغرمې وخت دی.

۴ - ﴿ خَلَقْنَٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَٰكُمْ ﴾ دلته بياهم دمضاف حذف اودتقديرېي داسي دی چي خلقناآباءكم وصورناآباءكم.

۵ - پدې کلام کي چي الله تعالی فرمايي: ﴿ لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَٰطَكَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ دلته يې صراط مستقيم دهدايت له هغي لارې ځخه چي جنت ته رسېږي استعاره کړيده.

۶ - ﴿ وَيَٰٓـَٔادَمُ ﴾ دلته ايجاز بالحذف دی يعني (وقلنايا آدم).

۷ - پدې آيت کي چي فرمايي: ﴿ وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ ﴾ دلته يې له خوړلو ځخه تعبير په نږدې والي (قرب) وفرمايل ترڅوچي له خوړلو ځخه په نهي کي يې مبالغه شوې وي.

۸ - ﴿ وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّى لَكُمَا ﴾ دلته يې دخبرتياتاکيدپه قسم (إنّ) اودتاکيدپه لام سره وکړ ترڅوچي ددروغو دشبهې دفع وکړي اودغه دول ته تاکيد(انکاري) وايې ځکه چي اورېدونکی په تردېد کي وي

۹ - ﴿ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ ﴾ ددې جملوترمنځ دطباق صنعت دی.

تنبيه:

عورت ته يې (سوءة) وويل ځکه لوڅېدل يې دعورت خاوندبدگڼي. علماء کراموويلي دي چي په آيت کي ددې دليل شته چي دعورت بربندکېدل دېرسترناخوښه عمل اوطبيعت ورځخه کرکه کوي نو يې (سوأة) وباله زه وايم چي دابليس لعين هدف په آيت کي ځرگند شو چي آيت فرمايي: ﴿ يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَٰتِهِمَآ ﴾ نوهغه کسان چي دښځوېي حجابي اوبربندوالی غوارې لکه چي ځان ته مترقي اومدني هم وايې دوی دښځوعرياني دآزادي اوحريت په پلموراولي خوپه حقيقت کي دښځودښمنان اودشيطان مرستندويان (ملگري)دي چي يوهدف يې دی اوهغه اخلاقي انحلال ته بلنه ده ترقي اومدنيت خوپه بربندوالي سره نشي راتلای هغه خودشرف په ساتنه اوپاک لمني کي نغښتي دي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ خُذُوا۟ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَكُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾ قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِىٓ أَخْرَجَ لِعِبَادِهِۦ وَٱلطَّيِّبَٰتِ مِنَ ٱلرِّزْقِ ۚ قُلْ هِىَ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٣٢﴾ قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّىَ ٱلْفَوَٰحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَٱلْإِثْمَ وَٱلْبَغْىَ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَأَن تُشْرِكُوا۟ بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا وَأَن تَقُولُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٣﴾ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۖ فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٤﴾ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِى ۙ فَمَنِ ٱتَّقَىٰ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



يَحْزَنُونَ ﴿٣٥﴾ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٣٦﴾ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ
افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ أُولَٰئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيبُهُمْ مِنَ الْكِتَابِ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوا أَيْنَ مَا
كُنْتُمْ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا وَشَهِدُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ ﴿٣٧﴾ قَالَ ادْخُلُوا فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ
مِنْ قَبْلِكُمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ فِي النَّارِ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَعَنَتْ أُخْتَهَا حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ
لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِنَ النَّارِ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِنْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾ وَقَالَتْ أُولَاهُمْ
لِأُخْرَاهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٣٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا
وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ
﴿٤٠﴾ لَهُمْ مِنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴿٤١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَا
نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٤٢﴾ وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ
الْأَنْهَارُ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ لَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ
الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾ وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النَّارِ أَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُمْ
مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالُوا نَعَمْ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ أَنْ لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ﴿٤٤﴾ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا
وَهُمْ بِالْآخِرَةِ كَافِرُونَ ﴿٤٥﴾ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمَاهُمْ وَنَادَوْا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ لَمْ
يَدْخُلُوهَا وَهُمْ يَطْمَعُونَ ﴿٤٦﴾ ۞ وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ أَصْحَابِ النَّارِ قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٤٧﴾ وَنَادَىٰ
أَصْحَابُ الْأَعْرَافِ رِجَالًا يَعْرِفُونَهُمْ بِسِيمَاهُمْ قَالُوا مَا أَغْنَىٰ عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ ﴿٤٨﴾ أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا
يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٤٩﴾ وَنَادَىٰ أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ
أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٥٠﴾ الَّذِينَ اتَّخَذُوا
دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ نَنْسَاهُمْ كَمَا نَسُوا لِقَاءَ يَوْمِهِمْ هَٰذَا وَمَا كَانُوا
بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ ﴿٥١﴾ الأعراف: ٣١ - ٥١

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دآدم علیه السلام کیسه وکړه اوداچي په هغه اوزامنویې دجامې پېرزوینه کړي وه هغه جامه چي شرمګاه وربانديي پټېږي نودلته يې امروفرمايه چي په مناسباتوکي دی دزینت اوتجمل هڅه وشي په ځانګړي توګه کله چي دلمانځه داداکولواراده لري بيايې داخرت یادونه وکړه چي هلته به کله چي دعدل اوجزاورځ وي خلګ ټولګی ټولګی وي جنتيان ، دوزخيان اوداعراف خاوندان چي هرڅوک به خپل ورهستوګنځی ا اونېکمرغي یاشقاوت مومي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## لغتونه:

﴿ زِينَتَكُمْ ﴾ زينت هغه څه ته وايي چې سړی ورباندي تجمل کوي لکه جامې اونورڅه ﴿ ٱلْفَوَٰحِشَ ﴾ دفاحشه جمع ده هغو ګناهونوته وايي چې دقبح اوبدي وروستي پړاوته رسېدلي وي ﴿ وَٱلْبَغْىَ ﴾ ظلم اواستبدادته وايي. ﴿ غَوَاشٍ ﴾ دغاشية جمع ده اوپټوونکي ته وايي. ابن عباس رضی الله عنه وايي: چې هغه برستني ( تلتکان ) دي ﴿ سُلْطَٰنًا ﴾ حجت اوبرهان ته ويل کېږي. ﴿ سَمِّ ٱلْخِيَاطِ ﴾ دستني سپوم( سوری) ﴿ مِهَادٌ ﴾ فرش چې انسان يې غوړوي ، ورباندي څملي. ﴿ ٱلْأَعْرَافِ ﴾ له ( اعراف الديک ) څخه اخيستل شوی دی چې دچرګ خول ياتاج ته وايي ﴿ بِسِيمَٰهُمْ ﴾ په نښانواوعلامودوی

## دنزول سبب يې:

ابن عباس رضی الله عنه وايي: چې دجاهليت په وخت کي به ښځوبربند( لغړ ) حالت کي طواف کولويو توکربه يې په (فرج) وخړول اوداسي به يې ويل: (اليوم يبدو بعضه او كله * فمابدامنه فلا أحله ) نن به يوڅه ياټول څرګند شي. هغه چې تري څرګند شي نه يې بښنم.

نوبيادا آيت نازل شو ﴿ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ اوبيادرسول الله صلی الله عليه وسلم (مؤذن ) داسي آذان ( غږ ) وکړچي: خبردار ! په بيت الله شريفه بربند طواف مکوئ ![1]

## تفسير:

﴿ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ اې زامنو دآدم ! واخلئ ښائست خپل په وخت دهرلمانځه او طواف چې غوره ،ښکلي اوپاکېزه جامې واغوندئ ﴿ وَكُلُواْ وَٱشْرَبُواْ وَلَا تُسْرِفُوٓاْ ﴾ اوخورئ څښئ اسراف مکوئ تاسي (په زينت خوراک اوڅښاک کي) ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ ببشکه چې الله جل جلاله نه خوښوي بې ځايه خرڅ کونکي ( متجاوزين له حده په حلال اوحرام کي ) ﴿ قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِىٓ أَخْرَجَ لِعِبَادِهِۦ وَٱلطَّيِّبَٰتِ مِنَ ٱلرِّزْقِ ﴾ (ووايه اې محمده دوی ته !) چې چاحرام کړی دی زينت دالله هغه چې ايستلی يې دی لپاره د بندګانو خپلو ؟(اوچاحرام کړی) پاک لذيذشيان له روزي څخه؟) يعني اې محمده ! دغوناپوهانوعربوته ووايه کوم چې په بيت الله شريفه باندي بربند طواف کوي اوپرځان يې پاکېزه شيان حرام کړيدي ورته ووايه چې چاپرتاسوباندي په جامو تجمل حرام کړی هغه چې ستاسودګټي لپاره يې له نباتاتوڅخه پيداکړي اويالېه خوړلو څښلوخوندورو څخه چامنع کړي ياست ؟ استفهام دتوبيخ اوانکارلپاره دی. ﴿ قُلْ هِىَ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ ووايه اې محمده دوی ته !) چې دغه ( زينت ) طيبات اونورنعمتونه اصلاً ) لپاره دهغوکسانودي چې ايمان يې راوړی دی ( که څه هم کفارورسره تبعًا ګډوي ) پدې ژوند ددنياکي حال داچي ( خاص مؤمنانولره ) دی په ورځ دقيامت کي ( چې هيڅوک به ورسره ګډون نلري څکه چې الله جل جلاله جنت په کافرانوباندي حرام کړيدی

---

(۱) أخرجه مسلم

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْأَيَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ ( همدارنګه ( لکه پورتني تفصيل ) بيانوو موږ آيتونه لپاره دهغه ) قوم چي پرې پوهېږي ) يعني موږ دداسي کسانولپاره چي دالله جل جلاله دحکمت تدبر کوي اوپه تشريع پوهېدل غواړي په تفصيلي توګه تشريعي آيتونه بيانوو ﴿ قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ ٱلْفَوَٰحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ﴾ ( ووايه اې محمده دوی ته ! ) بېشکه همدا خبره ده چي حرام کړي دي رب زما فواحش ( ناکاره کارونه چي قباحت يې انتهاته رسېدلی وي ) هغه چي ظاهروي له هغوڅخه اوهغه چي باطن وي له هغوڅخه ) يعني په پټ اوښکاره ترسره کېدونکي فواحش الله حرام کړيدي. ﴿ وَٱلْإِثْمَ وَٱلْبَغْيَ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ او(حرام کړيدي )الله جل جلاله ګناوي ټولي ( اوحرام کړی يې دی ) ظلم په ناحقه سره ( په خلګو باندي ) ﴿ وَأَن تُشْرِكُواْ بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا ﴾ بل ( داچي شريک ونيسئ په الله جل جلاله پوري تاسي ، هغه شی چي ندی نازل کړی الله په ( شريکولود ) هغه باندي هيڅ علمي سند(برهان) ﴿ وَأَن تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ ( اوحرام کړی دی داچي ) ووايئ تاسي په الله جل جلاله هغه خبري چي تاسي نه پرې پوهېږئ ) يعني دايې حرام کړي چي تاسو دتحليل اوتحريم په باب په الله جل جلاله باندي دروغ وتړئ ﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ﴾ ( اوهريو امت ته يوه نېټه شته ( دمرګ ياعذاب که ايمان رانه وړي ) يعني هرامت ته چي دخپل پيغمبرتکذيب يې کړی يوه ټاکلي نېټه دهلاکولوشته په البحرالمحيط کي وايي: چي دغه دمشرکينولپاره دعذاب زېری دی کله چي دوی دالله جل جلاله له امرنه مخالفت کوي[1] ﴿ فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ قَالُوٓاْ ضَلُّواْ عَنَّا وَشَهِدُواْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُواْ كَٰفِرِينَ ﴾ نوکله چي راشي نېټه دهلاکت ددوی نه به دوی ( ترې ) وروسته کېږي يوه ګړۍ اونه به ( ترې ) رومبی کېږي لکه چي الله جل جلاله فرمايي: ﴿ وَتِلْكَ ٱلْقُرَىٰٓ أَهْلَكْنَٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُواْ وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِم مَّوْعِدًا ﴾ الكهف: ۵۹ [2] اوګړۍ ( ساعت ) دهغه بېخي لږ زماني لپاره متل ګرزېدلی دی لکه يوه شبېه چي وايي. ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِي ﴾ ( اې زامنو دآدم ! که راشي تاسي ته رسولان له تاسي څخني چي لولي دوی پرتاسي باندي آيتونه د(کتاب) زمامراد دآدم له زامنوګرد امتونه دي يعني که تاسوته پيغمبران راشي چي درته احکام اوشرائع بيانوي.

﴿ فَمَنِ ٱتَّقَىٰ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ نو هرڅوک چي ځان وساتي ( ووېرېږي له ربه خپله ) اواصلاح وکړي ( عمل خپل ) نونه به وي هيڅ ډول وېره پردوی باندي اونه به وي دوی غمجن. ﴿ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱسْتَكْبَرُواْ عَنْهَآ أُوْلَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ اوهغه کسان چي نسبت يې ددروغوکړی دی آيتونوزموږته اوکبرکوي له (قبلولو) دهغوآيتونو (چي ايمان ورباندي نه راوړي ) همدغه کسان ملګري داورد(دوزخ) دي تل به پدغه اورکي وي ﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِهِۦٓ ﴾ ( نوڅوک دی

---

[1] البحرالمحيط ۴ / ۲۹۲

[2] په راجح توګه دآيت تفسير دادی چي مراد له اجل څخه دهغوتکذيب کونکوامتونو دهلاکت نېټه ده اودغه خبره طبري ابن کثيراوابوالسعود کړيده. چاپياويلي چي مراد دهر انسان اجل اودعمردانتها ، نېټه ده هغه چي نه لږېږي اونه زياتېږي خواول ارجح دی ځکه لفظ د ﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ ﴾ راغلی، والله أعلم

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

د پر ظالم له هغه چاچي له ځانه پر الله جل جلاله دروغ تړي يانسبت د دروغو کوي آيتونه د دغه (الله جل جلاله) ته (بلکه بل ظالم نشته) استفهام دانکارلپاره دی ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ يَنَالُهُمۡ نَصِيبُهُم مِّنَ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ دغه (مکذبان پر الله) ور به رسيږي دوی ته هغه ليکلي شوي برخه د دوی (په دنياکي له رزقونو او عمرونو څخه) مجاهد وايي چي: له نصيب څخه مراد هغه څه دي چي له خير او شر څخه ورسره ژمنه (وعده) شوي وي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوۡنَهُمۡ ﴾ تر هغه پوري کله چي راشي دوی ته رسولان زموږ (ملک الموت او اعوان يې) حال دا چي قبضوي دوی (ارواح د) هغوی ﴿ قَالُوٓاْ أَيۡنَ مَا كُنتُمۡ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ وايي دا (ملائک دي کفاروته) چېرته دی هغه (معبودان) چي وئ تاسي چي بلل به مو (عبادت به مو د (هغوی) کاووپرته له الله جل جلاله ؟ (چي تاسي له عذابه وژغوري او دغه پوښتنه د توبيخ او تبکيت لپاره ده. ﴿ قَالُواْ ضَلُّواْ عَنَّا ﴾ نو وبه وايي دغه (کافران) ورک شول له موږ (موږ ور څخه د هيڅ ګټي او خير هيله نلرو) ﴿ وَشَهِدُواْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمۡ أَنَّهُمۡ كَانُواْ كَٰفِرِينَ ﴾ (او شاهدي به ورکړي دوی پر ځانونو خپلو باندي چي بېشکه دوی (په دنيا کي) کافران وو) دغه اقرار به د افسوس او حسرت لپاره چي به ناهيلي او خسران کي به وي ترسره کړي. ﴿ قَالَ ٱدۡخُلُواْ فِيٓ أُمَمٖ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِكُم مِّنَ ٱلۡجِنِّ وَٱلۡإِنسِ فِي ٱلنَّارِ ﴾ وبه فرمايي (الله جل جلاله په قيامت کي دوی ته) چي ننوزئ په هغو امتونو کي د (کفارو فجارو) چي پخوا تېر شوي له تاسي له پېريانو او انسانانو په اور (د دوزخ) کي ﴿ كُلَّمَا دَخَلَتۡ أُمَّةٞ لَّعَنَتۡ أُخۡتَهَا ﴾ هر کله چي ننوزي (د دوزخ اور ته) يو ټولګی نو لعنت به وايي دغه پر هغه بل وړاندي امت چي په مثل دده ده (په ګمراهي کي). الوسي وايي چي پيروان به پخپلو مشرانو لعنت وايي چي پر تاسو دي لعنت وي چي موږ مو داسي هلاکت ته راورسولو[1] خو مراد (د دوزخيانو پر خپل منځ کي يو پر بل لعنت استول دي لکه چي الله بل ځای فرمايي: ﴿ ثُمَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يَكۡفُرُ بَعۡضُكُم بِبَعۡضٖ وَيَلۡعَنُ بَعۡضُكُم بَعۡضٗا ﴾ العنکبوت: ٢٥ ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا ٱدَّارَكُواْ فِيهَا جَمِيعٗا ﴾ تر هغو پوري کله چي يو ځای شي دوی په دې (اور کي ټول) ﴿ قَالَتۡ أُخۡرَىٰهُمۡ لِأُولَىٰهُمۡ رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ أَضَلُّونَا ﴾ نو وبه وايي وروستني د دوی (تابعان) په (باب د هغو) ړومبنيو (متبوعانو) کي (الله ته چي) اې ربه زموږ! دغو (مشرانو متبوعانو) ګمراه کړي وو موږ او د شيطان پيروي يې راته ښايسته کړي وه. ﴿ فَـَٔاتِهِمۡ عَذَابٗا ضِعۡفٗا مِّنَ ٱلنَّارِ ﴾ (نو ورکړه دوی ته عذاب دوچنده له اوره څخه) ځکه دوی زموږ د ګمراهي سبب وو او دغه په مثال د هغه آيت دی چي فرمايي: ﴿ وَقَالُواْ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعۡنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا۠ ٦٧ رَبَّنَآ ءَاتِهِمۡ ضِعۡفَيۡنِ مِنَ ٱلۡعَذَابِ ﴾ الأحزاب: ٦٧ - ٦٨ ﴿ قَالَ لِكُلّٖ ضِعۡفٞ ﴾ (وبه فرمايي (الله) چي د هر يوه لپاره دوچندي دی) يعني د مشرانو لپاره دوچندي دی چي دوی هم پخپله ګمراه او هم يې نور ګمراهي ته غورځولي وو او د پيروانو لپاره بيا په دې دوچنده دی چي يو يې کفر او بل يې (د نورو) تقليد خپل کړی وو. ﴿ وَلَٰكِن لَّا تَعۡلَمُونَ ﴾ ليکن تاسو پرې نه پوهېږئ ځکه د دوه چنده عذاب غوښتنه کوئ. ﴿ وَقَالَتۡ أُولَىٰهُمۡ لِأُخۡرَىٰهُمۡ فَمَا كَانَ لَكُمۡ عَلَيۡنَا مِن فَضۡلٖ ﴾ او

---

[1] روح المعاني ٨/ ١١٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



به وايي مشران ددوى په حق دوروستنيو (تابعانو) ددوى كي چي پس نه ووتاسو ته پرموږ باندي هيڅ بهتري (په سپکوالي دعذاب كي) څكه چي موږ په گمراهي اود عذاب په وړتياكي سره برابريو. ﴿ فَذُوقُواْ ٱلۡعَذَابَ بِمَا كُنتُمۡ تَكۡسِبُونَ ﴾ نو وڅکئ تاسي عذاب په سبب د هغو كارونوچي تاسي به كول (په دنياكي له گناهونو څخه هغه يې دكسات اخيستلو او (تشفي) لپاره ورته وويل څكه هغوى ددوى لپاره ددوچنده عذاب غوښتنه كړي وه.

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱسۡتَكۡبَرُواْ عَنۡهَا ﴾ ([1]) بېشكه هغه كسان چي نسبت ددروغوكوي آيتونوزموږ ته اوتكبر كوي (له قبول) دهغو يعني سره له دې چي آيتونه څرگندوي اودوى ورباندي ايمان نه راوړي اودهغوى په مقتضاعمل نه كوي. ﴿ لَا تُفَتَّحُ لَهُمۡ أَبۡوَٰبُ ٱلسَّمَآءِ ﴾ (وبه نه پرانستل شي دوى ته ورونه دآسمان) يعني ددوى نېك عملونه به آسمان ته ونه خېژول شي لكه چي الله تعالى فرمايي: ﴿ إِلَيۡهِ يَصۡعَدُ ٱلۡكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ ﴾ ابن عباس رضى الله عنه وايي: ددوى به نېك عمل نه پورته كېږي اونه هم دعاددوى اوچابياويلي چي ددوى داروا حونولپاره به دآسمانو دروازې نه پرانستل كېږي چي ددې خبري تائيد هم دا حديث شريف كوي چي فرمايي: (ان العبدالكافر اذاكان فى انقطاع من الدنيا يجئه ملك الموت حتى يجلس عند رأسه فيقول أيتها النفس الخبيثة أخرجى الى سخط من الله وغضب ويخرج منها كأنتن ريح جيفة فلايمرعلى ملإ من الملائكة الا قالوا ماهذه الروح الخبيثة ؟ حتى ينتهى الى السمآء الدنيا فيستفتح فلايفتح ([2]) دحديث شريف معنا داده: كله چي كافربنده له دنياڅخه دتللو په حال كي وي دمرگ پرښته ورته راشي اوسر ته يې كښېني ورته وايي اې پليتي سا (روح) دالله قهرته راووزه اوهغه بيا داسي بدبويه لكه دمرداري (مرژگي) بوى غوندي راووزي اوچي دپرښتو په هر ټولگي تېرېږي هغوى وايي دغه پليته روح دچاده ؟ ترڅوچي ددنيا آسمان ته ورسېږي اودروازه پرانستل غواړي دروازه ورته نه پرانستل كېږي ﴿ وَلَا يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ ٱلۡجَمَلُ فِي سَمِّ ٱلۡخِيَاطِ ﴾ (اونه به داخل شي دوى جنت ته ترهغه پوري چي ننوزي اوښ دستني په سوري كي) دغه ددوى ددخول دمحال گڼلولپاره تمثيل دى لكه چي اوښ محال دى چي دستني په سوري كي ننوزي همداسي ددوى دخول جنت ته محال دى اودغه په انځور كي مبالغه ده ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴾ اوهم داسي جزا وركوو موږ مجرمانو (دعصيان خاوندانو) ته ﴿ لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٞ ﴾ مقرردى دوى ته له دوزخ څني فرش (داور) ﴿ وَمِن فَوۡقِهِمۡ غَوَاشٖۚ ﴾ اووي به دپاسه ددوى اغوستني (داور) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوهمداسى (سخته) جزا وركوو موږ ظالمانو ته (چاچي دالله له حدودو تجاوز كړى وي) كله چي الله پاك دكافرانولپاره وعيد ذكر كړچي په آخرت كي به هسي عذابونه وركول كېږي ورپسې يې هغه څه راوړل چي مؤمنانوته وعده وركول شوي اوكوم نعمتونه يې ورته تياركړي دي ويې فرمايل: ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ (اوهغه كسان چي ايمان يې راوړى دى اوكړي يې دي ښه (عملونه) يعني هغه كسان چي دالله اورسول يې تصديق كړى اوپه هغه څه يې عمل كړى دى چي هغوى ورته فرمايلي دي) ﴿ لَا نُكَلِّفُ نَفۡسًا إِلَّا وُسۡعَهَآ ﴾ بارنه اچووپه هيڅ نفس مگرپه

---

([1]) طبري اوځيني مفسرين وايي چي (فَذُوقُواْ ٱلۡعَذَابَ) دالله جل جلاله كلام اودواړه ټولگيوته خطاب دى اودغه دتوبيخ په توگه ورته ويل كېږي خوڅرگنداوظاهره خبره داده چي دغه دى دگمراهانودمشرانوې چي خپلوپلويانوته خطاب كوي لكه چي البحرالمحيط ليكلي دي. والله اعلم

([2]) أخرجه احمد، ابن كثير ٢ / ١٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



قدر د طاقت د ده. دغه جمله معترضه بولي چي دمبتدا او خبر ترمنځ پېښه شوي ده په البحر کي وايې چي ددې فائده داده چي دغه عمل ددوی په توان کي شته او له قدرته څخه يې وتلی نه دی او همدا راز د کفارو لپاره تنبيه پکي نغښتي چي جنت سره له دومره زيا تو نعمتونو پدې آسانه عملونو بې تکليفه ګټل کېږي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه (مؤمنان) څښتنان د جنت دي همدوی به په هغه (جنت) کي تل وي ﴿ وَنَزَعۡنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنۡ غِلٍّ ﴾ او وبه باسو موږ هغه چي په سينو د دغو جنتيانو کي دی له کينو څخه (چي پرته له ميني او محبت څخه بل څه به يې په زړونو کي نه وي لکه چي په حديث شريف کي راځي: يدخلون الجنة وليس في قلوب بعضهم على بعض غل[1] يعني جنت ته به هسي ننوزي چي ديو چا به د بل چالپاره په زړه کي هيڅ کينه او بغض نه وي د ماضي صيغه په آيت کي د تحقق او ثبوت لپاره راوړل شوي ده. ﴿ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهِمُ ٱلۡأَنۡهَٰرُۖ ﴾ بهېږي به له لاندي د (ماڼيو او ونو د دوی) ويالي (د زيات نعمت په توګه) ﴿ وَقَالُواْ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي هَدَىٰنَا لِهَٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهۡتَدِيَ لَوۡلَآ أَنۡ هَدَىٰنَا ٱللَّهُۖ ﴾ او وايي به دغه جنتيان ټولي ثناوي او احسانات الله ته دي. هغه الله چي برابر يې کړو موږ دې (مقام) ته او نه وو موږ پخپله چي مونده لي موو ای د الاره که الله راته هدايت نه وی کړی (او توفيق يې راسره ملګری کړی نه وای) ﴿ لَقَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ رَبِّنَا بِٱلۡحَقِّۖ ﴾ (په تحقيق سره راغلي وو رسولان د رب زموږ پرحقه سره) يعني قسم دی چي ربښتيا ويلي وو موږ ته رسولانو چي له پروردګاره يې خبر راکاوو. ﴿ وَنُودُوٓاْ أَن تِلۡكُمُ ٱلۡجَنَّةُ أُورِثۡتُمُوهَا بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴾ (او آواز به وکړل شي دغو جنتيانو) ته داسي چي دغه جنت په ميراث (ورپا) درکړل شوی دی تاسي ته په سبب د هغه چي وی تاسي کول به مو (نېک عملونه په دنيا کي) يعني پرښتې به دوی ته هسي آواز وکړي. قرطبي وايي: چي معنايې داده: د جنت منازل ستاسي د اعمالو په سبب درکول شوي او د جنت دخول د الله په رحمت او فضل دی. په حديث شريف کي راځي: (لن يدخل أحداً منكم عمله الجنة) الحديث[2] يعني هيڅکله به يو څوک پخپل عمل جنت ته داخل نشي. ﴿ وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ أَصۡحَٰبَ ٱلنَّارِ أَن قَدۡ وَجَدۡنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقّٗا فَهَلۡ وَجَدتُّم مَّا وَعَدَ رَبُّكُمۡ حَقّٗاۖ قَالُواْ نَعَمۡۚ ﴾ او غږ به وکړي جنتيان (د ځپه کولو لپاره) څښتنانو د اور ته داسي چي په تحقيق ومونده ل موږ هغه ثواب چي وعده کړې وه رب له موږ سره (د انبياوو په ژبه له نعمتونو) په حقه سره نو آيا ومونده تاسي (هم) هغه (عذاب) چي وعده کړې وه رب ستاسي (د عذاب او سپکاوي) په حقه (ربښتيا) سره (نو) وبه وايي دوزخيان چي هو (هغه موهسي بيامونده). زمخشري وايي چي: دغه خبري ددې لپاره سره تبادله کېږي چي په دوزخيانو باندي د جنتيانو سخي پخي شي او دوزخيانو ته خفګان ورزيات کړي هغه هم پدې يوازې اخبار او استخبار سره[3] ﴿ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنُۢ بَيۡنَهُمۡ أَن لَّعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نو غږ به وکړي يو غږکونکی په مينځ د دوی (جنتيانو او دوزخيانو) کي داسي چي لعنت د الله دي پر ظالمانو وي) بيايې د ظالمانو صفت هسي بيان کړ چي: ﴿ ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا ﴾ هغه ظالمان چي ګرځوي دوی خلګ له لاري د الله جل جلاله او لټوي دوی په دغي (لاري) کي کوږوالی (عيب)

(1) أخرجه ابن ابى حاتم
(2) أخرجه مسلم وانظر القرطبي ٧ / ٢٠٩
(3) الكشاف ٢ / ١٠٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



یعني دوی هغه کسان دي چي په دنیاکي به یې خلک د دین له پیروي څخه منع کول او غوښتل یې چي د دین لاره کږه وښیې ترڅو وربا ندي څوک ولاړنشي ﴿ وَهُم بِٱلْـَٔاخِرَةِ كَـٰفِرُونَ ﴾ اودوی په ( راتلو ) د آخرت ( قیامت ) باندي کافران وو ( چي نه یې منل ) ﴿ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى ٱلْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّۢا بِسِيمَىٰهُمْ ۚ ﴾ او په مینځ کي د دغو دواړو ( جنت اودوزخ یو دېوال ) پرده ده او پر اعراف باندي به سړي وي چي پېژني دوی هر یو جنتي اودوزخي ) په علامو د دوی سره ) دغه حجاب هغه دېوال دی چي په بل آیت کي فرمایي: ﴿ فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لَّهُۥ بَابٌۢ بَاطِنُهُۥ فِيهِ ٱلرَّحْمَةُ وَظَـٰهِرُهُۥ مِن قِبَلِهِ ٱلْعَذَابُ ﴾ الحدید: ۱۳ چي دغه دوزخیان منع کوي چي جنت ته ننوزي اوپدې دېوال باندي خلک وي چي جنتیان او دوزخیان دواړه پېژني په علامو د هغوی. قتادة وایې چي: دوزخیان به په تورو مخونو پېژني او جنتیان به د مخونو په سپینوالي پېژني. ([1]) ﴿ وَنَادَوْا۟ أَصْحَـٰبَ ٱلْجَنَّةِ أَن سَلَـٰمٌ عَلَيْكُمْ ۚ ﴾ او غږ به وکړي دغه ( اعرافیان ) جنتیانو ته داسي چي سلام دي وي پر تاسي ) الله تعالی فرمایي: ﴿ لَمْ يَدْخُلُوهَا وَهُمْ يَطْمَعُونَ ﴾ حال دا چي داخل شوي به نه وي دغه ( اعرافیان ) جنت ته اودوی به طمع ( د جنت ) لري. ﴿ وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَـٰرُهُمْ تِلْقَآءَ أَصْحَـٰبِ ٱلنَّارِ قَالُوا۟ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ ( او کله چي وګرزولی شي سترګي د دغو اعرافیانو ) په لوري د خاوندانو د اور ( دوزخیانو ) نو به وایې دغه ( اعرافیان ) له ډېره هیبته ) اې ربه زموږ! مه ګرزوه ( مه یو ځای کوه ) موږ له قومه د ( ظالمانو سره ) مفسرین کرام وایې چي: اعرافیان هغه څوک دي چي نېکي او بدي یې سره برابر وي نه جنتیان وي او نه هم دوزخیان هلته په دېوال باندي پاتي کېږي ترڅو الله جل جلاله د دوی په هکله فیصله وکړي. ابوحیان وایې چي په تعبیر د ( صرفت ) کي دا دلیل شته چي د ډېر کتل د دوی جنتیانو ته وي او کله چي دوی ته د دوزخیانو پلو ته د کتلو دنده ورکول شي او دوی دوزخیان په بد حالت ووینې نو دوی فریاد پیل کړي چي الله پاکه موږ له دوی سره مه یو ځای کوه ([2]) ﴿ وَنَادَىٰٓ أَصْحَـٰبُ ٱلْأَعْرَافِ رِجَالًا يَعْرِفُونَهُم بِسِيمَىٰهُمْ ﴾ او غږ به وکړي څښتنان د اعراف هغو سړیو ته ( له دوزخیانو ) پېژني به دا اعرافیان هغوی په علامو د ( تورو مخونو ) ) هغوی ( چي د کفارو مشران به وي ) ﴿ قَالُوا۟ مَآ أَغْنَىٰ عَنكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ ﴾ ( او وبه وایې دا اعرافیان دوزخیانو ته څه شی دفع وکړه له تاسي د ډېروالي ( د مال ستاسي او هغه چي وی تاسي لویې به موکوله ( د ایمان له راوړلو څخه ) استفهام دلته د توبیخ لپاره دی ﴿ أَهَـٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ ٱللَّهُ بِرَحْمَةٍ ۚ ﴾ ( وبه وایې اعراقیان چي ) آیا ( دغه په جنت کي ) هغه ( ضعیفان مسلمانان ) دي چي قسمونه به خوړل تاسي ( په دنیاکي ) چي وبه نه رسوي دوی ته الله جل جلاله خپل رحمت ؟ استفهام تقریري او د توبیخ لپاره راغلی چي د دوی د توبیخ او شماتت لپاره دی هم دغو جنتیانو ته به وایې چي: ﴿ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَآ أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴾ ( ننوزئ جنت ته چي نه به وي هیڅ وېره پر تاسي باندي او نه به تاسي غمجن کېږئ ) الوسي وایې چي: دغه د اعرافیانو له خوا جنتیانو ته ویل کېږي چي په بشپړه خوشحالي او پوره

---

([1]) الطبري ۱۲ / ۴۲۳

([2]) البحر المحیط.

Scanned by CamScanner

Scanned with CamScanner

Bawar.net



عزت سره په جنت کي اوسئ(١) ﴿وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ أَصۡحَٰبَ ٱلۡجَنَّةِ أَنۡ أَفِيضُواْ عَلَيۡنَا مِنَ ٱلۡمَآءِ أَوۡ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُۚ﴾ ( اوغږ به وکړي صاحبان داور صاحبانو دجنت ته داسي چي راتوی کړئ تاسي پرموږباندي له اوبو اويا(راواچوئ ) له هغوشيانوچي روزي درکړي ده تاسي ته الله) داسی الله تبارک وتعالی له هغه محاورې څخه چي ددوزخيانواو جنتيانوترمينځ به کېږي اخبارکوي کله چي دوی هره ډله پخپل ځای هستوګنه غوره کړي نوبه دوزخيان چي خپل تکليفونه ووينی داسي فرياداوزاري پيل کړي چي موږخولوږي ، تندي هلاک کړوخه اوبه ياخواړه خوراواچوئ ؟ جنتيان به ورته وايي) ﴿قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ (وبه وايي جنتيان (دوی ته) چي الله حرام کړي دي دادواړه( خوراک ، څښاک) پرکافرانو) . ابن عباس رضی الله عنهماوايي چي: يو سړی به ورور، ياپلارته وايي چي: وسوځېدلم څه اوبه خوراکړئ ورته وبه ويل شي چي خواب ورکړئ نوبه دوی ورته ووايي: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ (٢) بيا الله جل جلاله دکافرانوصفت هسي څرګندوي چي ﴿ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ دِينَهُمۡ لَهۡوٗا وَلَعِبٗا﴾ هغه ( کافران) چي نيولی وو دوی دين خپل تماشااولوبي ﴿وَغَرَّتۡهُمُ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَاۚ﴾ (اوغولولي وودوی ژوندانه ددنيا) يعني دوی ددنياپه مزخرفاتواوشهواتو تېروتلي ووهغه چي غولونکي اووژونکي دي. ﴿فَٱلۡيَوۡمَ نَنسَىٰهُمۡ كَمَا نَسُواْ لِقَآءَ يَوۡمِهِمۡ هَٰذَا﴾ (نونن ورځ به هېروو موږدوی لکه چي هېرکړی وودوی ملاقات دخپلي دغي ورځي ) يعني په همدغي ورځي کي به موږدوی په عذاب کي پرېږدولکه چي دوی ددغي ورځي لپاره دملاقات عمل پرې اينبی وونه يې په زړه کي ورګرزېدل اونه يې ورته پاملرنه کوله. الوسي وايي چي کلام دتمثيل په ډول راوتلی يعني موږبه يې په اورکي هسي پرېږدولکه چي دوی ددغي ستري ورځي يوځای کېدل هېرکړي ووهغه چي هيڅ نه ښايي هېره دي شي(٣) ابن کثير وايي چي: له دوی سره به داسي معامله وشي لکه معامله دهېرونکي څکه د الله جل جلاله له علم څخه خوهيڅ نه پټېږي اونه هېرېږي (٤) ﴿وَمَا كَانُواْ بِـَٔايَٰتِنَا يَجۡحَدُونَ﴾ اولکه چي وودوی چي په آيتونو زموږبه يې انکارکاوو(په دنياکي اووربانديب به يې ملنډي وهلې) همداسي به يې موږپه عذاب کي هېرکړو.

### بلاغت:

١- ﴿عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ﴾ دغه کلام مرسل مجاز دی اوعلاقه يې محليت دی څکه مراددلته لمونځ اوطواف دی اوڅرنګه چي مسجد دلمانځه ځای دی وربانديب اطلاق يې وکړ.

٢- پدې آيت کي چي فرمايي: ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمۡ أَبۡوَٰبُ ٱلسَّمَآءِ﴾ ( دنه منلوڅخه کنايه ده يعني دهغوی دعااوعمل نه منل کېږي

٣- ﴿حَتَّىٰ يَلِجَ ٱلۡجَمَلُ فِي سَمِّ ٱلۡخِيَاطِۚ﴾ پدې کلام کي ضمني تشبيه ده يعني په هيڅ حال له احوالوبه جنت ته ولاړنشي ترڅوچي اوښ دستني په سوري کي ننوزي اودغه دمحال کارلپاره استعاره ده.

---

(١) روح المعاني ٨ / ١٣٢

(٢) الطبري ١٢ / ٤٧٣

(٣) روح المعاني ٨ / ١٣٧

(٤) مختصرابن کثير ٢ / ٢٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴- پدې کلام کې کې الله جل جلاله فرمايي: ﴿ لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ﴾ دالبحرالمحيط مؤلف وايي چي دغه دچاپېر کېدلو لپاره استعاره ده لکه چي بل ځای الله تعالى فرمايي: ﴿ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ﴾ الزمر: ۱۶[1]

۵- پدې کلماتو کې چي پدې آيت شريف کي راغي ﴿ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ﴾ د﴿ ظَهَرَ ﴾او﴿ بَطَنَ ﴾ ترمنځ دطباق صنعت دی اوله بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

فائده:

روايت کېږي چي دهارون الرشيد يو نصراني طبيب وو چي يو وخت يې يو عالم ته وويل چي: ستاسو په کتاب کې دطب په باب هيڅ هم نشته او علم په دوه ډوله دی يو يې علم الابدان او بل يې علم الاديان دی نو عالم ورته وويل چي: الله جل جلاله ټول دطب علم په نيمايي آيت شريف کي راغونډ کړی دی. طبيب ورته وويل: هغه کوم دی؟ عالم ورته وويل: چي دا الله جل جلاله داقول: ﴿ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا ﴾ نصراني طبيب وويل: چي ستاسي پيغمبر بيا دطب په هکله کوم شی ندی ويلی عالم ورته وويل: چي زموږ پيغمبر په لنډو الفاظو کي طب رانغاړلي دي هغه ورته وويل: چي څه يې ويلي ؟ عالم ورته وويل: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: ( ماملأابن آدم وعاء شرمن بطنه بحسب ابن آدم من لقيمات يقمن صلبه ) الحديث نو نصراني وويل: چي په رښتيا ستاسو کتاب او نبي د جالينوس لپاره دطب په هکله هيڅ هم ندي پرې ايښي.

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ جِئْنَاهُم بِكِتَابٍ فَصَّلْنَاهُ عَلَىٰ عِلْمٍ هُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٢﴾ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا تَأْوِيلَهُ ۚ يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُ يَقُولُ الَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبْلُ قَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَاءَ فَيَشْفَعُوا لَنَا أَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ ۚ قَدْ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٥٣﴾ إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ ۗ أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ ۗ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٥٤﴾ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿٥٥﴾ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا وَادْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا ۚ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾ وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنَاهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ فَأَنزَلْنَا بِهِ الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۚ كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا ۚ كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ ﴿٥٨﴾ لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٥٩﴾ قَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ

[1] البحر المحيط ۴ / ۲۹۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴿٦٠﴾ قَالَ يَٰقَوۡمِ لَيۡسَ بِي ضَلَٰلَةٞ وَلَٰكِنِّي رَسُولٞ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٦١﴾ أُبَلِّغُكُمۡ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي
وَأَنصَحُ لَكُمۡ وَأَعۡلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٦٢﴾ أَوَعَجِبۡتُمۡ أَن جَآءَكُمۡ ذِكۡرٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَلَىٰ رَجُلٖ مِّنكُمۡ لِيُنذِرَكُمۡ
وَلِتَتَّقُواْ وَلَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ ﴿٦٣﴾ فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥ فِي ٱلۡفُلۡكِ وَأَغۡرَقۡنَا ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَآۚ إِنَّهُمۡ كَانُواْ
قَوۡمًا عَمِينَ ﴿٦٤﴾ ۞ وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمۡ هُودٗاۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٦٥﴾ قَالَ ٱلۡمَلَأُ
ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَوۡمِهِۦٓ إِنَّا لَنَرَىٰكَ فِي سَفَاهَةٖ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴿٦٦﴾ قَالَ يَٰقَوۡمِ لَيۡسَ بِي
سَفَاهَةٞ وَلَٰكِنِّي رَسُولٞ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٦٧﴾ أُبَلِّغُكُمۡ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي وَأَنَا۠ لَكُمۡ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴿٦٨﴾ أَوَعَجِبۡتُمۡ أَن جَآءَكُمۡ
ذِكۡرٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَلَىٰ رَجُلٖ مِّنكُمۡ لِيُنذِرَكُمۡۚ وَٱذۡكُرُوٓاْ إِذۡ جَعَلَكُمۡ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعۡدِ قَوۡمِ نُوحٖ وَزَادَكُمۡ فِي ٱلۡخَلۡقِ
بَصۜۡطَةٗۖ فَٱذۡكُرُوٓاْ ءَالَآءَ ٱللَّهِ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴿٦٩﴾ قَالُوٓاْ أَجِئۡتَنَا لِنَعۡبُدَ ٱللَّهَ وَحۡدَهُۥ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعۡبُدُ
ءَابَآؤُنَا فَأۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٧٠﴾ قَالَ قَدۡ وَقَعَ عَلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ رِجۡسٞ وَغَضَبٌۖ
أَتُجَٰدِلُونَنِي فِيٓ أَسۡمَآءٖ سَمَّيۡتُمُوهَآ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُم مَّا نَزَّلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلۡطَٰنٖۚ فَٱنتَظِرُوٓاْ إِنِّي مَعَكُم مِّنَ
ٱلۡمُنتَظِرِينَ ﴿٧١﴾ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥ بِرَحۡمَةٖ مِّنَّا وَقَطَعۡنَا دَابِرَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَاۖ وَمَا كَانُواْ مُؤۡمِنِينَ
﴿٧٢﴾ الأعراف: ٥٢ ـ ٧٢

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی دکفارو بدمرغه حال او په آخرت کي خسران یادکړنو دلته بیادا راوړي چي دهیڅ عذر دمنلو وړنه دی ځکه الله جل جلاله پیغمبران رااستولي او هغوی ته یې دبشریت دلارښووني کتابونه ورکړي دي بیا یې دځینو انبیاوو چي په پیل کي د انبیاوو مشرحضرت نوح علیه السلام او وروسته هود علیه السلام یادونه وکړه او داچي مشرکینو ددوی دبلني په وړاندي څرنګه دریز درلود هغه یې څرګند کړل

## لغتونه:

﴿ تَأۡوِيلَهُۥ ﴾ له( أل ،يؤل )څخه اخستل شوی او پایله یا عاقبت ته وایې. ﴿ ٱسۡتَوَىٰ ﴾ دعلو او استقرار په معنادی جوهري وایې ( استوى على ظهر الدابة ) معنا په مرکب مستقرشو او چي وایې ( استوى الى السمآء ) معنا داچي قصدیې وکړ آسمان ته او( استوى الشئ )کله چي برابرشي ﴿ يُغۡشِي ﴾ پټوي ﴿ حَثِيثٗا ﴾ له حث څخه اخستل شوی او سرعت ته وایې ﴿ تَبَارَكَ ﴾ له برکت څخه تفاعل دی یعني کثرت او پراخي. ازهري وایې چي دتبارک معنا( تعاظم ) او( تعالى) دی ﴿ تَضَرُّعٗا ﴾ دعاجزي اظهار کولو ته وایې ﴿ وَخُفۡيَةً ﴾ پټ ﴿ بُشۡرَۢا ﴾ زیری ورکونکی په باران سره ﴿ أَقَلَّتۡ ﴾ باریې کړل ﴿ نَكِدٗا ﴾ لږ ﴿ ءَالَآءَ ﴾ نعمتونه چي واحد یې (إلى) دی لکه (مِعَى).

Bawar.net



تفسير:

﴿ وَلَقَدْ جِئْنَٰهُم بِكِتَٰبٍ ﴾ (او خامخا راوړي دي موږ دغو (كفارو) ته كتاب) يعني موږ دغو دمكې خلكو ته قرآن عظيم وركړيدى ﴿ فَصَّلْنَٰهُ عَلَىٰ عِلْمٍ ﴾ (چي واضح بيان كړيدي موږ (معاني د) ده حال داچي عالمان وو موږ (په معاني دده) يعني موږ يې احكام او معاني ځرګند بيان كړي ترڅو سم برابر او كوږ والى پكي نه وي ﴿ هُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ (حال داچي دغه كتاب هدايت اورحمت دى لپاره د (هغه) قوم چي ايمان (پرې) لري) يعني ددوى لپاره هدايت، رحمت او سعادت دى ﴿ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا تَأْوِيلَهُۥ ﴾ (آيا انتظار كوي دوى (بلكه نه كوي) مگر عاقبت دهغه (شي چي په دغه كتاب كي دى) له ثواب او عذاب) يعني دمكې خلك انتظار نه كوي مگر عاقبت دهغه عذاب او وبال چي وعده وركول شوي ده. قتادة وايې چي: دتأويل معنا عاقبت او انجام دى.

﴿ يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُۥ ﴾ په هغې ورځي كي چي راشي عاقبت دده په قيامت كي) ﴿ يَقُولُ الَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبْلُ ﴾ وايې هغه كسان چي هېر كړي وو دوى دغه كتاب پخوا له دې نه (او عمل يې پرې نه كاوه) ﴿ قَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ﴾ (په تحقيق راغلي وو رسولان درب زموږ پرحقه) موږ ته ددوى رښتنولي ثابته شوه خو موږ ورباندي ايمان نه راوړ او نه مو ددوى پيروي كوله. طبري وايې چي: دغه بېوزلان كله چي دالله عذاب ورباندي ولوېږي قسمونه كوي چي دالله پيغمبرانو دوى ته رسالت رسولى او نصيحت يې ورته كړى وو خو دوى دغه تصديق په داسي وخت كي وي چي ورته ګټه نه رسوي او دالله جل جلاله له قهر څخه يې د هر قيل او قال نه ژغوري.(۱) ﴿ فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَاءَ فَيَشْفَعُوا لَنَا ﴾ نو آيا شته موږ لره له شفاعت كونكو چي شفاعت وكړي دوى زموږ لپاره) يعني آيا څوك شته چي زموږ شفاعت وكړي او له دې عذاب نه مو وژغوري پدې استفهام كي دهېلي او تمنا معنا شته.

﴿ أَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ يا بېرته بوتله شو (دنيا ته) نو (ښه) عمل به وكړو غير له هغه (بد) عمل نه چي وو موږ چي كاوه به مو (په دنيا كي) الله تعالى ددوى په ردكي فرمايې: ﴿ قَدْ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ په تحقيق زيان رسولى دوى ځانونو خپلو ته (په كفر) او ورك) شوله دوى نه هغه چي وو دوى چي دروغ به يې ويل د (شرك) يعني دوى ځكه خسران وكړ چي ددنيا خا سرفاني ژوندون يې دآخرت په باقي او تل پاتي ژوندانه رانيو (وپېرودل) او بې فائدې شول هغه ګومانونه ددوى چي دوى به ويل دغه بتان او خدايان به زموږ شفاعت كوي بيا الله تعالى دخپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي يادوي: ﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ (بېشكه چي رب ستاسي الله دي هغه الله چي پيدا كړي يې دي آسمانونه او ځمكه (په مقدار) دشپږو ورځو كي) يعني ستاسي معبود او خالق هغه بېوازنى ذات دى كوم چي تاسى يې عبادت كوئ هغه دايجاد داسي توان لري چي ځمكه او آسمانونه يې د (دنيا) دشپږو ورځو په موده كي پيدا كړيدي قرطبي وايې: كه يې اراده كړي واى نو په يوه شېبه كي به يې پيدا كړي وو خو الله جل جلاله غوښتل چي بندګانو ته.

---

(۱) الطبري ۱۲/ ۴۸۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دتلواري نه کولوتعلیم ورکړی. ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ (بیایې استواء وکړه پرعرش) هسې استواء چې دده جلت عظمته له شانه سره ښایې بې له تشبیه اوتمثیل نه اوپرته له تعطیل اوتحریف نه لکه چې دسلف صالحینومذهب اولکه چې امام مالک رحمه الله وایې چې استوآء معلومه اوکیفیت یې مجهول دی اوایمان ورباندې واجب دی اوپوښتنه له دې (کیفیت) څخه یې بدعت دی. امام احمد رحمه الله وایې چې: دصفاتوڅخه اخبارهسې کاووشي لکه چې راغلي وي بې له تشبیه اوتعطیل نه، داسې نه ویل کېږي چې څرنګه؟ اوولې؟ موږیدې ایمان لروچې (ان الله علی العرش کیف شآء وکماشآء) بې له دې چې څوک یې صفت وکړي اویایې تعریف څرګند کړي موږآیت اوحدیث لولواوپه هغه څه ایمان لروچې په دوی کې دي خود کیفیت سپارښت یې دالله عزوجل علم ته کوو.(١) اوقرطبي وایې چې: له سلف صالحینو څخه هیڅوک هم ددې انکارنه کوي چې (انه علی عرشه حقیقة) خوبېشکه خبره داده چې داستوآء کیفیت ورته معلوم نه دی څکه هیڅوک یې په حقیقت نه پوهېږي(٢) ﴿ يُغْشِى ٱلَّيْلَ ٱلنَّهَارَ يَطْلُبُهُۥ حَثِيثًا ﴾ پټوي (تیاره د) شپې په (رڼاد) ورځې چې طلب کوي هره یوه بل لره په تلوار سره (چې ویې مومي) ﴿ وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ وَٱلنُّجُومَ مُسَخَّرَٰتٍۭ بِأَمْرِهِۦٓ ﴾ او(پیداکړي یې لمراوسپوږمۍ اوستوري حال داچې مسخرکړی شویدي حکم دالله ته ﴿ أَلَا لَهُ ٱلْخَلْقُ وَٱلْأَمْرُ ﴾ خبردارشئ چې (خاص) الله لره دی پیداکول اوحکم فرمایل (دټولوکائناتو) ﴿ تَبَارَكَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ الله لوی برکت والادی پروردګاردګردو عالمیانودی ﴿ ٱدْعُوا۟ رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ﴾ (بولئ تاسې خپل رب په زاري اوپه پټه سره) په خشوع اوخضوع باندې ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ﴾ (بېشکه چې الله نه خوښوي تېرېدونکي) په دعاکې چیغې وهونکي په وازکومې په حدیث شریف کې راځي (انکم لاتدعون أصم ولاغائبًا) یعني تاسوخوغائب اوکانه ته غږنه ورکوئ. ﴿ وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَٰحِهَا ﴾ (اوپه ځمکه کې فسادمکوئ وروسته له اصلاح ددې) یعني تاسوپه ځمکه کې په شرک اوګناهونو فسادمه جوړوئ وروسته له دې چې الله پاک هغه دپیغمبرانو په را استولو اصلاح کړیده. ﴿ وَٱدْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾ اوبولئ تاسې الله (عبادت یې کوئ) په وېرې سره (له عذابه دالله) اوپه امید (درحمت دالله) ﴿ إِنَّ رَحْمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ (بېشکه چې مهرباني دالله ډېره نژدې ده محسنانولره) یعني دالله رحمت هغومطیعانواوفرمان وړونکوته چې دالله داوامرو امتثال کوي اوله زواجرو څخه یې ځان ژغوري خورانژدې دی ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى يُرْسِلُ ٱلرِّيَٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦ ﴾ اوهمدغه (الله) هغه ذات دی چې رالېږلی بادونه زېري کونکي په مخکې درحمت دده (چې باران دی) یعني لېږي بادونه زېري کونکي په باران. په البحر المحیط کې وایې چې د( بین یدی رحمته ) معناباران دی اوهغه له ستروا وښایسته نعمتونه څخه ګڼل کېږي چې په انسان باندې یې اغېزه راځي.(٣) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَقَلَّتْ

---

(١) محاسن التأویل ٧ / ٢٧٠٨

(٢) الطبري ١٢ / ٤٨٠

(٣) البحر المحیط ٤ / ٣١٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ سَحَابًا ثِقَالًا ﴾ ترهغه پوري چي راواخلي ( دغه بادونه ) وريځي درنې ( په اوبو سره ) ﴿ سُقْنَٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ ﴾ چي روانوموړې دغه وريځي زرغونولو د ( هغي مځكي ته چي مړه ( وچه بې گياه ) وي ﴿ فَأَنزَلْنَا بِهِ ٱلْمَآءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ مِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ ﴾ پس نازلوو موږ له دې وريځوڅخه اوبه نو راباسوموږ په هغواوبوله هرقسم ميوو څخه . ﴿ كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ ٱلْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ همداسي ( لکه چي مړه ځمکه ژوندۍ کوو ) راباسوموږ مړي ( له مځکي ) دپاره ددې چي پندواخلئ ) ابن کثير وايې چي : الله جل جلاله دېرخله دقيامت دورځي لپاره دځمکي په ژوندي کولووروسته له مړيني مثال راوړي نوڅکه يې وفرمايل چي ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ (١) ﴿ وَٱلْبَلَدُ ٱلطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُۥ بِإِذْنِ رَبِّهِۦ ﴾ ( اوځمکه پاکه ( خوږه دزراعت وړ ) راوزي زرغونه زرغونه ددې ( ښه کامله ) په حکم درب دده ) هغه ځمکه چي خوږه ، زراعتي ، زرخېزه وي نونباتات يې زيات اوگټورراوزي . دالله جل جلاله په اراده اوآسانتياسره اوداهغه مؤمن مثال دی چي وعظ اونصيحت اوری وربانديگټه اونفع اخلي ﴿ وَٱلَّذِى خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا ﴾ ( اوهغه ځمکه چي خرابه ښوره وي نه راوزي نبات (زرغونه ) يې مگرلږ ناقصه ) يعني کله چي ځمکه ناکاره دتورودبرو اوياتروه مالگينه وي نباتات يې نه راتوکېږي مگرپه مشقت اوډېرلږچي نفع پکي نه وي اودغه دکافرلپاره مثال راوړل شوی چي په نصيحت باندي گټه نه آخلي .
ابن عباس رضی الله عنه وايې چي : داهغه مثال دی چي الله جل جلاله دمؤمن اوکافرلپاره راوړی دی نومؤمن پاک اوعمل يې هم پاک وي لکه پاکه ځمکه چي ميوه يې هم پاکه وي اوکافرپليت دی عمل يې هم پليت لکه ښوره ناکه ځمکه چي گټه وربانديُ نشي اخيستل کېدای ﴿ كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ ﴾ ( په شان ددې (مثالونو) بيابيا بيانوو آيتونه لپاره دقوم ( مؤمنانو ) چي شکرباسي ) يعني لکه دامثال چي موبيان کړهمداسي دلائل په آيت وروسته له آيت بيانوو لپاره دهغه چاچي دالله په نعمتونوشکرباسي اوکله چي شاکرين يې په يادولوځانگړي کړل سبب يې دادی چي هغوی دقرآنکريم په اورېدلوگټه اخلي . الوسي وايې : معناداچي ددغه نادر اوښتون په شان موږ سترقدرت په ځرگندولوآيتونه راوړو اومکرر کووېي دهغه چالپاره چي دالله تعالی دنعمتونوشکرباسي اوشکرايستل يې په فکرکولو اوعبرت اخيستلوباندي وي(٢) ﴿ لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ ﴾ ( قسم دی په تحقيق لېږلی وو موږ نوح په لوري دقوم دده ) لام دمحذوف قسم لپاره جواب دی يعني والله چي په تحقيق موږنوح لېږلی وو . نوح عليه السلام دانبياوو شيخ اوبزرگوار ووڅکه ترټولويې عمردراز وو اوهغه لومړنی پيغمبر ووچي الله پاک وروسته له ادريس عليه السلام څخه رالېږلی وو اوهيڅ نبی دومره تکاليف لکه چي نوح عليه السلام گاللي له خپله قومه نه دي ليدلي(٣) ﴿ فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ ( نووويل : (نوح) اې قومه زما ! عبادت کوئ تاسي د ( الله ) يعني په وحدانيت سره الله جل جلاله ومنئ اوشريک ورسره مه نيسئ ستاسي لپاره پرته له الله بل څوک دعبادت مستحق اوور نشته ﴿ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ

(١) مختصر ابن کثير ٢ / ٢٧
(٢) روح المعاني ٨ / ١٤٨
(٣) دنوح عليه السلام ژوندپانه زموږ په کتاب النبوة والانبياء کي وگورئ .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عَظِيمٍ ﴾ ( بېشکه زه وېرېږم په تاسي باندي له عذاب دورځي لويې ) يعني که موايمان نه راووړاوشريکان مونېول نوزه پرتاسي دقيامت دلويې ورځي له عذابه وېرېږم. ﴿ قَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِهِۦٓ إِنَّا لَنَرَىٰكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ ( نوو ويل : مشرانوله قوم دنوح بېشکه موږوينو تا په ګمراهي ځرګنده کي ) يعني مخه ورو اشرافودقوم يې ورته وويل چي: موږوينو تا لويه لاره ورکه کړيده . ابوحيان وايي چي له ټوله قومه څخه يې بل چا خواب ورنکړمګريوازي خانانومشرانواودوی هغه کسان دي چي عقلونه يې په دنيا اوریاست ګټلوکي غوپه وي [١] اوهمداراز ددنيادټولوفاجرانو حال وي چي نېکان ورته په ګمراهي کي برېښي. ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ لَيْسَ بِى ضَلَٰلَةٌ ﴾ [٢] ( وويل: ( نوح ) اې قومه زمانشته په ماکي ( له سره ) هيڅ ګمراهي ) يعني زه ګمراه نه يم. ﴿ وَلَٰكِنِّى رَسُولٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ( ولېکن زه استازی يم له جانبه درب پالونکي دټولوعالميانو ) هغه چي ستاسودامورو مالک دی اوستاسي دمصلحتونوکتونکی دی. ﴿ أُبَلِّغُكُمْ رِسَٰلَٰتِ رَبِّى وَأَنصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ رسوم تاسي ته پيغامونه درب خپل اوپند درکوم تاسي ته ( ستاسي دمصلحت اوخيرغوښتونکی يم ) اوپوهېږم له ( جانبه ) الله ( په وحی سره ) په هغه چي پرې نه پوهېږئ تاسي. ابن کثير وايي چي همدغه دپيغمبرشان دی چي فصيح ناصح مبلغ به وي پداسي څه به پوه وي چي نور خلګ پرې نه پوهېږي اوپدغوصفاتوکي به ده ته هيڅوک هم رسېدلای نشي[٣] ) ﴿ أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ ﴾ ( آياتعجب کوئ تاسي له دې چي راغلی دی تاسي ته ذکر ( وحی ) له لوري درب ستاسي پر(ژبي) ديوسړي له جنسه ( ستاسي ) يعني دغه دتعجب خبره نه ده چي الله له تاسي څخه يوسړي ته وحی وکړي پرتاسي باندي درحمت، لطف اواحسان په سبب سره ﴿ لِيُنذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوا۟ وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ لپاره ددې چي ووېروي دی تاسي اودپاره ددې چي تاسي پرهېزګاران شئ اودپاره ددې چي پرتاسي باندي رحم وکړی شي ) يعني ترڅودغه پيغمبر تاسو ووېروي که ايمان مونه راوړ اوترڅوله خپل پروردګاره ووېرېږئ اودهغه رحمت بياموموکله چي تقوی کوئ ﴿ فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيْنَٰهُ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥ فِى ٱلْفُلْكِ ﴾ ( پس نسبت ددروغو وکړ( کفارودغه نوح ته ) نونجات مو ورکړ ده ته اوهغو کسانوته چي له ده سره (ملګري ) ووپه بېړۍ کي ) يعني دوی نوح عليه السلام سره له دې چي ډېره موده يې ورسره تېرکړه دروغجن وګڼا نوالله هغه او ورسره ملګري مؤمنان په بېړۍ کي له هلاکت څخه وژغورل ﴿ وَأَغْرَقْنَا ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ اوغرق موکړل هغه کسان چي نسبت ددروغويې کړی وو آيتونوزموږته. ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمًا عَمِينَ ﴾ ( بېشکه دوی ووړوند قوم ) يعني زړونه يې دحق له ليدلو څخه ړانده وو هغه يې نه ليده. ابن عباس رضی الله عنه وايي

---

[١] البحر المحيط ٤ / ٣٢٠

[٢] دالبحر مؤلف ليکلي چي دلته ترکيب داسي نه راغی چي ويلي يې وای ( لست في ضلال مبين ) بلکه په خورا ښکلي توګه يي تعبير وفرمايل چي: ﴿ لَيْسَ بِى ضَلَٰلَةٌ ﴾ ترڅو چي دهرډول ګمراهي چي ورسره ګډه شي نفي وکړي اودغه دګمراهي ترنفی ابلغ ده څکه په هغه پسي هيڅ يوه ګمراهي هم تعلق نه وو نيولی.

[٣] مختصرابن کثير ٢ / ٢٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چې: زړونه يې دتوحيد له معرفته اودنبوت اومعاد له پېژندګلوي څخه ړانده وو.(۱) ﴿ وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ﴾ اوليږلی مو ووقوم د ) عادته ددوی ( قومي ) وررور هود چې ددوی کورونه د يمن په احقاف کې وو. ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ﴾ وويل (هود ) اې قوم زماالله جل جلاله عبادت کوئ نشته تاسي ته هيڅ (حق) معبودبې له الله نه !. ﴿ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ آياتاسي نه وېرېږئ ؟ ( له عذاب د الله ) ﴿ قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ ﴾ وويل مشرانو هغوی چې کافران شوي ووله قومه ددغه ( هود ) ﴿ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴾ بېشکه موږخامخاوينوتاپه بې عقلي کې اوبېشکه موږخامخاګمان کووپه تاله دروغجنانو ( پدې دعوی درسالت کې ) ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ وويل :(هود ) اې قومه زمانشته په ماکې ( له سره ) هيڅ بې عقلي وليکن زه استازی يم دهدايت ( له جانبه ) درب (پالونکي) دټول عالم. ﴿ أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴾ دررسوم تاسي ته پيغامونه درب خپل اوزه تاسي ته نصيحت کونکی ښه امانت ګريم ؛ زمخشري وايې چې: دانبياء عليهم السلام پداسي پسته ژبه له خپلوناپوهه خلګوسره مخاطبه دلويو خويونو اوښايسته ادب ښودنه اوبندګانوته ورزده کول وي چې څرنګه بايد په زغم اوصبر سره سوال او خواب وکړي اودناپوهانوپه بې خونده محاوره دي پرده وغوروي. (۲) ﴿ أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ ﴾ آياتعجب کوئ تاسي له دې چې راغلی دی تاسي ته پندله (لوري د ) رب ستاسي په (ژبه) ديوسړي له تاسي دپاره ددې چې ووېروي دی تاسي) له مخامخ کېدلواوعذابه دالله نه. ﴿ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ ﴾ اويادکړئ تاسي هغه وخت چې ګرځولي وی الله تاسي خليفه ګان ( په ځمکه کې ) وروسته ( له ډوبېدلود ) قوم دنوح ﴿ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً ﴾ اوزيات يې کړې په تاسوته پيد ايښت کې قوت، قامت اوږدوالی ﴿ فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ نويادوئ تاسي نعمتونه (احسانونه) دالله ښايې چې تاسي خلاصون ومومئ ( له عذابه دالله) ﴿ قَالُوا أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللَّهَ وَحْدَهُ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا ﴾ وويل: عاديانو (هود ) ته آياراغلی يې ته موږته ددې لپاره چې عبادت وکړو موږدالله يوازي اوپرېږدو هغه (بتان) چې عبادت به يې کاووپلرونوزموږ؟ ﴿ فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴾ نوراوړه موږته هغه عذاب چې ته ( پرې) موږ وېروې که يې ته له رښتيا ويونکوڅخه( موږپرتاباورنلرو ) ﴿ قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَغَضَبٌ ﴾ وويل : (هود ) په تحقيق واقع شوپرتاسي له ( لوري ) درب ستاسي عذاب اوقهر ﴿ أَتُجَادِلُونَنِي فِي أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا نَزَّلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ ﴾ ( آياجګړه کوئ تاسي له ماسره په (تشو) هغو نومونوکي چې ايښي دي تاسي هغه ( نومونه) تاسي

(۱) البحر۴ / ۳۲۳

(۲) الکشاف۲ / ۱۱۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

اوپلرونوستاسي حال داچي ندی رالېږلی ( الله جل جلاله ) په عبادت کولودوی هيڅ دليل ( علمي سند ) يعني آياتاسو له ماسره دهغوبتانوپه هکله جګړه کوئ څوک چي نه ګټه رسوي اونه هم زيان اوالله ددوی دعبادت کولوپه هکله هيڅ برهان ندی را استولی ؟ ﴿ فَٱنتَظِرُوٓاْ إِنِّي مَعَكُم مِّنَ ٱلۡمُنتَظِرِينَ ﴾ ( نوانتظار کوئ تاسي (دعذاب) بېشکه زه چي يم له تاسوسره له منتظرانويم ) اودغه نودتهديد اووعيد وروستی پړاودی ﴿ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥ بِرَحۡمَةٖ مِّنَّا ﴾ نوخلاصی ورکړ موږ دغه ( هود ) ته اوهغوکسانوته چي له ده سره وو( له مؤمنانوڅخه) په رحمت سره ( له جانبه ) زموږ ﴿ وَقَطَعۡنَا دَابِرَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ ( اوپرې کړموږبېخ دهغوکسانوچي نسبت ددروغويې کړی ووپه آيتونوزموږ ) يعني موږله بېخه وايستل اويومخه اېزه موهلاک کړل ﴿ وَمَا كَانُواْ مُؤۡمِنِينَ ﴾ ( اونه وو دوی مؤمنان) يعني دوی دپيغمبر تکذيب کاوو ورباندي يې ايمان نه راووړ دعذاب وړ اومستحق وو ؛ ابوالسعود وايي چي: دوی په کفر باندي ټينګ وو دانبياوو تکذيب يې کاوو او له دې څخه نه راګرزېدل نو الله جل جلاله په شديدباد باندي هلاک کړل[1]

## بلاغت:

١ - ﴿ أَلَا لَهُ ٱلۡخَلۡقُ وَٱلۡأَمۡرُ ﴾ دغه آيت شريف که څه هم الفاظ يې دېرلنډخوزياتي معناګاني پکي رانغښتي اوټول شيان اوحالات پکي يوځای شويدي آن تردې چي ابن عمر رضی الله عنه وفرمايل: که دچايوڅه پوښتنه پاتي وي نو ودي غواړي اودغه اسلوب ته دبديع په علم کي( ايجاز قصر) وايي چي له لنډو الفاظو څخه اوږدې اوزياتي معناوي واخيستل شي.

٢- پدې کلام کي چي الله (جل جلاله) فرمايي: ﴿ سُقۡنَٰهُ لِبَلَدٖ مَّيِّتٖ ﴾ دښارصفت په مړه سره دکاختي استعاره ده اوبې نباتاتوښار داسي مثال لري لکه چي په بدن کي ساه( روح ) نه وي ځکه چي ګټه ورباندي نه اخيستل کېږي

٣ - ﴿ كَذَٰلِكَ نُخۡرِجُ ٱلۡمَوۡتَىٰ ﴾ يعني له مځکي څخه (نبات) دراايستلوپه شان مړي له قبرونوڅخه راباسو نودغي ته (مرسله مجمله ) تشبيه ويل کېږي ځکه دتشبيه أداة ذکرشوی اودمشابهت وجه نده راغلي

۴ - ﴿ وَقَطَعۡنَا دَابِرَ ﴾ دبېخ پرېکول هغه لطيفه کِنايه ده چي ددوی له يومخ اېزه هلاکت څخه راوړل شوي ده

## تنبيه :

علامه الوسي دالله جل جلاله ددې قول په هکله چي فرمايي: ﴿ ٱدۡعُواْ رَبَّكُمۡ تَضَرُّعٗا وَخُفۡيَةً ﴾ داسي وايي چي له حسن بصري څخه روايت شويدی چي هغه وويل: مسلمانانو به په دعاکي زيار ايستل اوږغ به يې نه اورېدل کېده و يوازي ددوی اودخپل پروردګار ترمينځ به يې ورونياز اوزاري کولې ځکه چي الله جل جلاله فرمايي: ﴿ ٱدۡعُواْ رَبَّكُمۡ تَضَرُّعٗا وَخُفۡيَةً ﴾ اوالله پاک خپل صالح بنده هسي ستايي چي: ﴿ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيّٗا ﴾ مريم: ٣ بيايي وويل چي: ددعالپاره ډېرآداب ذکر شوي يو داچي په اوداسه به وي او قبلې ته به مخامخ وي زړه به

---

[1] ابو السعود ٢ / ١٧۴

Bawar.net



چې له نوروشواغلو شخه فارغ وي اوپيل اوپای به يې په پيغمبري درود باندي وي اودآسمان لوري ته به ورغوي پورته کوي اوددعادمنلو وخت به څاري لکه دشپې وروستی دريمه اويادروژه ماتي وخت ، يادجمعي مبارکه ورځ اويانور.....([1])

### الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً ۖ فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ۖ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ ٱلْجِبَالَ بُيُوتًا ۖ فَٱذْكُرُوٓا۟ ءَالَآءَ ٱللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٧٤﴾ قَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ لِلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ لِمَنْ ءَامَنَ مِنْهُمْ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۚ قَالُوٓا۟ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلَ بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴿٧٥﴾ قَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓا۟ إِنَّا بِٱلَّذِىٓ ءَامَنتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٧٦﴾ فَعَقَرُوا۟ ٱلنَّاقَةَ وَعَتَوْا۟ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا۟ يَٰصَٰلِحُ ٱئْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا۟ فِى دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٧٨﴾ فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّى وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ ٱلنَّٰصِحِينَ ﴿٧٩﴾ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٨٠﴾ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ ۚ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ ﴿٨١﴾ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓا۟ أَخْرِجُوهُم مِّن قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٨٢﴾ فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴿٨٣﴾ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٨٤﴾ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ فَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ وَٱلْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا۟ ٱلنَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَٰحِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٨٥﴾ وَلَا تَقْعُدُوا۟ بِكُلِّ صِرَٰطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِهِۦ وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا ۚ وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ كُنتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ ۖ وَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٨٦﴾ وَإِن كَانَ طَآئِفَةٌ مِّنكُمْ ءَامَنُوا۟ بِٱلَّذِىٓ أُرْسِلْتُ بِهِۦ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوا۟ فَٱصْبِرُوا۟ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴿٨٧﴾

---

([1]) روح المعاني ٨ / ١٣٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



قَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ لَنُخْرِجَنَّكَ يَٰشُعَيْبُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَكَ مِن قَرْيَتِنَآ أَوْ لَتَعُودُنَّ فِى مِلَّتِنَا ۚ قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كَٰرِهِينَ ﴿٨٨﴾ قَدِ ٱفْتَرَيْنَا عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا إِنْ عُدْنَا فِى مِلَّتِكُم بَعْدَ إِذْ نَجَّىٰنَا ٱللَّهُ مِنْهَا ۚ وَمَا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّعُودَ فِيهَآ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّنَا ۚ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَىْءٍ عِلْمًا ۚ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا ٱفْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِٱلْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْفَٰتِحِينَ ﴿٨٩﴾ وَقَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ لَئِنِ ٱتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَٰسِرُونَ ﴿٩٠﴾ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا۟ فِى دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٩١﴾ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ شُعَيْبًا كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا۟ فِيهَا ۚ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ شُعَيْبًا كَانُوا۟ هُمُ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٩٢﴾ فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَٰلَٰتِ رَبِّى وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۖ فَكَيْفَ ءَاسَىٰ عَلَىٰ قَوْمٍ كَٰفِرِينَ ﴿٩٣﴾

الأعراف: ٧٣ - ٩٣

## مناسبت او تړاو:

كله چې الله تعالى دسورت په پيل كې دآدم عليه السلام كيسه ياده كړه وروسته يې دخپل قدرت آثار اودصنعت اوجوړښت عجائبات كوم چې دالله جل جلاله په توحيد اوربوبيت يې دلالت كاوه راوړل اوهمداسې غوځ دليل يې دبيا راژوندي كېدلو اوبعث وروسته له مرګه په باب ذكر كړ وروسته يې بيا دانبياوو عليهم السلام كيسې يوبه بل پسې يادي كړې اوهغه څه يې ذكر كړل كوم چې ددوى اودامتونوترمينځ يې تېرشوي وو نوح عليه السلام اوهود عليه السلام يې يادكړل وروسته يې دلته دصالح اوشعيب عليهما السلام يادونه وكړه اوددښمنانو هغه دريځ يې چې دپيغمبرانو تكذيب اوانكار يې كاوو څرګند كړ.

## لغتونه:

﴿نَاقَةُ﴾ ښځينه اوښې ته وايي او(عقر الناقة) داوښې پښې په توره وهلو ته وايي ﴿وَعَتَوْا﴾ تكبر يې وكړ اوكله چې شپې ته وايي (الليل العاتي) يعني هغه شپه چې تياره يې خورا زياته وي ﴿جَٰثِمِينَ﴾ په مځكه پرمخ په مخونو اوزنګنونو لوېدلي ته وايي لكه چې مرغه ولوېږي ﴿الرَّجْفَةُ﴾ لړزونكې هغه چې انسان لړزوي لكه چې وايي: (رجفت الارض) يعني مځكه ولړزېده ﴿الْغَٰبِرِينَ﴾ په عذاب كې تلپاتي (غابر) دپاتې كېدونكي په معنا دى او همدارنګه دماضي اوتېرشوي په معنا هم راځي لكه چې (أعشى) وايي (فى الزمن الغابر) يعني تېر شوي زمانه اودغه له اضدادو څخه دى لكه چې په صحاح كې راوړي ﴿يَغْنَوْا﴾ دېروخت مېشت (مقيم) كېدل.

## تفسير:

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ﴾ (اولېږلى وو موږ) ثمود يانوته (قومي) ورور ددوى صالح وويل: (صالح) اې قومه زما تاسې دالله عبادت كوئ نشته تاسې ته هيڅ (حق) معبود بې له الله نه) يعني دالله وحدانيت ومنئ اوشريك ورسره مه نيسئ ﴿قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ په تحقيق راغلې ده تاسې ته ښكاره معجزه (چې زمادنبوت په ربښتنولي دلالت كوي) ﴿هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً﴾ (دااوښه دالله ده ده تاسې ته نښه) دغه دمعجزې بيان دى اوداوښې نسبت كول الله تعالى ته تشريف لپاره دى څكه هغه بې واسطې پيداشوي. قرطبي وايي: چې اوښه يې له كركنده دېرې څخه كله چې دوى

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خني وغوښته راو ايستله (١) ﴿ فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ﴾ نو پرېږدئ تاسي دغه (اوښه) چي خوري رزق په ځمکه دالله کي ﴿ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او مه وروړئ تاسي دې ته لاسونه په (نيت د) بدي (يعني ضررمه ورورسوئ) نو وبه نيسئ تاسي عذاب دردناک) يعني هغې ته هيڅ زيان مه رسوئ هغه دالله (ننبه) ده اکرام بې کوئ او دردناک عذاب هغه وو چي وروسته له اوښي وژلو ورباندي راغی ﴿ وَٱذْكُرُوٓاْ إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعْدِ عَادٍ ﴾ (وويل صالح عليه السلام) او ياد کړئ تاسي هغه وخت چي وګرزولی (الله جل جلاله) تاسي خليفه ګان په ځمکه کي وروسته له عاديانو. شهاب وايي چي: هسي بی ونه ويل چي دعاد خليفه ګان يی کړی چي دې ته اشاره وشي چي ددوی ترمينځ اوږده زمانه وه ﴿ وَبَوَّأَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا ﴾ (وويل صالح عليه السلام) او ځای يې درکړو تاسي ته په ځمکه کي چي نيسئ (جوړوئ) تاسي له هوارو نرمو ځايونو ددې ځمکي هسکي ماڼی ﴿ وَتَنْحِتُونَ ٱلْجِبَالَ بُيُوتًا ﴾ او کيندئ تاسي غرونه لپاره دکورونو.

قرطبي وايي: دوی به په غرونوکي خوني جوړولې ځکه چي عمرونه يې اوږده وو او دختو کورونه به ددوی ترژوندله مخه نړېدل (٢) ﴿ فَٱذْكُرُوٓاْ ءَالَآءَ ٱللَّهِ وَلَا تَعْثَوْاْ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴾ نو ياد کړئ تاسي نعمتونه دالله او مه ګرزئ (کوښښ مکوئ) تاسي په ځمکه کي حال داچي دفساد قصد کونکي ياست ﴿ قَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُواْ مِن قَوْمِهِۦ لِلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُواْ لِمَنْ ءَامَنَ مِنْهُمْ ﴾ وويل مشرانو هغوچي کبر (اوسرکشي) يې کړي وه له ايمانه ځخه له قومه ددغه (صالح) ځخه هغوکسانوته چي ضعيف (کمزوري) ګڼل شوي وو هغه چاته چي ايمان يې راوړی وو له دوی ځخه ﴿ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ آيا يقين لرئ تاسي پدې چي بېشکه صالح رالېږل شوی دی له (لوري) درب دده؟ دغه خبره به يې دملندو او استهزاء په توګه کوله ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلَ بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴾ وويل دغو (ضعفاوو چي هو) بېشکه موږ په هغه څه چي رالېږلی شوی (صالح) په هغه يقين لرونکي يو) دوی په اسلوب حکيم سره ځواب ووايو چي دهغه په رسالت باندي دخپل ايمان خبرې ورکړ او ددوی له خبري يې عدول غوره کړځکه يې وويل: ﴿ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلَ بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴾ يعني دهغه په رسالت کي خو هيڅ شک او شبهه نشته چي داسي ستره معجزه يې راوړي نو دې ته اړه نشته چي له رسالت ځخه يې پوښتنه وکړل شي (٣) ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓاْ إِنَّا بِٱلَّذِىٓ ءَامَنتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴾ (وويل هغوکسانوچي تکبر يې کړی وو بېشکه موږ په هغه شي چي ايمان راوړی دی تاسي په هغه باندي کافران (منکران يو) دوی هسي ونه ويل چي موږ دهغه په رسالت کافران يو اوداځکه چي ددغو مؤمنانو مخالفت ځرګند کړي او ددوی خبره بابېزه وګڼي ﴿ فَعَقَرُواْ ٱلنَّاقَةَ وَعَتَوْاْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ ﴾ او مره کړه دوی اوښه او سرکښي وکړه دوی له (امتثاله)

---

(١) القرطبي ٧ / ٢٣٧
(٢) القرطبي ٧ / ٢٣٩
(٣) البحر ٤ / ٣٣٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دامر درب ددوی ﴿ وَقَالُواْ يَٰصَٰلِحُ ٱئْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ اوو ویل ( دغو کفارو چي ) اې صالحه راوړه موږته هغه عذاب چي ته موږترې وېروې ( که چېرې ته ( په حقه ) پیغمبر یې دغه یې په ملنډو او دهغه په کمزوري ګڼلو وویل ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُواْ فِي دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴾ پس ونیول دوی زلزلې وګرزېدل په کورونو خپلوکي مړي ( پرمخي پراته ) په البحر کي وايي چي له آسمانه يوه داسي چيغه ورباندي راپرېوته چي د هر شي او تندر غرېکې وو نوددوی زړونه یې وچاودل اوهلاک شول ﴿ فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ ٱلنَّٰصِحِينَ ﴾ نو وګرزېدو ( صالح ) له دوی نه ( پرشا وروسته ددوی له هلاکت څخه په تأسف سره ) اوویې ویل : اې قومه زماخامخا په تحقيق ورساوو ماتاسي ته پیغام درب خپل او پندمي درکړ تاسي ته ولیکن تاسي پندورکونکي نه خوښوئ . زمخشري وايي : ﴿ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ ٱلنَّٰصِحِينَ ﴾ دتېرحال حکايت دی کله کله یوڅوک خپل ملګري ته وايي کله چي هغه مړوي اوده د هرنصيحت په ژوندکي ورته کړی وي خودغه مړي هغه باندي غوږ نه وي ګرولی څوچي په هلاکت کي غورځېدلی وي نودغه ژوندی ملګری ورته په خطاب کي وايي : اې وروره ! څومره نصيحت مي درته وکړل خوتاونه منل ؟[1] ﴿ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ( اوياد کړه ( اې محمده هغه وخت کله چي وويل ) لوط قوم خپل ته آيا راتګ کوئ تاسي د هر بدکار ( لواطت ) ته چي ندی رومبی شوی له تاسي څخه دې کارته هيڅ يوله نړولوخلکو ) اهل سدوم ته یې دانکاراو توبيخ په ډول وويل چي : آياتاسو دغه د هر زيات بدكار چي لواطت دی کوئ ؟ ! هغه چي په یووخت له وختونو هیچاهم ندی کړی لومړی یې د هغه کول بدوګڼل بيايې داچي دوی ددې کار بنسټ اېښودونکي دي . ابوحيان وايي : څرنګه چي ددغه کار بدوالی ښېخي معلوم وو اوپه عقلونو کي یې قباحت څرګند وو حكه یې په الف لام باندي تعريف وکړ ﴿ ٱلْفَٰحِشَةَ ﴾ يې وفرمايل او دادزنا په خلاف باندي څکه هلته يې داسي فرمايلي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً ﴾ هغه یې نکره راوړي ده اوداچي فرمايي : ﴿ مَا سَبَقَكُم ﴾ پدې دلالت کوي چي دوی ددغه بدکار ابتکار کونکي وو اوپدې جمله کي چي ﴿ مِنْ أَحَدٍ ﴾ ده مبالغه راغلي څکه ( من ) د جنس دنفی دتاکید لپاره راوړل شويدی چي وروسته ﴿ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ هم جمع دعموم په ډول راغلي ده . عمرو بن دينار وايي چي دلوط عليه السلام له قوم ښځه پخواهيچاهم نارينه په بل نارينه دپاسه سپور نه دی ليدلی [2] ﴿ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ ﴾ ( بېشکه تاسي خامخا راځئ سړيو ته لپاره د ( قضاء ) شهوت پدې حال کي چي تجاوزکونکي یې له ( خپلو ) ښځو دغه دفاحشې بيان اوترېخواني لازيات توبيخ دی څکه په ( الف ) او ( لام ) دتاکيد سره راغلی يعني آياتاسو دغه سړيو سره دلواطت په ډول جنسي اړيکي لرئ هغه مکروه پليت فعل کوئ اوله هغه حلال کار نه چي موله خپلوښځوسره مجامعت دی مخ اړولی اووروسته بيا له انکار څخه اخبار ته ليږدي چي تاسي له شرعي حدتېرېدونکي یې هغه موحال دی چي هرډول قبائح

---

(1) الکشاف ٢ / ١٢٣
(2) البحر ٤ / ٣٣٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اودشهوتونو اتباع درباندي مني نوويې فرمايل: ﴿ بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٞ مُّسۡرِفُونَ ﴾ بلكه يې تاسي يوقوم اسراف كونكى (له شرعي حده تېرېدونكى په هرشي كي ). ابوالسعودوايي: چي د﴿ شَهۡوَةٗ ﴾ په كلمه سره تقيېد ددوى دبهېمت ( بوده والي ) صفت دى ځكه له جماع څخه خومطلب دزوزات پاتي كېدل اود اولاد زېږېدل وي نه داچي دشهوت قضاء اوغريزي اشباع(١) ﴿ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوۡمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓاْ أَخۡرِجُوهُم مِّن قَرۡيَتِكُمۡۖ إِنَّهُمۡ أُنَاسٞ يَتَطَهَّرُونَ ﴾ اونه وو ځواب دقوم ددغه دلوط عليه السلام(دنصيحت په وړاندي ) مګرخوداسي چي ويل قوم دلوط ( په خپلو منځونوكي چي ) وباسئ تاسي دغه ( لوط اوپلويان يې مؤمنان) له كلي ستاسي ( سدوم نه ) بېشكه دوى داسي خلګ دي په تكلف سره ځان پاكوي ( زموږ له افعالوچي نارينه وو سره لواطت كوو. ابن عباس رضى الله اومجاهد رضى الله عنهم وايي: چي د﴿ إِنَّهُمۡ أُنَاسٞ يَتَطَهَّرُونَ ﴾ معناداچي دوى پليت بولي هغه كار چي موږيې كوو له لواطت دنرو او ښځوڅخه دغه دوى دملنډو او استهزاء په ډول ويل چي لوط اوپلويان يې دغه زموږ كار ناولى بولي لوط عليه السلام اومؤمنانوته يې په هغه څه پېغور وركاووه په كوم چي دانسان صفت اومدح كول پكاردى ﴿ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَأَهۡلَهُۥٓ إِلَّا ٱمۡرَأَتَهُۥ كَانَتۡ مِنَ ٱلۡغَٰبِرِينَ ﴾ (نونجات وركړموږ دغه (لوط ته اواهل ( اتباعو ) دده ته مګر(نجات موورنكړ) ښځي دده ته چي وه له پاتي كېدونكوپه كلي دهلاكېدونكو كي ) طبري وايي: چي معناداچي لوط اودهغه پلويانوته مونجات وركړپرته له ښځي دده چي ومونه ژغورله ځكه هغې له لوط عليه السلام سره خيانت كړى وو اوپه الله جل جلاله يې ايمان نه درلود اوكله چي عذاب راغى له هغوكسانو سره چي هلاک شول يو ځاى په هلاكت ورسېده (٢) ﴿ وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِم مَّطَرٗاۖ ﴾ او ووو راوو موږ په دوى باندي باران ( عجيب دكانو دسجيل لكه چي په بل آيت كي راځي ﴿ وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهَا حِجَارَةٗ مِّن سِجِّيلٖ مَّنضُودٖ ﴾ هود: ٨٢ عذاب يې له ګڼ باران سره مشابه كړځكه چي ډېر وو لكه چي دباران په شانورباندي راتاو شو ﴿ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴾ پس وګوره چي څرنګه شو ( عاقبت ( ددغو مجرمينو ) چي څه ډول په هلاكت كي وغورزېدل ﴿ وَإِلَىٰ مَدۡيَنَ أَخَاهُمۡ شُعَيۡبٗاۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥۖ ﴾ ( اولېږلى موو ) مدين ته ( قومي ) ورورددوى شعيب وويل شعيب چي ) اې قوم زماعبادت كوئ دالله جل جلاله نشته تاسي ته هيڅ معبود بې له ده ) يعني اهل مدين ته موشعيب دعوتګر واستاوه چي خلګ دالله عبادت اوتوحيدته راوبولي. ابن كثير وايي: چي (مدين ) قبيلې ته وايي اوهمداراز هغه ښار ته مدين ويل كېږي كوم چي د( معان) سره څېرمه دحجاز په لاري ودان وو اودوى ته ( أصحاب الأيكة ) هم وايي لكه چي موږبه يې ذكر كړو (٣) ﴿ قَدۡ جَآءَتۡكُم بَيِّنَةٞ مِّن رَّبِّكُمۡۖ ﴾ په تحقيق راغلى دى تاسي ته دليل ښكاره ( په نبوت زماله لوري درب ستاسي ) ﴿ فَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ وَٱلۡمِيزَانَ ﴾ نوپوره كوئ تاسي پېمانه خلګوته ) اوتله ( تول هم

---

(١) ابوالسعود ٢ / ١٧٨

(٢) الطبري ١٢ / ٥٥١

(٣) مختصر ابن كثير ٢ / ٥٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي تاسي وربانديي تلل کوئ ) ﴿ وَلَا تَبْخَسُوا۟ ٱلنَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ ﴾ اوکم مه ورکوئ تاسي خلکوته شيان شيونه ددوی (حقونه ) ددوی ﴿ وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَٰحِهَا ﴾ اوفساد مه کوئ تاسي په ځمکه کي ( په ګناهونو کولو ) پس له اصلاح ددې ( په رااستولو دپيغمبرانو ) ﴿ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ دغه ( چي مادرته امر وکړ دالله په عبادت کي داخلاص کولو اوخلکوته دپوره حقونو ورکولو اوفساد نه کولو ) ډېربهتر دی تاسي ته که يې تاسي ايمان راوړونکي ( پرمايه منلو دخبري زماکي )

﴿ وَلَا تَقْعُدُوا۟ بِكُلِّ صِرَٰطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِهِۦ ﴾ ( اومه کېنئ تاسي پرهره لاره ( لپاره دشوکولو ) حال داچي وېروئ تاسي ( خلک ) اومنع کوئ تاسي خلک له لاري دالله هغه څوک چي ايمان راوړي په الله بانديي ) يعني مه کېنئ په هره لاره چي مؤمنان خلک په وژلو وېروئ . ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي دوی به دهغو لارو په سر چي حضرت شعيب ته به رسېدلې کېنېناستل اوڅوک چي به هلته شعيب عليه السلام لوري ته تلل دوی به ورته أخطارونه ورکول هغوی به يې راګرزول ورته ويل به يې: چي هغه دروغجن دی هغه ته مه ورځه لکه چي قريشوبه درسول الله صلی الله عليه وسلم په هکله کول[1] ﴿ وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا ﴾ ( اولټوئ تاسي دغي لاري ته کږوالی ) يعني تاسوغواړئ چي دغه لاره دي سمه نه بلکه کږه وي پدې معناچي ددوی آند ( انګېرنه ) داوه چي دالله دين ناسم اوکوږ دی لکه چي دنن زمانې لار ورکي ګمراهان اوفاسقان وايي: چي ( دغه دين له عقل سره سم نه دی ) ځکه چي دين ددوی له نفسي خواهشاتو سره په ټکرکي وي. ﴿ وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ كُنتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ ﴾ اويادکړئ تاسي هغه وخت چي وې تاسي لږ (په سړيوکی) نوډېر کړې ( الله ) تاسي ( نوتاسي دالله ددغه نعمت شکرپرځای کړئ ) ﴿ وَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ ( اوو ګورئ تاسي چي څرنګه شوعاقبت ( بده خاتمه ) دفسادکونکو ) دغه ددوی لپاره تهديددی يعني وګورئ چي په پخوانيو امتونو هغوچي دپيغمبرانوڅخه يې سر غړونه کوله څه راپرېوتل ؟ له هغوی څخه عبرت اوپندواخلئ ﴿ وَإِن كَانَ طَآئِفَةٌ مِّنكُمْ ءَامَنُوا۟ بِٱلَّذِىٓ أُرْسِلْتُ بِهِۦ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوا۟ فَٱصْبِرُوا۟ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ اوکه وه يوه ډله له تاسي چي ايمان يې راوړی وو په هغه شي چي رالېږلی شوی يم زه په هغه سره او( وه بله ) طائفه چي ايمان يې نه وو راوړی ( عناداً ) نوصبرکوئ تاسي ( اې مؤمنانو ) ترهغه پوري چي حکم ( فيصله وکړي ) الله په مينځ زموږکي اوهم دی بهتر دی له ټولو فيصله کونکوڅخه ؛ ابوحيان وايي: چي دغه خبره خورا په نرمي سره په محاوره کي راغلي ځکه چي متحقق اوثابت څېز يې دمشکوک په څېره راوړی اوداعجيب وېش دی نودغه په حقيقت کي دمسلمانانو سره دکومک اومرستي ژېری اودکافرانو لپاره دعذاب اوخسران وعيددی[2] ﴿ قَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ ﴾ او وويل مشرانوهغو چي منکران ( کافران شوي وو ) له قومه ددغه ( شعيب ) نه چي په الله اورسول يې ايمان نه لاره ) ﴿ لَنُخْرِجَنَّكَ يَٰشُعَيْبُ وَٱلَّذِينَ

---

[1] البحر ۴ / ۳۳۸

[2] البحر ۴ / ۳۳۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ءَامَنُواْ مَعَكَ مِن قَرۡيَتِنَآ أَوۡ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَاۚ ﴾ (قسم دی ) خامخاوبه باسو موږتا ( اې شعيبه ) اوهغه کسان ( هم درسره وباسو ) چي ايمان يې راوړی دی له تاسره له دې ) کلي ( ښار ) زموږڅخه يا خامخابه راګرزئ تاسي زموږ دين ته ) يعني دوی په دوو څيزونوقسم وخوړ ياداچي شعيب اوپلويان مؤمنان به تبعيد کوي اوياداچي ددوی په دين ( کفر ) به هغوی ( شعيب عليه السلام اومسلمانان ) وراړوي شعيب عليه السلام دوی ته په ځواب کي وويل:

﴿ قَالَ أَوَلَوۡ كُنَّا كَٰرِهِينَ ﴾ نو وويل: (شعيب) آيا (ګرځوبه موږ ستاسي ( دين ته ) اواګرکه اوسو موږ ناخوښه ؟ ( هم بلکه نه ګرځو ) دلته استفهام دانکارلپاره دی يعني آياتاسوموږدهيواد په پرېښودلو اوياستاسي دين ته په در اوښتلو باندي مجبوروئ که څه هم موږ نه غواړو ؟ ﴿ قَدِ ٱفۡتَرَيۡنَا عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا إِنۡ عُدۡنَا فِي مِلَّتِكُم بَعۡدَ إِذۡ نَجَّىٰنَا ٱللَّهُ مِنۡهَاۚ ﴾ ( په تحقيق به تړلي وي موږ پر الله دروغ که وګرزو موږ په دين ستاسي کي وروسته له هغه چي نجات راکړ موږ ته الله له هغه ( دين ) نه ) يعني که چېري موږ ستاسي دين ته دراوړوو وروسته له هغه چي الله پاک ځيني وژغورلو او دايمان هدايت يې راته وکړ نوهله به موږ په الله پاک باندي خورا ستردروغ تړلي وي دغه کفاروته دمؤمنانو له ارتدادڅخه دناهيلي پيغام دی ﴿ وَمَا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّعُودَ فِيهَآ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّنَاۚ ﴾ اونه ښائېږي موږ ته داچي بېرته وګرځو په هغه ( دين ) کي مګرکله چي اراده وفرمايې الله چي رب زموږ دی ) که دهغه اراده زموږ دخذلان اوښوئېدلو وه نو دهغه فيصله به هرومرو ترسره کېږي ﴿ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيۡءٍ عِلۡمًاۚ ﴾ احاطه کړي ده علم درب زموږ په هرشي ﴿ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلۡنَاۚ ﴾ (خاص) پر الله توکل کړی دی موږ ( او هغه توکل کونکو لپاره کافي دی ) ﴿ رَبَّنَا ٱفۡتَحۡ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَ قَوۡمِنَا بِٱلۡحَقِّ وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡفَٰتِحِينَ ﴾ اې ربه زموږ فيصله وکړه په مينځ زموږ اوقوم زموږ کي په حقه سره اوهم داته يې خيرد حاکمانو ( فيصله کونکو ستا په حکم کي ظلم اوخلل نشته ) ﴿ وَقَالَ ٱلۡمَلَأُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَوۡمِهِۦ لَئِنِ ٱتَّبَعۡتُمۡ شُعَيۡبًا إِنَّكُمۡ إِذًا لَّخَٰسِرُونَ ﴾ ( او وويل مشرانو هغوچي کافران شوي وو له قومه دده ( شعيب ) قسم دی خامخاکه متابعت وکړتاسي دشعيب ببشکه تاسي به په دغه وخت کي خامخاله زيانکارانو يې ) يعني دشعيب عليه السلام دقوم کفاروفجارو اشرافو وويل که چېري مودشعيب خبره ومنله اودهغه بلني ته مو لبيک وواېو نو تاسي به هله خامخا له زيان کارانو څخه ياست ځکه تاسو به ګمراهي په هدايت بدله کړي وي. الله تعالى فرمايي: ﴿ فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلرَّجۡفَةُ فَأَصۡبَحُواْ فِي دَارِهِمۡ جَٰثِمِينَ ﴾ نو ونيول دوی زلزلې ( په لوېې توره تياره کي ) نو وګرزېدل دوی ( ګهيځ ) په کورونو خپلو کي پرمخي پراته ( پرزنګنونو ) ﴿ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ شُعَيۡبًا كَأَن لَّمۡ يَغۡنَوۡاْ فِيهَاۚ ﴾ هغه کسان چي دروغجن يې بللی ووشعيب ( داسي هلاک شول ) لکه چي له سره نه وو اوسېدلی په دغو(خپلو کورونوکي ( په نعمت کي ) ﴿ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ شُعَيۡبًا كَانُواْ هُمُ ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴾ ( هغه کسان چي تکذيب يې کړی وودشعيب وو دوی زيانکاران ) دغه کلام ددوی دخسران چي وروسته له هلاکت څخه دررسېدلي اخباردي ﴿ فَتَوَلَّىٰ عَنۡهُمۡ وَقَالَ يَٰقَوۡمِ لَقَدۡ أَبۡلَغۡتُكُمۡ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي وَنَصَحۡتُ لَكُمۡۖ ﴾ ( نومخ وګرزاوو شعيب له دوی څخه اووېې ويل: اې قومه ! زماخامخاپه تحقيق رسولي دي ماتاسي ته پيغامونه درب خپل اوپندمي درکړتاسي ته ) دغه خبري دافسوس اوحسرت له مخي وکړې چي پردوی زيات

Bawar.net



خواشيني وو ځکه هغوی دده پندنه وومنلی ﴿ فَكَيْفَ ءَاسَىٰ عَلَىٰ قَوْمٍ كَٰفِرِينَ ﴾ ( نوڅرنګه به زه خفه شم پر( هلاک کېدلود ) قوم کافرانو ) يعني څرنګه به زه په هغه چا خپه شم چي دخفګان ورنه وي. طبري وايي : معناداچي : څرنګه زه دهغه قوم په هلاکت چي دالله وحدانيت يې نه مانو اورسول يې دروغجن باله خواشيني شم اوپه هلاکت يې وخوربېږم ؟!([1])

بلاغت:

۱-په ﴿ نَاقَةُ ٱللَّهِ ﴾ کي اضافت دتشريف لپاره دی.

۲-پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ ﴾ تنکيردتقليل اوتحقير لپاره دی يعني په هيڅ خوربې مه خوروئ.

۳ -﴿ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ ﴾ استفهام دانکار ، توبيخ اوتشنيع لپاره دی.

۴-پدې قول دالله تعالی کي چي فرمايي: ﴿ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴾ دعلم بديع هغه صنعت دی چي ورته د(تعريض بمايوهم الذم ) وايي ځکه نوابن عباس رضی الله عنه وايي چي دوی پداسي څه پېغور ورکاوو چي هغه دستايني وړ وو.

۵ -﴿ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا ﴾ دالله جل جلاله داسم جليل ظاهرراوړل په زاري کي دمبالغې لپاره اودجار اومجرور تقديم دحصر دافادې لپاره دی.

۶- د﴿ مُؤْمِنُونَ ﴾ او﴿ كَٰفِرُونَ ﴾ دلفظونو ترمينځ دطباق صنعت دی.

فائده:

هغه څوک چي اوښه يې زخمي اومړه کړه ( قداربن سالف ) وو اوچي ټولوته يې دوژ.لو نسبت پدې قول کي شوی چي ﴿ فَعَقَرُوا۟ ٱلنَّاقَةَ ﴾ ددې لپاره دی چي دټولو دغه بدفعل خوښ وو ځکه دوی ټول په جريمه کي شريکان دي

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّبِىٍّ إِلَّآ أَخَذْنَآ أَهْلَهَا بِٱلْبَأْسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُونَ ﴿٩٤﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ ٱلسَّيِّئَةِ ٱلْحَسَنَةَ حَتَّىٰ عَفَوا۟ وَّقَالُوا۟ قَدْ مَسَّ ءَابَآءَنَا ٱلضَّرَّآءُ وَٱلسَّرَّآءُ فَأَخَذْنَٰهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٩٥﴾ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ ٱلْقُرَىٰٓ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّقَوْا۟ لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَٰتٍ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ وَلَٰكِن كَذَّبُوا۟ فَأَخَذْنَٰهُم بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿٩٦﴾ أَفَأَمِنَ أَهْلُ ٱلْقُرَىٰٓ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا بَيَٰتًا وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴿٩٧﴾ أَوَأَمِنَ أَهْلُ ٱلْقُرَىٰٓ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿٩٨﴾ أَفَأَمِنُوا۟ مَكْرَ ٱللَّهِ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿٩٩﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ ٱلْأَرْضَ مِنۢ

---

([1]) الطبري ۱۲/ ۵۷۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بَعۡدِ أَهۡلِهَآ أَن لَّوۡ نَشَآءُ أَصَبۡنَٰهُم بِذُنُوبِهِمۡۚ وَنَطۡبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَسۡمَعُونَ ﴿١٠٠﴾ تِلۡكَ ٱلۡقُرَىٰ نَقُصُّ عَلَيۡكَ
مِنۡ أَنۢبَآئِهَاۚ وَلَقَدۡ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ فَمَا كَانُواْ لِيُؤۡمِنُواْ بِمَا كَذَّبُواْ مِن قَبۡلُۚ كَذَٰلِكَ يَطۡبَعُ ٱللَّهُ عَلَىٰ
قُلُوبِ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿١٠١﴾ وَمَا وَجَدۡنَا لِأَكۡثَرِهِم مِّنۡ عَهۡدٖۖ وَإِن وَجَدۡنَآ أَكۡثَرَهُمۡ لَفَٰسِقِينَ ﴿١٠٢﴾ ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۢ بَعۡدِهِم
مُّوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ وَمَلَإِيْهِۦ فَظَلَمُواْ بِهَاۖ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ﴿١٠٣﴾ وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰفِرۡعَوۡنُ
إِنِّي رَسُولٞ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٠٤﴾ حَقِيقٌ عَلَىٰٓ أَن لَّآ أَقُولَ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ قَدۡ جِئۡتُكُم بِبَيِّنَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ
فَأَرۡسِلۡ مَعِيَ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴿١٠٥﴾ قَالَ إِن كُنتَ جِئۡتَ بِـَٔايَةٖ فَأۡتِ بِهَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿١٠٦﴾ فَأَلۡقَىٰ عَصَاهُ
فَإِذَا هِيَ ثُعۡبَانٞ مُّبِينٞ ﴿١٠٧﴾ وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِيَ بَيۡضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ ﴿١٠٨﴾ قَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ
عَلِيمٞ ﴿١٠٩﴾ يُرِيدُ أَن يُخۡرِجَكُم مِّنۡ أَرۡضِكُمۡۖ فَمَاذَا تَأۡمُرُونَ ﴿١١٠﴾ قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ وَأَخَاهُ وَأَرۡسِلۡ فِي ٱلۡمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴿١١١﴾
يَأۡتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٖ ﴿١١٢﴾ وَجَآءَ ٱلسَّحَرَةُ فِرۡعَوۡنَ قَالُوٓاْ إِنَّ لَنَا لَأَجۡرًا إِن كُنَّا نَحۡنُ ٱلۡغَٰلِبِينَ ﴿١١٣﴾ قَالَ
نَعَمۡ وَإِنَّكُمۡ لَمِنَ ٱلۡمُقَرَّبِينَ ﴿١١٤﴾ قَالُواْ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلۡقِيَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحۡنُ ٱلۡمُلۡقِينَ ﴿١١٥﴾ قَالَ
أَلۡقُواْۖ فَلَمَّآ أَلۡقَوۡاْ سَحَرُوٓاْ أَعۡيُنَ ٱلنَّاسِ وَٱسۡتَرۡهَبُوهُمۡ وَجَآءُو بِسِحۡرٍ عَظِيمٖ ﴿١١٦﴾ ۞ وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ
مُوسَىٰٓ أَنۡ أَلۡقِ عَصَاكَۖ فَإِذَا هِيَ تَلۡقَفُ مَا يَأۡفِكُونَ ﴿١١٧﴾ فَوَقَعَ ٱلۡحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿١١٨﴾ فَغُلِبُواْ
هُنَالِكَ وَٱنقَلَبُواْ صَٰغِرِينَ ﴿١١٩﴾ وَأُلۡقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ﴿١٢٠﴾ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٢١﴾ رَبِّ مُوسَىٰ
وَهَٰرُونَ ﴿١٢٢﴾ قَالَ فِرۡعَوۡنُ ءَامَنتُم بِهِۦ قَبۡلَ أَنۡ ءَاذَنَ لَكُمۡۖ إِنَّ هَٰذَا لَمَكۡرٞ مَّكَرۡتُمُوهُ فِي ٱلۡمَدِينَةِ لِتُخۡرِجُواْ مِنۡهَآ
أَهۡلَهَاۖ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ﴿١٢٣﴾ لَأُقَطِّعَنَّ أَيۡدِيَكُمۡ وَأَرۡجُلَكُم مِّنۡ خِلَٰفٖ ثُمَّ لَأُصَلِّبَنَّكُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴿١٢٤﴾ قَالُوٓاْ إِنَّآ إِلَىٰ
رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴿١٢٥﴾ وَمَا تَنقِمُ مِنَّآ إِلَّآ أَنۡ ءَامَنَّا بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتۡنَاۚ رَبَّنَآ أَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرٗا وَتَوَفَّنَا
مُسۡلِمِينَ ﴿١٢٦﴾ وَقَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوۡمَهُۥ لِيُفۡسِدُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَيَذَرَكَ وَءَالِهَتَكَۚ قَالَ
سَنُقَتِّلُ أَبۡنَآءَهُمۡ وَنَسۡتَحۡيِۦ نِسَآءَهُمۡ وَإِنَّا فَوۡقَهُمۡ قَٰهِرُونَ ﴿١٢٧﴾ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِ ٱسۡتَعِينُواْ بِٱللَّهِ
وَٱصۡبِرُوٓاْۖ إِنَّ ٱلۡأَرۡضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦۖ وَٱلۡعَٰقِبَةُ لِلۡمُتَّقِينَ ﴿١٢٨﴾ قَالُوٓاْ أُوذِينَا مِن
قَبۡلِ أَن تَأۡتِيَنَا وَمِنۢ بَعۡدِ مَا جِئۡتَنَاۚ قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمۡ أَن يُهۡلِكَ عَدُوَّكُمۡ وَيَسۡتَخۡلِفَكُمۡ فِي
ٱلۡأَرۡضِ فَيَنظُرَ كَيۡفَ تَعۡمَلُونَ ﴿١٢٩﴾ الأعراف: ٩٤ - ١٢٩

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی د دغو انبیاء کرامو لکه: نوح، هود، صالح، لوط او شعیب علیهم السلام کیسې راوړې او هغه عذابونه چې د دوی په امتونو باندې نازل شوي وو څکه هغوی ته پند کته نه رسوله بیان کړل نو دلته یې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



د هغه الهي سنت او تګلاري يادونه وکړه کومه چي له هغو کسانو څخه کسات اخلي څوک چي پيغمبران دروغجن ګڼي او دا په تدريجي توګه چي په فقر او رنځ يې اخته کوي بيا نعمتونه او سوکالي ورويني او که يې ايمان بيا هم نه راووړ په سختو نيولو (بطش شديد) باندي يې نيسي وروسته يې د موسى عليه السلام کيسه چي د فرعون طاغوت سره يې درلوده بيان کړه چي د هر پندونه او عبرتونه پکې نغښتي دي

## لغتونه:

﴿البأسآء﴾ سخت فقر ﴿الضرآء﴾ رنځ او ضرر ﴿عفوا﴾ زيات شول اووده يې وکړه ﴿بغتة﴾ نابيره ناڅاپه ﴿ملائه﴾ دقوم مخه ورکسان ﴿أرجه﴾ وېې ځنډوه ﴿صاغرين﴾ ذليل ﴿تلقف﴾ ترستوني تېرول ﴿يأفكون﴾ دروغ ترل ﴿أفرغ علينا﴾ توی کړه پر موږ باندي.

## تفسير:

﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا فِي قَرۡيَةٖ مِّن نَّبِيٍّ ﴾ (او نه وو لېږلی موږ په هيڅ کلي (ښار) کي هيڅ نبی) په کلام کي حذف راغلی هغه دا چي (دوی يې تکذيب کړی وي) ﴿إِلَّآ أَخَذۡنَآ أَهۡلَهَا بِٱلۡبَأۡسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ﴾ مګر وبه نيول موږ اهل د هغې (قريې) په سختيو (فقر) او تکليفونو (ناروغيو) ﴿لَعَلَّهُمۡ يَضَّرَّعُونَ﴾ د پاره ددې چي دوی زاري وکړي (له ګناهونو توبه ګارشي) ﴿ثُمَّ بَدَّلۡنَا مَكَانَ ٱلسَّيِّئَةِ ٱلۡحَسَنَةَ﴾ بيا بدله کړه موږ په ځای د سختي کي آساني (فقر مو په غنا او ناروغي مو په روغتيا بدله کړه) ﴿حَتَّىٰ عَفَواْ﴾ ترڅو چي ډېر شول (اووده يې وکړه) ﴿وَّقَالُواْ قَدۡ مَسَّ ءَابَآءَنَا ٱلضَّرَّآءُ وَٱلسَّرَّآءُ﴾ (او وويل دوی (په ناشکري سره) چي په تحقيق رسېدلي وو پلرونو زموږ ته سختي او خوشحالي) دغه د زماني عادت دی د الله عذاب نه دی بايد موږ پخپل دين پاتي شو غرض دا چي الله پاک دوی لومړی په ربړونو او تکليفونو وازمويل چي توبه ګار شي خو دوی توبه ونکړه بيا يې اسانتياوي ورباندي ولورولې چي شکرانه يې اداکړي هغه يې هم ونکړل نو بله لاره پاتي نشوه پرته له دې چي الله جل جلاله دوی په عذاب اخته کړي نو ځکه الله فرمايي: ﴿فَأَخَذۡنَٰهُم بَغۡتَةٗ وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ﴾ نو ونيول موږ دوی ناڅاپه (په عذاب او هلاک) او دوی به نه پوهېدل ﴿وَلَوۡ أَنَّ أَهۡلَ ٱلۡقُرَىٰٓ ءَامَنُواْ وَٱتَّقَوۡاْ﴾ او که خلګو د دې کليو (ښارونو) ايمان راوړی وای (په الله او پيغمبرانو يې) او تقوی يې (غوره) کړي وای (له کفر او معاصيو څخه) ﴿لَفَتَحۡنَا عَلَيۡهِم بَرَكَٰتٖ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ (نو خامخا پرانيستي به مو وې پر دوی باندي (دروازې د) برکتونو له آسمانه او ځمکي نه) يعني له هره لوري به مو ورته خير او برکت رساوو له آسمانه برکتونه او ربښت او بارانونه له ځمکي نه بيا مېوې او غلې. سدي وايې چي معنا دا چې: د آسمان او ځمکي د رزق روزي دروازې به مو ورباندي پرانيستي وې ([1]) ﴿وَلَٰكِن كَذَّبُواْ فَأَخَذۡنَٰهُم بِمَا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ﴾ ولکن نسبت د دروغو کړ دوی (انبياوو ته) نو ونيول موږ هغوی (هلاک مو کړل) په سبب د هغو چي وو دوی چي کول به يې (له ګناهونو او کفرنه) ﴿أَفَأَمِنَ أَهۡلُ ٱلۡقُرَىٰٓ﴾

---

([1]) البحر ۴/ ۳۵۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَن يَأۡتِيَهُم بَأۡسُنَا بَيَٰتٗا وَهُمۡ نَآئِمُونَ ﴾ آيا نو په امن كي دي ؟ اهل دقريو ( ښارونو ) له دې نه چي راشي دوى ته عذاب زموږ دشپې اوحال داچي دوى ويده ( غافل ) وي استفهام دانكارلپاره دى يعني مامون نه دي ) ﴿ أَوَأَمِنَ أَهۡلُ ٱلۡقُرَىٰٓ أَن يَأۡتِيَهُم بَأۡسُنَا ضُحٗى وَهُمۡ يَلۡعَبُونَ ﴾ آيا په امن كي دي اهل دقريو دښارونو ) له دې نه چي راشي دوى ته عذاب زموږ په څاښت كي حال داچي دوى په لوبو مشغول وي ؟ يعني آيا له دې په أمن كي دي دغه خلگ چي زموږ عذاب په رڼا ورځ ورباندي راپرېوزي اودوى هسي بې گټي كارونه كوي لكه چي لوبي كوي ؟ ﴿ أَفَأَمِنُواْ مَكۡرَ ٱللَّهِۚ فَلَا يَأۡمَنُ مَكۡرَ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡقَوۡمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ﴾ ( آيانو په امن كي دي دوى له مكره دالله نونه په امن كېږي له مكره دالله مگرقوم زيانكاران ) يعني آيادوى دالله جل جلاله له استدراجه بېغمه دي چي الله نعمتونه ورزيات كړي اوبيايې ددوى په غفلت كي هلاک كړي له داسي حال څخه څوک نه بېغمه كېږي مگرهغه څوک چي عقلونه يې په خسران كي وي او انسانيت يې بايللى وي ترچارپايانو اوښتى وي. حسن بصري رحمه الله وايي: چي مؤمن طاعات اوعبادات كوي ورسره له عذابه وېرېدونكى هم وي اوفاسق فاجر گناهونه كوي خو دالله له عذابه بېغمه اودامن اوآرامي احساس كوي (١) ﴿ أَوَلَمۡ يَهۡدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ ٱلۡأَرۡضَ مِنۢ بَعۡدِ أَهۡلِهَآ ﴾ آيانه دى ښكاره شوى هغو كسانو ته چي وارثان شوي وي دځمكي وروسته له ( هلاكت ) داهل دهغې ) يعني آياڅرگنده شوى نه دى هغو كسانو ته چي دځمكي وراثت ورته رسېدلى چي تردوى دمخه خلگ چي ځمكه يې آبادوله هلاک شول (اوځمكه دوى ته پاته شوه پكې اوسي ) چي مراد له دې كسانو څخه دمكې كفاراوخواوشاخلگ دي ﴿ أَن لَّوۡ نَشَآءُ أَصَبۡنَٰهُم بِذُنُوبِهِمۡۚ ﴾ كه اراده فرمايلي وى موږ ( دنيولو ددوى ) نو رسولى به وو موږ دوى ته ( عذاب ) په سبب دگناهونو ددوى سره ( لكه چي پخواني خلگ مومعذب كړي وو ) په البحر المحيط كي وايي چي معناداچي تاسوبنه خبرياست چي هغوى ته څه ورپېښ شول نوتاسي له دې نه وېرېږئ چي تاسي ته هم هغسي هلاكت ورسېږي اوداخوله موږڅخه كه موږ وغواړو ممتنع نه دى (٢) ﴿ وَنَطۡبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَسۡمَعُونَ ﴾ اومهر به ولگوو په زړونو ددوى ( چي پند به نه مني ) اونصيحت به (دمنلولپاره ) دوى نه اوري ﴿ تِلۡكَ ٱلۡقُرَىٰ نَقُصُّ عَلَيۡكَ مِنۡ أَنۢبَآئِهَاۚ ﴾ ( دغه قريې اوښارونه دتېرشوي امتونو ) بيانوو موږپرتاله ځينو حالاتو ددوى ) يعني دغه ښارونه چي يادشول موږ ددوى دخلگو ځيني كيسې تاته بيانوو اې محمده ! صلى الله عليه وسلم چي دوى ځنگه په تندر، زلزلو ، اوپه ډبرو وېشتلو ( رجم ) باندي هلاک شول ؟ترڅو هغه څوک چي اوري يې عبرت واخلي چي دغه پېښي خوراستري او وېرونكي وي ﴿ وَلَقَدۡ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ ﴾ اوخامخاپه تحقيق راوړى دى دوى ته رسولانو ددوى ښكاره معجزې ( اوڅرگند قاطع دليلونه ) ﴿ فَمَا كَانُواْ لِيُؤۡمِنُواْ بِمَا كَذَّبُواْ مِن قَبۡلُۚ ﴾ (نونه وو ( له شانه ددوى ) چي ايمان راوړي په هغه شي چي نسبت د دروغو ورته كړى وو پخوا ( له همدغو معجزاتو ) يعني دوى وروسته له معجزاتورا تللوهم دهغه رسالت په هكله ايمان نه راوړ چي پخواترمعجزاتويې دروغ گڼل نوحال ددوى پخواله معجزاتو اووروسته يوډول دسرغړوني اوگمراهي حال وو ؛ زمخشري وايي چي دوى په خپل

---

(١) مختصر ابن كثير ٢ / ٣٨

(٢) البحر المحيط ٤ / ٣٥٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تکذیب استمرار غوره کړی وو ترڅوچي مړه شول معجزاتو او نصیحتونه ورته هیڅ ګټه نه رسوله[1] ﴿ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ همدارنګه ( لکه چي مهراینبنودل په زړونو دپخوانیو کفارو ) ( محکم مهرلګوي الله په زړونو دکافرانو باندي ( نوبیامعجزې او وېرونکي دلائل درباندي هیڅ اغېزه نه کوي او پدې کي داورېدونکو لپاره تحذیر نغښتی دی ﴿ وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِم مِّنْ عَهْدٍ ۖ وَإِن وَجَدْنَآ أَكْثَرَهُمْ لَفَـٰسِقِينَ ﴾ اوندی موندلی موږلپاره دزیاترودوی له ( وفاپه ) عهدباندي او بېشکه موندلي دي موږ زیاتره ددوی خامخافاسقان ،د عهدماتونکي اوله طاعت نه بهروتونکي سرغړونکي. ابن کثیر وایي چي : مرادله عهدڅخه هغه ژمنه اووعده ده چي دپلرونو په ملاکي لاځني اخیستي شوي وه یعني (الست بربکم ؟ قالوا بلی ) خودوی له هغې نه مخالفت وکړ اوله الله جل جلاله سره یې شریک ونیو چي هیڅ شرعي او عقلي دلیل یې هم نه درلود[2] ﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ بِـَٔايَـٰتِنَآ ﴾ ( بیاولېږل موږوروسته له دغه ( رسولانو ) موسی سره له ( نهو ) معجزو زموږ) یعني بیاوروسته له دغو انبیاوو چي پخوایادشول موږموسی بن عمران سره له څرګندومعجزاتو اوښکاره دلائلو راواستاوو ﴿ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ ﴾ فرعون ( دمصر ) او اتباعو دده ته ﴿ فَظَلَمُوا۟ بِهَا ۖ ﴾ نوظلم وکړ دوی (اکافرشول) په هغو ) معجزاتو ؛ په ظلم او عنادسره ) ﴿ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ (نووګوره څرنګه شوآخره خاتمه دمفسدینو ) یعني وګوره اې اورېدونکي څرنګه دمفسدینو ظالمانو آخره خاتمه تباه شوه او موږ یومخ ایزه تول دموسي علیه السلام اودقوم په وړاندي یې غرق کړل اودغه دالله له دښمنانو څخه دکسات اخیستلوخورابربنده نمونه ده چي دالله داولیاوو مؤمنانو زړونه ورباندي یخ شي ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ يَـٰفِرْعَوْنُ إِنِّى رَسُولٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ ( اوو ویل موسي یافرعونه بېشکه زه دالله رب العالمین له لوري استازی( رسول یم) یعني زه دهغه ذات له پلوه چي هغه سترخالق پالونکی ( رب ) دهرڅاپیداکونکی( خالق ) او مالک دهرڅادی استازی یم. ﴿ حَقِيقٌ عَلَىٰٓ أَن لَّآ أَقُولَ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْحَقَّ ۚ ﴾ (ثابت لائق ټینګ ولاړیم پردغه خبره چي نه وایم پرالله مګر( وایم ) حق څکه چي زه دالله جل جلاله په عظیم شان او جلال پوهېږم ﴿ قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِىَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ په تحقیق راوړي دي ماتاسي ته څرګنده معجزه له ( لوري ) درب ستاسي نوپرېږده له ماسره بني اسرائیل چي شام ته یې بوزم ) یعني تاسوته مي دالله له لوري قاطع حجت راوړي چي زما په رښتنولي شاهدي ورکوي نوپرېږده چي بني اسرائیل له ماسره سپېڅلي ټاټوبي ته ستانه شي هغه چي ددوی دپلرونو هیواددی[3] ابوحیان وایي څرنګه چي فرعون دربوبیت دعوی کړي وه نوځکه موسی علیه السلام ورته وویل:

---

([1]) الکشاف ٢/ ١٣٥

([2]) مختصرابن کثیر ٢/ ٣٩٠

([3]) مفسرین کرام وایي چي بني اسرائیل که څه هم پلرونه یې په بیت المقدس ټاټوبي کي اوسېدلي خودوی دیعقوب علیه السلام اولاده مصرته دځپل وروریوسف علیه السلام څنګ ته راغلل او هلته مېشت شول زوزات اونسل یې هلته زیات شو او چي فرعون پیداشونودوی یې په سختوکارونو وګمارل مریان یې ځیني جوړکړل نوموسي علیه السلام وغوښتل له دغه ستونزمن خیل (محبس )څخه یې وژغوري او پلرني ټیر ادته یې بوزي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

﴿ إِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ ترڅو هغه وپوهوي چي دعوی یې باطله ده او څرنګه چي داخبره: ﴿ حَقِيقٌ عَلَىٰٓ أَن لَّآ أَقُولَ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ ﴾ یې کړي نو وروسته یې هغه څه پسي زیات کړل چي په سموالي یې دلالت کوي چي ﴿ قَدۡ جِئۡتُكُم بِبَيِّنَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ ﴾ او چي کله یې رسالت وښودنو حکم یې ورباندي وفرمایه چي ﴿ فَأَرۡسِلۡ مَعِيَ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴾ (١) ﴿ قَالَ إِن كُنتَ جِئۡتَ بِـَٔايَةٖ فَأۡتِ بِهَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ (وویل فرعون) که یې ته (اې موسی) چي راوړي دي وي کومه معجزه نوراوړاندي کړه هغه (ماته) که یې له ړښتیا ویونکو (پدې خپله دعوی کي) چي ستاړښتینوالی څرګند شي دغه یې د موسی علیه السلام د تعجیز لپاره وویل ﴿ فَأَلۡقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعۡبَانٞ مُّبِينٞ ﴾ (نو وغورځوله موسی همساخپله نو له واره هغه اژدها (ښامار) وو ښکاره) یعني هغه غټ اوږد ښامار شوه. ابن عباس رضی الله عنهما وایې: چي هغه ستر ښامار شوه پرانستي خوله یې د فرعون په لوري ورتوپ کړل او ﴿ مُّبِينٞ ﴾ یې ددې لپاره وفرمایل چي هغه په څرګنده ښامار شو تخیلي او ګوماني نه وو ﴿ وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِيَ بَيۡضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ ﴾ (وویوست موسی لاس خپل نو ناڅاپه هغه تک سپین وو لپاره د کتونکو) یعني هغه له تخرګ څخه لاس راویوست چي نوراني سپین والی یې درلود دلمرتر روښنایي لا زیاته ړڼا درلوده. ابن عباس رضی الله عنه وایې چي لاس یې دومره ړڼا درلوده چي د ځمکي او آسمان ترمینځ مسافه یې روښانوله ﴿ قَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٞ ﴾ وویل مشرانوله قومه د فرعون (چي دده مشاورین وو) چي بېشکه دا خامخا (ماهر) جادوګر دی ډېرپوه داچي دوی وویل: ﴿ عَلِيمٞ ﴾ یعني د جادو په هنرونو کي خوراسېدلی دی ﴿ يُرِيدُ أَن يُخۡرِجَكُم مِّنۡ أَرۡضِكُمۡۖ ﴾ غواړي داچي وباسي تاسي له ځمکي ستاسي (چي مصر دی په دغه جادوسره) ﴿ فَمَاذَا تَأۡمُرُونَ ﴾ نو څه امر کوئ تاسي؟ قرطبي وایې چي: دغه خبره فرعون وکړه چي تاسو څه فرمایاست چي دده په هکله څه وکړو؟ ! ستاسي مشوره څه ده؟ ! چابیا ویلي چي دغه د مشرانو جرګې خبره ده چي هغوی یوازي فرعون ته داسي وویل چي تاسو څه امر کوئ؟ لکه چي دوخت جبابره او پاچهانو ته ویل کېږي چي پدې هکله تاسو څه فرمایاست؟ ! (٢) ﴿ قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ وَأَخَاهُ وَأَرۡسِلۡ فِي ٱلۡمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴾ (وویل (قبطیانو فرعون ته) مهلت ورکړه دغه (موسی) او ورور دده ته او ولېږه په ښارونو کي راټولونکي (د ساحرانو) یعني دوی ته مهلت ورکړه ترڅو ددوی په باب خپله فیصله وکړي او په جادوګرانو پسي راټولونکي خلګ واستوه ﴿ يَأۡتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٖ ﴾ (چي راولي تاته هر جادوګر ډېرپوه) لکه دی غونډي اود جادوګرانو مشران د مصر په لېږي ډګر (دامان) کي اوسېدل ﴿ وَجَآءَ ٱلسَّحَرَةُ فِرۡعَوۡنَ قَالُوٓاْ إِنَّ لَنَا لَأَجۡرًا إِن كُنَّا نَحۡنُ ٱلۡغَٰلِبِينَ ﴾ (او راغلل جادوګران فرعون ته وویل دغو جادوګرانو چي آیا بېشکه وي به موږ ته خامخا ښه مزدوري که شو موږ غلبه کونکي؟) په کلام کي محذوف توري شته چي سیاق ورباندي دلالت کوي هغه داچي په

(٢) القرطبي ٧/ ٢٥٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

جادوگرانو پسي يې خلک واستول هغوی يې راوغوښتل او چې راغلل نو يې فرعون ته هسې وويل چې آيا موږ ته به غته مزدوري راکړې که موهغه راوپرخاوو اوجادو موور باطل کړ؟! ﴿ قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴾ (وويل فرعون (ساحرانوته) هو! اوبېشکه تاسي به خامخا اوسئ له مقربينو زماڅخه (په مرتبه کې) يعني فرعون جادوگرانوته وويل چې هوغته مزدوري به درکوم اوپردې دپاسه تاسوبه زماله نژدې کسانوڅخه پخپلو مشاورينو اوخاصانوکې ومنم. قرطبي وايي ددوی له غوښتنې زيات يې ورسره ژمنه وکړه. ﴿ قَالُوا يَـٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ ﴾ وويل جادوگرانوچې اې موسی آياته غورځوې (همساخپله) اويا داچې شو موږ همدا موږ (ږومبي) غورځونکې (دپړيو همساګانو) زمخشري وايي چې موسی عليه السلام ته اختيار ورکول ددوی له خوا ورسره ښه ادب وو لکه چې کارپوه استاذان کله مناظره کونکې غوندې لوبغاړې سره مخامخ کېږي نويوبل ته وايي چې ته يې پيل کړه اويابه موږ پيل کوو[1] خوظاهره اوڅرګنده داده چې دغه به ددوی په ځان باندې دغره کېدلوله سببه وي چې موسی عليه السلام ته يې اهميت نه ورکاوو داسې يې انګېرله چې دوی اورمرو برياليې کېدونکې دي لکه چې په ځان باورې يو چاته وايي چې ته يې پيل کړه يا يې زه پيل کوم ﴿ قَالَ أَلْقُوا فَلَمَّآ أَلْقَوْا سَحَرُوٓا أَعْيُنَ النَّاسِ ﴾ (وويل موسی عليه السلام ساحرانوته چې وغورځوئ تاسې خپل پړې اوهمساګانې نوکله چې وغورځول دوی نوجادويې وکړ په سترګو دخلګو) يعني ددوی په خيال کې يې هغه څه ورواچول چې حقيقت يې نه درلودلکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ﴾ طه ۶۶ ﴿ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ وَجَآءُو بِسِحْرٍ عَظِيمٍ ﴾ او ووېرول دوی دا (خلګ) اوراتله وکړودوی په جادو لوی سره) لکه چې ددوی په خيال کې يې ماران وروستل چې يوه بله خوا خوځېدل هرڅاچې ليدل ځنې وېرېدل به. ابن اسحاق وايي چې يوزرا وپنځه سوه تنه جادوګران کتار ودرېدل چې له هره يوه سره لکړې او پړې وو فرعون دخپل مملکت له مخه وروسره په مجلس کې ناست وونولومړی خل يې دفرعون خبرا ونظر وتښتاوو بيايي دموسی خبر يووړ وروسته يې دخلګونظرونه ځنې وتښتول بيايي له لاسونوڅخه لکړې اوپړې وغورځول هغه لکه غرونه غوندې ښاماران جوړشول چې يوپه بل باندې به سپرېدل تولو ته وادې يې په سرواخيسته ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ فَإِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴾[2] (اوحکم موولېږه موسی ته داسې چې وغورځوه ته همساخپله نوناڅاپه دغې همساښوې (ژر) تېرول هغه شيان چې دوی جوړکړې وو (په جادوسره په دروغو) ابن عباس رضی الله عنه وايي چې د ﴿ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴾ معنادا چې هرڅه به په مخه ورتلل هغه يې ترستوني تېرول ﴿ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (نوثابت شوحق اوورک شوهغه چې دوی به کول) يعني ثابت اوڅرګندشوځ حق هغه چاته چې حاضروو اوليدل يې اوباطل شول دجادو دروغ اوګومانونه ﴿ فَغُلِبُوا هُنَالِكَ وَانقَلَبُوا صَـٰغِرِينَ ﴾ (نومغلوب شول (دوی) په هغه ځای کې او وګرزېدل دوی خوار سپک) يعني فرعون اوقوم يې پدغه ستره تولنه کې خوار اوذليل مغلوب وګرزېدل ﴿ وَأُلْقِىَ السَّحَرَةُ سَـٰجِدِينَ ﴾ اووغورځول شول

---

[1] الکشاف -۲- ۱۴۰

[2] الطبري ۱۳/ ۲۸

Bawar.net
Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دا (جادوګران) په دې حال کې چې سجده کونکي وو ﴿ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴾ (وويل جادوګرانو ايمان موراوړی دی په رب دعالميانورب دموسی اوهارون) يعني دوی پرمخي په سجده پرېوتل دايمان اعلان يې وکړځکه چې حق ورته ځرګند شو. قتادة رضی الله عنه وايي: دورځي په لومړيو شېبو کې جادوګر کفار وو اوپه وروستيو کې يې بيانېکمرغه ابرار شهيدان شول(١) ﴿ قَالَ فِرۡعَوۡنُ ءَامَنتُم بِهِۦ قَبۡلَ أَنۡ ءَاذَنَ لَكُمۡۖ ﴾ (وويل فرعون آيا ايمان راوړتاسي پدغه (موسی) پخوا له هغه چې زه تاسي ته اجازه وکړم؟) يعني تر پخوا له دې چې له مانه اجازه واخلئ مؤمنان شوی؟ مقصد يې توبيخ اوترټنه وه ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَمَكۡرٞ مَّكَرۡتُمُوهُ فِي ٱلۡمَدِينَةِ لِتُخۡرِجُواْ مِنۡهَآ أَهۡلَهَاۖ ﴾ (بېشکه داکارخامخايوچل دی چې مکر (بنا) کړيدی تاسي په دابنار کي لپاره ددې چې وباسئ تاسي له دې ښاره خلګ د (هغه) يعني دغه حيله اودوکه موپخوا لاتاسواوموسی سره جوړه کړې وه مخکي تر دې چې دغي غونډې ته راشئ مقصدمو دادی چې له دې ښاره قبطيان وباسئ اوبني اسرائيل پکي ځای په ځای کړئ دغه يې دخلګودغولولو لپاره وويل چې نور خلګ دجادوګرانوپلوي ونکړي اوايمان را نه وړي ﴿ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ﴾ نوژر به پوه شئ تاسي (چې زه څه درسره کړم؟) دغه وعيد اوتهديد دی چې لومړی يې داجمال په توګه بيان کړی او وروسته يې هسي تفصيل بيانوي ﴿ لَأُقَطِّعَنَّ أَيۡدِيَكُمۡ وَأَرۡجُلَكُم مِّنۡ خِلَٰفٖ ﴾ خامخابه پرې کړم زه هرومرو لاسونه ستاسي اوپښې ستاسي مخالفي (يوله بله) يعني ستاسي هريوه څخه به لاس اوپښه مخالفه پرې کړم. طبري وايي چې ددې کلام چې ﴿ مِّنۡ خِلَٰفٖ ﴾ معنادا ده چې ستاسو ديوه به ښی لاس کينه پښه غوڅه کړم اويابه کينې لاس اوښی پښه يعني دوه غړي به يوله بله مخالف درڅخه غوڅ کړم(٢) ﴿ ثُمَّ لَأُصَلِّبَنَّكُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴾ (بيابه خامخا په دار کړم زه ضرورتاسي ټول) ترڅو ستاسي اوستاسو دامثالو لپاره عبرت شي ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴾ (وويل (جادوګرانو) بېشکه موږلوري درب خپل ته بېرته ورتلونکي يو) يعني ځرنګه چې موږ اکه پکه مړه کېږو خونوبياستاسوله دې اخطارونو څخه نه وېرېږو مرګ چې دالله په لارکي وي څومره نېکمرغه دی ﴿ وَمَا تَنقِمُ مِنَّآ إِلَّآ أَنۡ ءَامَنَّا بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتۡنَاۚ ﴾ اوعيب نه ګڼې ته (اې فرعونه!) له موږ مګردا چې ايمان موراوړی دی په آيتونو درب خپل کله چې راغلل موږته) لکه داقول دالله جل جلاله ﴿ وَمَا نَقَمُواْ مِنۡهُمۡ إِلَّآ أَن يُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ ﴾ البروج: ۸ زمخشري وايي: معنايې داده چې عيب نه ګڼې په موږباندي مګرهغه څه چې هغه دافتخاراتو اوويا ړونو اساس اوبنسټ بلل کېږي کوم چې ايمان دی(٣) ﴿ رَبَّنَآ أَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرٗا وَتَوَفَّنَا مُسۡلِمِينَ ﴾ اې ربه زموږ! راتوی کړه پرموږ صبر (کله چې موږته فرعون عذاب راکوي څوچې موږ ونغاړي) اومړه کړه موږ پداسي حال کي چې مسلمانان يو (په فتنه کي مومه اچوې) ﴿ وَقَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ أَتَذَرُ

(١) البحر المحيط ۴/ ۳۶۴
(٢) الطبری ۱۳/ ۳۴
(٣) الكشاف ۲/ ۱۴۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مُوسَىٰ وَقَوْمَهُۥ لِيُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَيَذَرَكَ وَءَالِهَتَكَ ﴾ او وويل مشرانو له قومه دفرعون ( فرعون ) ته ايا نه پرېږدې موسی اوقوم دده لپاره ددې چې فسادوکړي دوی په ځمکه کې اوپرېږدي ( دين ) ستا ) او( عبادت ) دخدايانو( بتانو ) ستا ؟ پدې کې دفرعون پارونه مقصد وه چې هغوی ووژني اوعذاب ورو ويني ﴿ قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْىِۦ نِسَآءَهُمْ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَٰهِرُونَ ﴾ ( وويل فرعون ژربه ووژنو زامن ددوی اوژوندي به پرېږدو موږښځي ( لوني ) ددوی اوبېشکه موږ پاسه دوی زورور يو ) يعني فرعون ددوی په خواب کې داسي وويل : چي موږبه ددوی نارينه زامن ووژنو اوښځي ( لوني ) به يې دچوپړ(استخدام ) لپاره وګمارو لکه چي پخوا موکول موږپردوي په توان اوحکومت زورور يو ﴿ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ ٱسْتَعِينُوا۟ بِٱللَّهِ وَٱصْبِرُوٓا۟ ﴾ وويل موسی (عليه السلام ) قوم خپل ته ( دداديني لپاره ) مددغواړئ له الله څخه اوصبر کوئ ) يعني کله چي دوی دفرعون له دغې وېنا څخه زړه تنګي شول نوموسی عليه السلام ورته وويل : له الله څخه دفرعون اودهغه دقوم له ځوروني مرسته وغواړئ اودالله حکم ته صبرکوئ ﴿ إِنَّ ٱلْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ﴾ (بېشکه چي دغه ځمکه خاص الله لره ده وارث ګرزوي ددې (ځمکي) هغه څوک چي اراده وفرمايي له بندګانو خپلو څخه ) دوی ته يې ددې تمه ورکړه چي الله جل جلاله به دمصر ځمکه په ميراث درکړي ﴿ وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴾ ( اوعاقبت ( ښه خاتمه ) پرهېزګارانو ته ده ) يعني ستايلي ښه خاتمه دهغه چالپاره ده چي له الله تعالی څخه ووېرېږي ﴿ قَالُوٓا۟ أُوذِينَا مِن قَبْلِ أَن تَأْتِيَنَا وَمِنۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ﴾ ( وويل بنی اسرائيلو (موسی ته ) چي ځور رسول شوی دی موږته پخوا له هغه چي ته راغلی وې موږته اووروسته له هغه چي ته راغلی وې موږته ) يعني ستاتررسالت پخواهم موږځورېدلي يو اوله تانه وروسته هم ؛ مقصد يې داوو چي محنت له دوی څخه بېل شوی نه دی دوی په عذاب اوابتلاء کي تل ترتله دي دموسی عليه السلام له بعثت نه پخوا اوله هغه وروسته هم ددوی دغه حال دی ﴿ قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴾ ( وويل موسی نژدې دی چي رب ستاسي هلاک کړي دښمن ستاسي اوخليفه ګان کړي تاسي په دغه ځمکه کي ( وروسته ددوی له هلاک نه ) بيابه ګوري ( الله ) چي څرنګه عمل کوئ تاسي ) يعني هيله ده چي فرعون اوقوم تېر يې الله هلاک کړي او تاسو دهغوی په ځمکه کي خليفه ګان وګرزوي اوو ګوري چي تاسو وروسته له خلافت نه په ځمکه کي څرنګه کارکوئ اصلاح راولئ که فساد خپروئ غرض له دې خبري نه ددوی هڅونه دالله جل جلاله طاعت ته وه اوهمداسي الله جل جلاله دموسی عليه السلام هيله ترسره کړه فرعون يې غرق(ډوب) کړ او بنی اسرائيلو ته يې دمصر ځمکه وسپارله په البحر المحيط کي وايي چي موسی عليه السلام له رب العالمين سره دادب لاره خپله کړه اوخبره يې دهيلي په توګه وړاندي کړه[1]

---

[1] البحر المحيط ۴ / ۳۶۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## بلاغت:

۱- ﴿بَدَّلْنَا مَكَانَ ٱلسَّيِّئَةِ ٱلْحَسَنَةَ﴾ دلته د ﴿ٱلسَّيِّئَةِ﴾ او ﴿ٱلْحَسَنَةَ﴾ ترمينځ د طباق صنعت دی او همداسي د ﴿ٱلضَّرَّآءُ﴾ ﴿وَٱلسَّرَّآءُ﴾ په الفاظو کي.

۲- دالله تعالی پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَٰتٍ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ دلته يې دبرکتونو ترلاسه کول ددروازوله پرانيستلو سره تشبيه کړي اودغه داستعارې له باب څخه دی يعني دوی ته موله ګردو خواو وخير اوبرکت پراخ کړيدی.

۳- ﴿أَفَأَمِنَ أَهْلُ ٱلْقُرَىٰٓ﴾ دغه جمله يې په تکرار را وړي چي مقصد ورڅخه تهديدا و اخطار دی اودغه ته دبلاغت په علم کي د(اطناب) صنعت وايي لکه داچي ﴿أَفَأَمِنُواْ مَكْرَ ٱللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ ٱللَّهِ﴾ ابوالسعود وايي د(مکر) تکرير دزيات تاکيد لپاره دی او دالله جل جلاله مکر دبنده له استدراج څخه استعاره ده چي کله يې لوی الله جل جلاله ناڅاپه نيسي(۰)

۴- پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿وَإِنَّكُمْ لَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ﴾ دجملې تاکيد يې په ﴿إِنَّ﴾ او(لام) باندي وکړ ترڅو دکودګرانو جادوګرانو له نفسونو څخه شک ليري کړي اودغه ته د خبري انکاري دول ويل کيږي.

۵- ﴿فَوَقَعَ ٱلْحَقُّ﴾ دلته يې له حصول اوثبوت څخه وقوع استعاره راوړي ده والله اعلم

## تنبيه:

کله چي فرعون په دليل ويلو کي پاتي راغی نو يې دوږ لونيولو لاره خپله کړه او همداسي هرطاغوتي خواک اوګمراه واکمن کله چي په دليل کي ستړی ستومانه شي نو داخطار ورکولو ، تهديد او وعيد په نيلي سپور شي

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ أَخَذْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ بِٱلسِّنِينَ وَنَقْصٍ مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٣٠﴾ فَإِذَا جَآءَتْهُمُ ٱلْحَسَنَةُ قَالُواْ لَنَا هَٰذِهِۦ ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُواْ بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ ۗ أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمْ عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٣١﴾ وَقَالُواْ مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِۦ مِنْ ءَايَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿١٣٢﴾ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلطُّوفَانَ وَٱلْجَرَادَ وَٱلْقُمَّلَ وَٱلضَّفَادِعَ وَٱلدَّمَ ءَايَٰتٍ مُّفَصَّلَٰتٍ فَٱسْتَكْبَرُواْ وَكَانُواْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴿١٣٣﴾ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ ٱلرِّجْزُ قَالُواْ يَٰمُوسَى ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ ۖ لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا ٱلرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿١٣٤﴾ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ ٱلرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴿١٣٥﴾ فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُواْ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴿١٣٦﴾ وَأَوْرَثْنَا ٱلْقَوْمَ ٱلَّذِينَ كَانُواْ يُسْتَضْعَفُونَ مَشَٰرِقَ ٱلْأَرْضِ وَمَغَٰرِبَهَا ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا ۖ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ٱلْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ بِمَا صَبَرُواْ ۖ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُۥ وَمَا كَانُواْ يَعْرِشُونَ ﴿١٣٧﴾ وَجَٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ فَأَتَوْاْ عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴿١٣٨﴾ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾ قَالَ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِيكُمْ إِلَٰهًا وَهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿١٤٠﴾ وَإِذْ أَنجَيْنَاكُم مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ۖ يُقَتِّلُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ۚ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَاءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿١٤١﴾ ۞ وَوَاعَدْنَا مُوسَىٰ ثَلَاثِينَ لَيْلَةً وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ ﴿١٤٢﴾ وَلَمَّا جَاءَ مُوسَىٰ لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ قَالَ رَبِّ أَرِنِي أَنظُرْ إِلَيْكَ ۚ قَالَ لَن تَرَانِي وَلَٰكِنِ انظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي ۚ فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا ۚ فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٤٣﴾ قَالَ يَا مُوسَىٰ إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسَالَاتِي وَبِكَلَامِي فَخُذْ مَا آتَيْتُكَ وَكُن مِّنَ الشَّاكِرِينَ ﴿١٤٤﴾ وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا ۚ سَأُرِيكُمْ دَارَ الْفَاسِقِينَ ﴿١٤٥﴾ سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَإِن يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ﴿١٤٦﴾ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤٧﴾ وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِن بَعْدِهِ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ ۚ أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا ۘ اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ﴿١٤٨﴾ وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا قَالُوا لَئِن لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿١٤٩﴾

الأعراف: ۱۳۰ - ۱٤۹

## مناسبت او تړاو:

لکه څرنګه چي د حضرت موسی کليم الله مبارزه له فرعون طاغي سره له عبرتونو او پندونو ډکه وه څکه يې په تفصيل سره نورآيتونه هم کوم چي ده غو عذابونو اوربړونو بيان پکې وو چي دفرعون په قوم باندي راغلي وو راوړل هغه چي الله جل جلاله په دوی باندي دابتلاء او ازمويښت په توګه کاختي ( قحط ) طوفان، ملخ اونور مصيبتونه نازل کړي وو څکه دوی په کفرباندي ټينګار کاوو او دالله جل جلاله دآيتونو تکذيب ته يې ملاتړلې وه وروسته بيا هغه نعمتونه يادوي کوم چي الله پاک په بني اسرائيلو لورولي وو او ترټولو ستر ددوی ددښمن هلاکول وو اوددوی له بحر څخه په امن او سلامتيا پوري ايستل وو.

## لغتونه:

(السنين) دسنة جمع او وچکالي ، کاختي ته ويل کېږي ( يطيّروا ) بدفال نيول چي په اصل کي له ( طيرة ) څخه اخيستل شوی ده غه معنا د مرغانو ربړول دی اوبيا په بدفالي کي استعمال شو ( طوفان) هغه ورانونکی سېلاب (القمل) هغه وړوکي حشرات چي غلې داني له کاره باسي ( الرجز) عذاب او ( رجس) په سين سره پليدي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوکله کله هغه هم دعذاب په معنااستعمالیږي ( الیم) دردناک ( یعکفون) عکوف په یوځېزباندي ټینګ دریدل اوهغه خپلول ( متبر) هلاکونکی له مینځه وړونکی ( صعقا)بې هوښه ویل کېږي (صعق الرجل ) کله چي بې سده (بیهوښه ) شي

تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ أَخَذْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ بِٱلسِّنِينَ ﴾ ( اوخامخاپه تحقیق نیولي وو موږ قوم دفرعون په کلونو دقحطي سره ) لام دقسم لپاره توطئه ده یعني قسم دی چي خامخاپه تحقیق موږ ازمویلي وو فرعون اوقوم یې په کاختي ،وچکالي سره ﴿ وَنَقْصٍ مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ ﴾ ( اوپه نقصان سره (دمېوو ) یعني اوازمویلي موو دمېوو په ورکېدلو له جهته دډېروآفاتو مفسرین کرام وایې چي دخرماپه غوټه ونه کي به یوازي یوه دانه خرماخرېده (١) ﴿ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴾ ( دپاره ددې چي دوی پند واخلي ) یعني ښایې چي دوی پند واخلی زړونه یې نرم شي ځکه سختي اومشکلات زړه نرموي اوووېره پیداکوي بیاالله تعالی فرمایې چي له دې سر ه سره دوی نور هم کفرزیات اوسرغړونه یې ډېره شوه ﴿ فَإِذَا جَآءَتْهُمُ ٱلْحَسَنَةُ قَالُوا۟ لَنَا هَٰذِهِۦ ﴾ ( نوکله چي به راغله دوی ته فائده ( پراخي) نو ویل به دوی چي موږلره هم داده ) یعني موږ ددې مستحق اووریودامونږکمرغه کوي ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا۟ بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ ﴾ ( اوکه به ورسېدله دوی ته کومه بدفالي نوبه یې په موسی علیه السلام اوهغه چاچي ووبه ورسره ( له مسلمانانو ) بدفالي نیوله . یعني داچي دادموسی اوده دپلویانو شګون دی الله پاک ددوی په ردکي فرمایې: ﴿ أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمْ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ( خبردارشئ بېشکه هم داخبره ده چي سبب دبدفالی ددوی په نزد (الله دي) یعني څه چي دوی ته رسېږي له خیراوشرڅیني داټول دالله تقدیر اوفیصله ده نه دموسی په بدفال نیولو. ابن عباس رضی الله عنه وایې چي: هرڅه دالله له لوري دي ددوی بدفالي دالله له تقدیراو حکم څخه دی(٢) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ( ولکن زیات ددوی نه پوهېږي ) یعني په دې نه پوهېږي چي داکاختي اونورمصائب اوازموینښتونه ددوی دګناهونوپه سبب دي دموسی علیه السلام له شامته نه دي ﴿ وَقَالُوا۟ مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِۦ مِنْ ءَايَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴾ او ویل به دوی ( موسی ته ) هرشی چي راوړې ته موږته له معجزې څخه لپاره ددې چي جادو وکړې پرموږباندي په هغه سره نونه یوموږستاتصدیق کونکي (په نبوت ) یعني دفرعون قوم موسی علیه السلام ته وویل که ته هرڅومره معجزاتي موږته وښیې چي له دې لاري مو وګرزوې موږبه تاباورنلرو. زمخشري وایي: که ته وپوښتنې چي څرنګه دوی معجزه وبلله پداسي حال کي چي وایې ﴿ لِتَسْحَرَنَا بِهَا ﴾ یعني چي جادووکړې پرموږ ؟ زه وایم چي دوی په عقیدوي توګه معجزه نه ګڼله خودملندو اوریشخند لپاره یې ورته

---

(١) الطبري ١٣/ ٤٢
(٢) روح المعاني ٩/ ٣٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



معجزه وویل(۱) الله تعالی فرمایي: ﴿ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلطُّوفَانَ ﴾ (نوو لېږل موږ پردوی طوفان) یعني سخت باران مو ورباندي واوراوو چي هغوی پکي غوپه اوتږدي وو هلاک شي. ابن عباس رضی الله عنه وایي: طوفان هغو ډېروباراونونو ته چي زیانونه یې اړوي او کښتونه یې له مینځه وړي ویل کېږي(۲) ﴿ وَٱلْجَرَادَ ﴾ اوملخان (چي ددوی مېوې کښتونه یې خوړل آن تردې چي ددوی جامې یې لاوخوړې ﴿ وَٱلْقُمَّلَ ﴾ اوسپږي، یاحشرات کوم چي ددوی هغه له ملخانوپاتي غلې دانې یې سوری کولې اوچابیاویلي چي دغه مشهوري سپږي مراددي چي دکالیواوپوستکیوترمینځ به یې ددوی بدن خبښل ﴿ وَٱلضَّفَادِعَ ﴾ اوچونګښي (آن تردې چي کوټې او خوراکونه یې ځیني ډک شول کله چي به یوه خبري کولې چونګښي به یې خولې ته ورټوپ وهل ﴿ وَٱلدَّمَ ﴾ اووینې یعني اوبه یې ویني وګرزېدلې که به یې له کوهي اویاروډخه اوبه ښبلې هغه به وینې وې ﴿ ءَايَٰتٖ مُّفَصَّلَٰتٖ ﴾ حال دا (چي دغه شیان) واضح دلائل وو سره بېل بېل کړی شوي (چي پکي پندونه اووعظونه نغښتي وو خوله دې سره دوی دایمان له راوړلو تکبروکړ ﴿ فَٱسْتَكْبَرُواْ وَكَانُواْ قَوْمٗا مُّجْرِمِينَ ﴾ نوتکبروکړدوی (دایمان له راوړلو) اودوی مجرمین (ګنهکاران) قوم وو (چي جرم یې وروستي حدته رسېدلی وو) ﴿ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ ٱلرِّجْزُ قَالُواْ يَٰمُوسَى ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ ﴾ (اوکله چي واقع شوپردوی (فرعونیانو) کوم عذاب ویل به دوی اې موسی دعاوکړه لپاره زموږ له رب خپل څخه په هغه چي وعده یې کړي وه له تاسره) چي له موږڅخه دغه عذاب لیري کړي په هغه حق الله چي ته یې پیغبر نازولی یې. زمخشري وایي: معنادا چي زموږغوښتنه وکړه په دعاکولو څکه له تاسره دالله عهد (ژمنه) اودنبوت کرامت شته(۳) ﴿ لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا ٱلرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ قسم دی خامخاکه لېري کړتاله موږڅخه دغه عذاب نوخامخاموږبه ایمان راوړوهرو مروبه تااوخامخابه ولېږو له تاسره بني اسرائیل) هغه چي دوی خپل چوپړیان جوړکړي وو داهانت په سپکوکارونویې سپکول ﴿ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ ٱلرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴾ (نوکله چي لیري کړموږله دوی دغه عذاب ترهغې) نېټې پورې چي دوی رسېدونکي وو هغې ته نابېره (ناڅاپه) دوی هغه وعده ماته کړه) یعني کله چي دموسی علیه السلام ددعاپه برکت ترهغه وخته پورې چي دوی به خامخاورتلو عذاب ځني پورته شونویې خپلې وعدې ماتي اوپه کفرباندې یې ټینګاروکړ. ابن عباس رضی الله عنه وایي: چي له دغه (أجل) وخت څخه دډوبېدلووخت مراددی ﴿ فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِي ٱلْيَمِّ ﴾ پس اراده دبدل اخیستو وفرمایله موږ له دوی څخه نوغرق کړل موږدوی په دریاب کي ﴿ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُواْ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴾ په سبب ددې چي دوی به تکذیب کاووپه آیتونوزموږ اودوی له هغوځیني غافلان وو ﴿ وَأَوْرَثْنَا

(۱) الکشاف ۲ / ۱۴۷
(۲) مختصر ابن کثیر ۲ / ۴۵
(۳) الکشاف ۲ / ۱۴۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ٱلْقَوْمَ ٱلَّذِينَ كَانُوا۟ يُسْتَضْعَفُونَ مَشَـٰرِقَ ٱلْأَرْضِ وَمَغَـٰرِبَهَا ﴾ (او وارثان كړل موږ هغه قوم چې كمزوري
ګڼل كېدل مشرقي او مغربي ټولې ځمكې موور كړه كه يې ختيځ ,وو او كه لوېديځ ﴿ ٱلَّتِى بَـٰرَكْنَا فِيهَا ﴾ هغه چې
موږ پكې بركت اچولى وو (په مېوو او غلو دانو) ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ٱلْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (او پوره
شوه كلمه درب ستا چې نېكه ده پر بني اسرائيلو ) يعني دالله جل جلاله رښتوني وعده وفاته ورسېده چې بني
اسرائيل به يې پر دښمن بريالي او په ځمكه كي به يې وارثان كړل. طبري وايي چي : دالله جل جلاله د( كلمة الحسنى )
څخه مراد دالله تعالى قول دى چې فرمايي: ﴿ وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً
وَنَجْعَلَهُمُ ٱلْوَٰرِثِينَ ﴾ القصص: ٥ [1] ﴿ بِمَا صَبَرُوا۟ ﴾ په سبب دصبر كولو د دوى په ربړونو او تكليفونو باندي ,

﴿ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُۥ وَمَا كَانُوا۟ يَعْرِشُونَ ﴾ (او خرابې كړې موږ ( هغه كلكي
ودانۍ ) چې ودانولې به فرعون او قوم دده او ( هغه ) چې دوى به لوړولې ) يعني موږ هغه مانۍ او قصرونه چې
فرعون او دهغه تېر به كلكي جوړولې او هغه باغونه او كښتونه چې به يې پورته كول ټول خراب كړل او پردې خاى
باندي دفرعون او فرعونيانو كيسه پاى ته رسېږي او دبني اسرائيلو په باب وينا پيلېږي چې څومره ستر نعمتونه
الله ورباندي لورولي او څومره لويي معجزاتي او آيتونه يې ورليدلي دي دا ټول دخپل پيغمبر عليه السلام

دداديني او تسلا لپاره نو الله تعالى فرمايي: ﴿ وَجَـٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ ﴾ او تېر كړل موږ بني اسرائيل له بحره
چې هغه دقلزم بحر او ستنى د سويس خليج دى ﴿ فَأَتَوْا۟ عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰٓ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ﴾ نو راغلل دوى پر يوه
قوم چې تل به دبتانو په عبادت ولاړوو. ﴿ قَالُوا۟ يَـٰمُوسَى ٱجْعَل لَّنَآ إِلَـٰهًا كَمَا لَهُمْ ءَالِهَةٌ ﴾ (نو وويل (بني
اسرائيلو ) اې موسى جوړ كړه موږ لره هم يو معبود لكه چې دوى لره معبودان دي ) يعني زموږ لپاره هم يو بت وټاكه
چې عبادت يې كوو لكه دوى چې يې كوي. ابن عطيه وايي: ظاهر خو دادى چې دوى كوم كار وليد هغه يې ښه وګڼل
او خوښ يې شو نو ويې غوښتل چې دموسى په شريعت كي هم داسي وي چې دوى دهغوى په واسطه الله ته نژدې
كېږي او كه داسي نه وي نو داليري خبره ده چې دوى دي له موسى عليه السلام څخه داسي څه غوښتي وي چې دوى
يو ازي دهغه عبادت وكړي [2] ﴿ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴾ (وويل موسى ) بېشكه تاسي داسي يو قوم يې چې نه
پوهېږئ ) يعني تاسو دالله په عظمت نه پوهېږئ چې هغه له شريک او مثل نه منزه او پاک دى. زمخشري وايي چې
موسى عليه السلام تعجب وكړ سره له دې چې دوى ستر آيت او لويه معجزه وليد له خو بيايي هم داسي غوښتنه
وكړه نو ځكه يې دوى په تاكيد سره مطلقا جاهلان وبلل او تر دې ستر او بد جهل او ناپوهي هډو نشته [3] ﴿ إِنَّ هَـٰٓؤُلَآءِ
مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ ﴾ (بېشكه دغه ( بت پرستان) هلاک او مات دي ) هغه دين چې دوى په هغه كي دي) چې
دبتانو عبادت كوي ﴿ وَبَـٰطِلٌ مَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ (او باطل دى هغه عمل چې دوى يې كوي ) ځكه دوى دهغه

---

[1] الطبري ١٣/ ٧٧
[2] البحر ٤ / ٣٧٨
[3] الكشاف ٢ / ١٥٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چاعبادت کوي چي هغه دعبادت وړ اومستحق نه دي ﴿ قَالَ أَغَيۡرَ ٱللَّهِ أَبۡغِيكُمۡ إِلَٰهٗا وَهُوَ فَضَّلَكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ وويل( موسی ) آیابې له الله ولټوم زه تاسي ته (بل ) معبود حال داچي هم دغه الله بهتري درکړي تاسي ته پرګردو خلګود( زمانې خپلي ) یعني آیازه پرته له الله تاسو ته بل معبود ولټوم حال داچي دغه الله تاسو په نوروخلګوباندي په زیاتونعمتونونازولي یاست طبري وايې معناداچي تاسوبې دخپلي زمانې په خلګوبهترګرزولي يې(۱) ﴿ وَإِذۡ أَنجَيۡنَٰكُم مِّنۡ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ يَسُومُونَكُمۡ سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِ ﴾ اويادکړئ) هغه وخت چي نجات درکړی وو موږ( نیکونود ) تاسي ته له تابعانودفرعون چي رساووبه يې تاسي ته سخت عذاب یعني اې بني اسرائیلوهغه نعمتونه دریادکړئ چي تاسوبې دفرعون اودهغه دپلویانو له عذاب څخه چي تاسو ته يې درکاوو وژغورلې اوبیايې دهغه عذاب تفسیر داسي وکړ: ﴿ يُقَتِّلُونَ أَبۡنَآءَكُمۡ وَيَسۡتَحۡيُونَ نِسَآءَكُمۡ ﴾ چي وژل به يې زامن ستاسي اوژوندی به يې پرېښودې ښځي ستاسي ( لونې چي په سپکوسپاندو خدمتونوبې وګماري ) ﴿ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَظِيمٞ ﴾ (اوپه دغه (عذاب ) کي ازمېښت وو له (طرفه د) رب ستاسي دېرلوی څخه) یعني په دغه عذاب کي دالله له لوري ستره ابتلاواو ازموېښت وو چي تاسوبې څني وژغورلې آیاتوسوشکرنه کوئ ؟ ﴿ ۞وَوَٰعَدۡنَا مُوسَىٰ ثَلَٰثِينَ لَيۡلَةٗ وَأَتۡمَمۡنَٰهَا بِعَشۡرٖ فَتَمَّ مِيقَٰتُ رَبِّهِۦٓ أَرۡبَعِينَ لَيۡلَةٗۚ ﴾ (او( یادکړه هغه وخت چي ) وعده کړي وه موږ له موسی سره دېرش شپې اوبیاپوره کړې موږ هغه (دېرش شپې ) په لسو( نورو ) نوبشپړه شوه وعده درب دده څلوېښت شپې )یعني کله چي موږ له موسی سره دمناجات وعده کړي وه اوهغه موده بشپړه شوه نومناجات وشو زمخشري وايې چي: روایت کېږي چي موسی علیه السلام بني اسرائیلوته په مصرکي داوعده ورکړي وه که چېري الله ددوی دښمن هلاک کړنو دوی ته به دالله له لوري داسي کتاب راوړي چي پکې اوامر اونواهي څرګندوي اوکله چي فرعون اوقوم يې هلاک شو نوموسی علیه السلام الله ته سوال وکړچي دغه کتاب ورکړي الله جل جلاله هغه ته ددېرشو روځو نیولو امروکړاوداد( ذی القعدې ) میاشت وه کله چي يې دېرش روځې بشپړي کړې نودخپلي خولې بوی خوند ورنکړ اومسواک يې وواهو الله جل جلاله وحی ورته وکړه چي آیاته پدې خبرنه يې چي ماته دروژتي دخولې بوی له مشکوڅخه هم خوشبویه دی ؟ نوالله جل جلاله ورته فرمایل چي لس ورځي د( ذی الحجې ) هم نوري روژې ونیسي ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَٰرُونَ ٱخۡلُفۡنِي فِي قَوۡمِي ﴾ اووویل موسی خپل ورور هارون ته چي خلیفه اوسه زماپدې قوم کي ( ترڅوزه راځم) ﴿ وَأَصۡلِحۡ وَلَا تَتَّبِعۡ سَبِيلَ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ﴾ اواصلاح کوه ( سموه حال ددوی ) اومتابعت مکوه دمفسدانو دلاري (چي ګناهګاران اوپه ځمکه کي فسادکوي ) ﴿ وَلَمَّا جَآءَ مُوسَىٰ لِمِيقَٰتِنَا وَكَلَّمَهُۥ رَبُّهُۥ ﴾ اوکله چي راغی موسی هغه موعود وخت زموږته اوکلام وکړل له ده سره رب دده ( بې واسطې) ﴿ قَالَ رَبِّ أَرِنِيٓ أَنظُرۡ إِلَيۡكَۚ ﴾ نووویل موسی اې ربه زما ! وښیه ماته ( مقدس ځان) چي زه وګورم تاته. قرطبي وايې: کله چي يې الله جل جلاله کلام واورېدو نولېدلوته يې تلوسه شوه اودکتلوخواست يې وکړ(۲) ﴿ قَالَ لَن تَرَىٰنِي وَلَٰكِنِ ٱنظُرۡ إِلَى ٱلۡجَبَلِ فَإِنِ ٱسۡتَقَرَّ مَكَانَهُۥ فَسَوۡفَ

---

(۱) الطبري ۸۴/۱۳

(۲) القرطبي ۷۸/۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تَرَىٰنِي ﴾ وويل: ( الله) له سره به ونه وينې ته ما ( په دنياكي ځكه چي دغه كمزوري بشري بنيه داتوان نلري ) وليكن گوره ته (دې ) غره ته كه هغه پخپل ځاى كي قرار پاتي شو نوژربه ته هم ماووينې ) يعني زه به دخپل جمال يوه بڅركى تجلي پدې غره وغورځوم چي ترتاخورا قوي دى كه چېرې هغه پخپل ځاى آرام پاتې شو اوونه خوځېدو نوژردى چي مابه ووينې اوكه نه دغه بشري وجود ستا زمادليدلوتوان نلري ﴿ فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُۥ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُۥ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا ﴾ ( نوكله چي ( بلاكيف ) تجلي وكړه رب دده غره ته نويې وگرځاوه هغه ( غر ) ذرې ذرې اوپرېوت موسى بېخوده ) يعني كله چي دالله جل جلاله نور اوخلا دكوچنى گوتي ديوبند په اندازه په غره ولوېده نوغر توته توته شو اوموسى عليه السلام له دېره هيبته بېهوښه پرېوت . ابن عباس رضى الله عنه وايي الله پاک دخمچي گوتي ديوبند په اندازه خپله تجلي په غره واچوله اوغر له خاوروسره برابرشو موسى عليه السلام بې سده پرېوت اوپه حديث شريف كي راځي ( فساخ الجبل ) يعني غر پوتېن خاوري شو ﴿ فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَـٰنَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ نوكله چي په خودشو( موسى) وويل بې چي پاكي ده تاته (ياالله له ټولوعيبونو ) توبه مي وايسته تاته اوزه اول دمؤمنانويم ) ستاپه عظمت اوجلال باندي ) يعني كله چي په سدراغى نويې وويل: چي ربه تالره پاكي اوتنزيه ده چي ځوک دي په دنياكي ووينې زماله خپلي غوښتني توبه ده ﴿ قَالَ يَـٰمُوسَىٰٓ إِنِّى ٱصْطَفَيْتُكَ عَلَى ٱلنَّاسِ بِرِسَـٰلَـٰتِى وَبِكَلَـٰمِى ﴾ وفرمايل: (الله) چي مه خفه كېږه په نه ليدلوزما اونعمتونه مي يادكړه ) اې موسى ! بېشكه ماغوره پيداكړى يې پرټولوخلكو( دزمانې ستا) په پيغامونو خپلواوپه كلام خپل سره ( بې له واسطې ) ﴿ فَخُذْ مَآ ءَاتَيْتُكَ ﴾ نوونيسه هغه چي دركړي مې دي تاته (له شرف دنبوت اوحكمت څخه ) ﴿ وَكُن مِّنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ ﴾ اواوسه له شكرايستونكو ( په هغه سترو نعمتونو چي الله دركړي دي ) ابوالسعودوايي : چي دآيت شريف رو داسي دى چي عليه السلام ته يې داد وركړى وي چي كه دليدلوهيله دي ترسره نه شوه خونورداسي سترنعمتونه مي دركړي چي هيچاته مي نه دي وركړي هغه غنيمت وگڼه اوتل ترتله يې شكركاره.(۱) ﴿ وَكَتَبْنَا لَهُۥ فِى ٱلْأَلْوَاحِ مِن كُلِّ شَىْءٍ ﴾ ( اوليكلي وو موږدغه (موسى ) ته په ( تختودتورات) له هر( ديني ) شي څيني پند ) يعني ليكلي وموږ ده ته هرهغه څېزچي بني اسرائيلوورته ددين په اموروكي له مواعظو اوتفصيلي احكامود حلال اوحرامو اړه درلوده ﴿ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ ﴾ ( پنداوتفصيل لپاره دهرشي) يعني داچي ورباندي پندواخلي اودټولو شرعي احكامو تكاليفوتفصيل پكې وو ﴿ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ ﴾ پس واخله دا( تختې دتورات) په بشپړ زورسره ) يعني په كوښښ اوزيارسره لكه چي داولوالعزمو شان وي هغسي يې واخله ﴿ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا۟ بِأَحْسَنِهَا ﴾ (اوحكم وكړه قوم خپل ته چي ونيسي ( عمل وكړي ) په دېرغوره احكامو ) ددې) يعني بني اسرائيلوته حكم وكړه په هڅونه ددې چي هغه غوره اوافضل واخلي يعني په عزيمتونوعمل وكړي نه په رخصتونو لكه چي عفو ترقصاص بهتره ده اوياصبراوزغم تركسات اخيستلوښه ده لكه چي الله فرمايې: ﴿ وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ﴾

(۱) ابوالسعود۲/ ۱۹۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الشوری: ۴۳ ابن عباس رضی الله وایي: چي موسی علیه السلام ته امر کړل شوی وو چي هغه سخت احکام غوره کړي چي قوم ته یې ورباندي امر شوی وو ﴿ سَأُوْرِيكُمْ دَارَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴾ ( ژر به وښیم تاسي ته دفاسقانو دهستوګني ځای ) چي فرعون او قوم یې وو هغوی څرنګه دخپل فسق په سبب هلاک شول نو له هغوی عبرت واخلئ دهغوی په شان مه کېږئ دهغوی ورانې ماني، دعبرت او پند اخیستلو سبب دی ﴿ سَأَصْرِفُ عَنْ ءَايَٰتِيَ ٱلَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ ( ژر به واړوم له آیتونو خپلو څخه هغه کسان چي تکبر کوي په ځمکه کي په ناحقه ) یعني زه به منع کړم هغه متکبرین دځمکي ،له پوهېدلو په آیتونو زما نو دوی به پکي فکر او سوچ نکوي ددوی په زړونو به دتکبر له وجهي مهر ولګوم او دا به ددوی دتکبر په سبب وي . زمخشري وایي : چي پدې کي دمخاطبینو لپاره تهدید او انذار دی چي دهغو متکبرینو عاقبت او بده خاتمه دي وګوري چي دالله په آیتونو یې لوبې او تکبر کاوو ایمان یې نه راوړ ترڅو دوی دهغوی په شان لاره ونه نیسي([1]) ﴿ وَإِن يَرَوْا۟ كُلَّ ءَايَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا۟ بِهَا ﴾ او که ووینی هر قسم آیت ( نو ) نه راوړي ایمان پر هغو ) یعني نو که ووینی هر قرآني آیت له هغو نازل شو و آیتونو څخه او یا هره رباني معجزه ووینی خو ایمان ورباندي نه راوړي. ﴿ وَإِن يَرَوْا۟ سَبِيلَ ٱلرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ﴾ او که ووینی لاره درشد ( سمه لاره دهدایت ) نو نه نیسي دوی هغه لاره ( خپله ) ﴿ وَإِن يَرَوْا۟ سَبِيلَ ٱلْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ﴾ او که ووینی دوی لاره دګمراهي نو نیسي دوی هغه لاره ( دتګ خپل او پرې روان وي ؛ لکه چي الله بل ځای فرمایي: ﴿ فَهَدَيْنَٰهُمْ فَٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْعَمَىٰ عَلَى ٱلْهُدَىٰ ﴾ [فصلت: ۱۷ ] ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ دغه (ګرزېدل له سمي لاري ) په سبب ددې چي دوی نسبت ددروغو کړی وو آیتونو زموږ ته ﴿ وَكَانُوا۟ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴾ ( او وو دوی له هغو( آیتونو ) څخه بې خبره ) یعني دوی له هغو آیتونو څخه چي ددوی دنېکمرغي لامل وو بې خبره وو چي فکر یې پکي نه کاوو او نه یې ورته پاملرنه کوله ﴿ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ او هغه کسان چي نسبت ددروغو یې کړی آیتونو زموږ ته یعني دالله منزل آیتونو څخه منکر وو ﴿ وَلِقَآءِ ٱلْءَاخِرَةِ ﴾ او له ملاقات دورځي دآخرت څخه یعني په قیامت او بعث ایمان نلري ﴿ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ ﴾ ( باطل شول عملونه ددوی ) یعني هغه ښه اعمال چي په دنیاکي به یې کول لکه خپلوي ( صله رحمي ) پالل صدقه ورکول له خلګو سره نېکي او احسان کول او نور دهغوی ثواب له مینځه لاړ ځکه چي دوی ایمان نلري ﴿ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ نشي جزا ورکولی دوی ته مګر جزا دهغه عمل چي دوی به (په دنیا کي ) کاوو یعني آیا دوی ته پرته له هغو اعمالو چي دوی کول دبل شي عذاب او یا ثواب ورکول کېږي ؟ ﴿ وَٱتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِنۢ بَعْدِهِۦ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُۥ خُوَارٌ ﴾ او ونیو ( جوړ کړ ) قوم دموسی وروسته ( له تللو ) دده ( میقات ته ) له ګانو خپلو خوسی مجسم چي ده لره غږ وو لکه دخوسي ( رمباړي) حافظ ابن کثیر وایي چي الله پاک دبني اسرائیلو دګمراهانو خبر ورکوي هغه دا چي دوی دهغه خوسي عبادت وکړ کوم چي سامري دوی ته دخوسي په شکل مجسم

---

[1]) الکشاف ۲ / ۱۵۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړ اودهوادتنوتلولپاره يې چم وکړ داسي چي غرځيني راووت لکه دغوايي رمباړي ( غو ) (۱) اود ﴿ مِنۢ بَعۡدِهِۦ ﴾ معناداچي وروسته له تللودموسی دالله تعالی دمناجات لپاره دطورغره ته ﴿ أَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّهُۥ لَا يُكَلِّمُهُمۡ وَلَا يَهۡدِيهِمۡ سَبِيلًاۘ ﴾ (آيانه ليدل ( نه پوهېدل ) دوی چي بېشکه دغه ( خوسی ) خبري له دوی سره نه کوي اونه دوی ته ښيي هيڅ لاره ) استفهام دتوبيخ اوتکولولپاره دی يعني څرنګه دوی خوسی دعبادت لپاره غوره اوپه الوهيت يې ومانو سره له دې په هغه کي هيڅ دخالق اورازق ذات صفتونه نشته هغه په خبرو کولو قدرت اوتوان نلري اونه دوی دنېکمرغي لاري ته رهبري کولای شي نوڅرنګه يې خپل معبودونياکه ؟! ﴿ ٱتَّخَذُوهُ وَكَانُواْ ظَٰلِمِينَ ﴾ نوونيودوی هغه خوسی ( په خدايي سره ) اووو دوی ظالمان يعني دوی دخوسي عبادت وکړ هغه يې په خدايي ومانو پخپلوځانونوظالمان وو ځکه چي يې موقعه کاريې وکړد ﴿ ٱتَّخَذُوهُ ﴾ لفظ په مکرر ډول راوړل شو چي ددوی زياته تشنيع اوبدي څرګنده شي ﴿ وَلَمَّا سُقِطَ فِيٓ أَيۡدِيهِمۡ وَرَأَوۡاْ أَنَّهُمۡ قَدۡ ضَلُّواْ ﴾ اوکله چي پښېمانه شول ( په عبادت دخوسي اوپوه شول چي بېشکه دوی په تحقيق ګمراه شوي دي يعني ددوی ګمراهي داسي بربنده څرګنده شوه لکه چي دسرپه سترګويې وليده ﴿ قَالُواْ لَئِن لَّمۡ يَرۡحَمۡنَا رَبُّنَا وَيَغۡفِرۡ لَنَا ﴾ نووې ويل قسم دی خامخا که پرموږ زموږ رب مهرباني ونکړي اوموږ ته ښښنه ونکړي ﴿ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴾ نوخامخابه شوموږهرو مرو له زيانکارانو . ابن کثير وايي : دغه ددوی پخپله ګناه اقرار اودالله لوري ته پناه وروړل دي (۲).

## بلاغت:

۱- پدې کلماتوکي چي: ﴿ فَإِذَا جَآءَتۡهُمُ ٱلۡحَسَنَةُ ﴾ دحسنة اوسيئة ترمينځ دطباق صنعت دی لکه چي د ﴿ يَطَّيَّرُواْ ﴾ او ﴿ طَٰٓئِرُهُمۡ ﴾ ترمينځ اشتقاقي جناس راغلی اودغه دواړه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

۲ - ﴿ وَدَمَّرۡنَا مَا كَانَ يَصۡنَعُ ﴾ له ماضي څخه پدې کلام کي مضارع ته عدول راغلی ترڅو انځوريې دمخاطب په ذهن کي راحاضر کړي اوهمداراز مثال يې ﴿ وَمَا كَانُواْ يَعۡرِشُونَ ﴾ دی چي ددواړواصل داچي (ماصنعوا وماعرشوا ) وو.

۳ - پدې کلام کي چي الله تعالی فرمايي : ﴿ إِنَّكُمۡ قَوۡمٞ تَجۡهَلُونَ ﴾ دلته يې د( تجهلون) لفظ راوړی اود(جهلتم ) يې ندی ويلی ترڅو ددې اشعار اوخبرتياوکړي چي دغه ددوی په خټه اوغريزه کي نغښتی په هيڅ وخت(ماضي اومستقبل) کي څني بېلېدونکی نه دی (۳)

---

(۱) مختصر ابن کثير ۲ /۵۱

(۲) مختصر ابن کثير ۲ /۵۱

(۳) البحر المحيط ۴ /۳۷۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴ - ﴿ سَأُوْرِيكُمْ دَارَ ٱلْفَـٰسِقِينَ ﴾ دلته له غیاب څخه حضور ته د التفات صنعت راغلی او پدې کې د هڅوني مبالغه ده تر څو د صالحانو په لاره ولاړشي اصل خو داوو چې راغلي وای ( سأریهم ) خو هسي نه دي شوي.

۵ - پدې کلام کې چې: ﴿ وَلَمَّا سُقِطَ فِىٓ أَيْدِيهِمْ ﴾ کنایه راغلي ځکه هغه څوک چې خورا زیات پښېمانه وي نو پخپلو لاسونو خولې لګوي او هغه چيچي.

۶ - د ﴿ مَشَـٰرِقَ ﴾ او ﴿ وَمَغَـٰرِبَهَا ﴾ ترمينځ د طباق صنعت دی.

**تنبيه:**

د اهل سنت مذهب دادی چې مؤمنان به پروردګار په آخرت کې ویني او معتزله له دغي عقیدې څخه انکار کوي او دلیل همدا آیت بولي چې الله فرمايي: ﴿ لَن تَرَىٰنِى ﴾ او دوی لره پدې آیت کې دلاس نیوي ځای نشته بلکه هغه د اهل سنت والجماعة لپاره دليل دی چې د رؤيت امكان شته ځكه كه چېرې رؤيت محال او ناشونی وای موسی علیه السلام به یې غوښتنه نه کولای چې انبیاء علیهم السلام په هغه څه چې هغه ناروا یا مستحیل وي ښه پوهیږي او که چېرې مستحیل وای الله پاک به په خواب کې ورسره زجر او سختي کړې وای لکه چې نوح علیه السلام ته یې وفرمایل: ﴿ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ۖ إِنِّىٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْجَـٰهِلِينَ ﴾ هود: ۴۶ د الله جل جلاله له دیدار او رؤيت څخه په دنیاکي ممانعت د بشري کمزوري له امله دی مجاهد وایي چې: ﴿ لَن تَرَىٰنِى ﴾ معناداچي ته توان زما د ليدلو نلرې خوزه به خپله تجلا غره ته چې تر تا ډېر قوي او سخت دی مخامخ کړم که هغه یې توان ولاره او پرځای پاتې شو زما د هیبت زغم پکې وو نو به دا شوني او ممکن شي چې ته یې ووینې او که غره توان ونلرل ته یې بیا هیڅکله توان نلرې نو په دې وجه الله پاک غرد موسی علیه السلام لپاره مثال وګرزاوو او مطلقاً یې رؤيت مستحیل ونه باله او په آخرت کې خو د الله جل جلاله په دیدار او رؤیت باندې پخپله د الله جل جلاله کتاب قرآن عظیم الشان شاهدي ورکوي چې ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾ القیامة: ۲۲ - ۲۳ نو له مبتدع څخه پرته بل هیڅوک په جنت کی له الهی دیداره انکار نه کوي

**فائده او نکته:**

کله چې موسی کلیم الله صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله خبري واورېدې نو د رؤيت شوق یې پیدا شو ځکه د حبیب په کلام خوند اخیستل د هغه د لیدلو تلوسه زیاتوي

**لطیفه:**

نېکمرغي او بدمرغي یعني سعادت او شقاوت د الله جل جلاله په ید ( قدرت کې دي موسی بن عمران فرعون وروزل او مؤمن وو او سامري موسی چې جبرائیل روزلی وو هغه کافر شو نو دامین روزنه او پالنه سامري موسی ته ګټه ونه رسوله او همدا راز د لعین فرعون پالني حضرت موسی علیه السلام ته تاوان ونشو رسولای ځینو شاعرانو همدغه معنا داسي ارزولي ده:

اذ المرء لم يخلق سعيدامن الأزل • فقدخاب من ربى وخاب المؤمل

فموسى الذى رباه جبريل كافر • وموسى الذى رباه فرعون مرسل

څوک چې ازلي نېکمرغه نه وي پیدا شوی نو د هغه روزونکی یې له سعادته او دی پخپله ناامیده او ناهیلی دی هغه موسی چې جبریل یې پالنه کوله کافر وو او هغه موسی چې فرعون یې روزنه کوله استازی او پیغمبر وو.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


## اللہ تعالی فرمایے:

﴿وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوْمِهِۦ غَضْبَٰنَ أَسِفًا قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِى مِنۢ بَعْدِىٓ ۖ أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ ۖ وَأَلْقَى ٱلْأَلْوَاحَ
وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُۥٓ إِلَيْهِ ۚ قَالَ ٱبْنَ أُمَّ إِنَّ ٱلْقَوْمَ ٱسْتَضْعَفُونِى وَكَادُوا۟ يَقْتُلُونَنِى فَلَا تُشْمِتْ بِىَ ٱلْأَعْدَآءَ وَلَا
تَجْعَلْنِى مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٥٠﴾ قَالَ رَبِّ ٱغْفِرْ لِى وَلِأَخِى وَأَدْخِلْنَا فِى رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿١٥١﴾
إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ ٱلْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾ وَٱلَّذِينَ
عَمِلُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ثُمَّ تَابُوا۟ مِنۢ بَعْدِهَا وَءَامَنُوٓا۟ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٥٣﴾ وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى
ٱلْغَضَبُ أَخَذَ ٱلْأَلْوَاحَ ۖ وَفِى نُسْخَتِهَا هُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ﴿١٥٤﴾ وَٱخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُۥ سَبْعِينَ رَجُلًا
لِّمِيقَٰتِنَا ۖ فَلَمَّآ أَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُم مِّن قَبْلُ وَإِيَّٰىَ ۖ أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلسُّفَهَآءُ مِنَّآ ۖ إِنْ هِىَ إِلَّا
فِتْنَتُكَ تُضِلُّ بِهَا مَن تَشَآءُ وَتَهْدِى مَن تَشَآءُ ۖ أَنتَ وَلِيُّنَا فَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَا ۖ وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْغَٰفِرِينَ ﴿١٥٥﴾ ۞ وَٱكْتُبْ لَنَا فِى
هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِى ٱلْءَاخِرَةِ إِنَّا هُدْنَآ إِلَيْكَ ۚ قَالَ عَذَابِىٓ أُصِيبُ بِهِۦ مَنْ أَشَآءُ ۖ وَرَحْمَتِى وَسِعَتْ كُلَّ شَىْءٍ ۚ
فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِنَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٥٦﴾ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِىَّ
ٱلْأُمِّىَّ ٱلَّذِى يَجِدُونَهُۥ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِى ٱلتَّوْرَىٰةِ وَٱلْإِنجِيلِ يَأْمُرُهُم بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَىٰهُمْ عَنِ ٱلْمُنكَرِ
وَيُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ ٱلْخَبَٰٓئِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَٱلْأَغْلَٰلَ ٱلَّتِى كَانَتْ عَلَيْهِمْ ۚ فَٱلَّذِينَ
ءَامَنُوا۟ بِهِۦ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَٱتَّبَعُوا۟ ٱلنُّورَ ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ مَعَهُۥٓ ۙ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿١٥٧﴾ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ
إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ۖ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ
وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٨﴾ وَمِن قَوْمِ
مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴿١٥٩﴾ وَقَطَّعْنَٰهُمُ ٱثْنَتَىْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا ۚ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ إِذِ
ٱسْتَسْقَىٰهُ قَوْمُهُۥٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ۖ فَٱنۢبَجَسَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ
مَّشْرَبَهُمْ ۚ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْغَمَٰمَ وَأَنزَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ ۖ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ۚ وَمَا
ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١٦٠﴾ وَإِذْ قِيلَ لَهُمُ ٱسْكُنُوا۟ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةَ وَكُلُوا۟ مِنْهَا حَيْثُ
شِئْتُمْ وَقُولُوا۟ حِطَّةٌ وَٱدْخُلُوا۟ ٱلْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيٓـَٰٔتِكُمْ ۚ سَنَزِيدُ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١٦١﴾
فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ ٱلَّذِى قِيلَ لَهُمْ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُوا۟
يَظْلِمُونَ ﴿١٦٢﴾ وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِى كَانَتْ حَاضِرَةَ ٱلْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِى ٱلسَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ
حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ ۙ لَا تَأْتِيهِمْ ۚ كَذَٰلِكَ نَبْلُوهُم بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴿١٦٣﴾

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَإِذۡ قَالَتۡ أُمَّةٞ مِّنۡهُمۡ لِمَ تَعِظُونَ قَوۡمًا ٱللَّهُ مُهۡلِكُهُمۡ أَوۡ مُعَذِّبُهُمۡ عَذَابٗا شَدِيدٗاۖ قَالُواْ مَعۡذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمۡ وَلَعَلَّهُمۡ يَتَّقُونَ ﴿۱۶۴﴾ فَلَمَّا نَسُواْ مَا ذُكِّرُواْ بِهِۦٓ أَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ يَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلسُّوٓءِ وَأَخَذۡنَا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ بِعَذَابِۭ بَـِٔيسِۭ بِمَا كَانُواْ يَفۡسُقُونَ ﴿۱۶۵﴾ فَلَمَّا عَتَوۡاْ عَن مَّا نُهُواْ عَنۡهُ قُلۡنَا لَهُمۡ كُونُواْ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ ﴿۱۶۶﴾ وَإِذۡ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبۡعَثَنَّ عَلَيۡهِمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ مَن يَسُومُهُمۡ سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِۗ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ ٱلۡعِقَابِ وَإِنَّهُۥ لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿۱۶۷﴾ وَقَطَّعۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أُمَمٗاۖ مِّنۡهُمُ ٱلصَّٰلِحُونَ وَمِنۡهُمۡ دُونَ ذَٰلِكَۖ وَبَلَوۡنَٰهُم بِٱلۡحَسَنَٰتِ وَٱلسَّيِّـَٔاتِ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ ﴿۱۶۸﴾ فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٞ وَرِثُواْ ٱلۡكِتَٰبَ يَأۡخُذُونَ عَرَضَ هَٰذَا ٱلۡأَدۡنَىٰ وَيَقُولُونَ سَيُغۡفَرُ لَنَا وَإِن يَأۡتِهِمۡ عَرَضٞ مِّثۡلُهُۥ يَأۡخُذُوهُۚ أَلَمۡ يُؤۡخَذۡ عَلَيۡهِم مِّيثَٰقُ ٱلۡكِتَٰبِ أَن لَّا يَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّ وَدَرَسُواْ مَا فِيهِۗ وَٱلدَّارُ ٱلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٞ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴿۱۶۹﴾ وَٱلَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِٱلۡكِتَٰبِ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُصۡلِحِينَ ﴿۱۷۰﴾

الأعراف: ۱۵۰ ـ ۱۷۰

## مناسبت:

لاتراوسه آیتونه دموسی علیه السلام له بني اسرائیلوسره یوځای کیسه بیانوي چي الله جل جلاله څومره زیات نعمتونه وربانده پېرزواودوی بیاڅومره زیات انکاراو سرغړونه وکړه اوهمداسي الله پاک د(اصحاب السبت) کیسه راوړي هغوی چي دشنبې په ورځ به یې دماهیانوښکار کاوواوالله ځني منع کړي وو بیاهغوی په بېزوګانو مسخ شول چي پدې کي دعبرت اوپند اخیستونکولپاره درس دی

## لغتونه:

(أسفا)سخته خواشیني اوقهرته وایي لکه چي ( رجل آسف) او( رجل اسیف) یعني خواشینی اوله قهره ډک سړی(ابن أم) اصل یې ( ابن أمی) وو اوپدې کي ترمي اومهرباني غوښتل پټ دي(تشمت) له شماتت څخه اخستل شوی اوهغي خوشحالي ته وایي چي بل انسان ته په غم رسېدلوترسره کېږي په حدیث شریف کي راځي (لاتشمت بی الاعدآء )(الرجفة) سختي زلزلې ته وایي(هدنا) موږتوبه ګارشو له (هاد، یهود) څخه اخیستل شوی چي معنایې رجوع اوتوبه ده(اصرهم) درانه تکالیف ددوی څکه امرهغه درندوالي ته وایي چي بارونکي له خوځېدلو پاتي کوي(الاغلال )د(غُل ) جمع اوهغه دسپینوزروطوق ته وایي چي په غاړه اویالاس کي غرونډی ، یالاسوندی وي (عزروه) چي دده تعظیم اومرسته یې وکړه(اسباط) دسبط جمع اوهغه لمسي ته وایي که دزوی له خواوي، یادلور وروسته یې بیادبني اسرائیلوپه توکمونو اوقبیلواطلاق شوی دی (تاذن) له ایذان څخه اخیستل شوی اودخبرتیا اواعلان په معناده (یسومهم) ورځکي اورسوئ دوی ته ( خَلْف )دلام په سکون سره هغه ناخلف زوی ته وایي چي شریر اوفاسدوي اودلام په زور سره بیا نېک اوصالح ذوذات ته ویل کېږي څکه خلګ وایي: (جعلک خیر خلف لخیر سلف ) یعني الله دي نېکمرغه زوی دنېکمرغه پلار لپاره وګرزوه.

## تفسیر:

﴿ وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ غَضۡبَٰنَ أَسِفٗا ﴾ ( اوکله چي بېرته راغی موسی ( له کوه طورنه) خپل قوم ته، پداسي حال کي چي له قهره ډک اوله ډېرقهر اوغصې افسوس کونکی وو ) یعني کله چي موسی علیه السلام دالله

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



جل جلاله له مناجات څخه راستون شو نودقوم حال یې دخوسي په عبادت کې ولید د پرخواشینی او افسوس کونکی شو ﴿قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِي مِنۢ بَعْدِيٓ﴾ او ویې ویل بد خلافت زما موله ماوروسته کړی دی (چې دخوسي عبادت مو پیل کړی) ﴿أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ﴾ آیا تلوار وکړه تاسي دالله له حکم څخه (چې دموسی انتظار موتر مغو کړی وای څو چې دطور له غره راستنېږي) استفهام انکاري دی ﴿وَأَلْقَى ٱلْأَلْوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُۥٓ إِلَيْهِ﴾ اوو غورځولې (موسی) تختې د (تورات له جهته دغضبه لپاره ددین دحمایت چې څرنګه دوی دخوسي عبادت کړي ؟) اوویې نیو سردورور خپل چې رابنکودیې هغه خپل خان ته (ګمان یې داوو چې هغه په دې هکله کوتاهي کړېده. موسی علیه لسلام دالله جل جلاله ددین په باب خورا قهرجن اوغضبناک وو. ابن عباس رضی الله عنه وایي: کله چې موسی علیه السلام ولیدل چې قوم یې دسخوندر (خوسي) عبادت کوي نو یې تختې وغورځولې اوماتې کړې اودخپل وروروسریې ونیوځان ته یې راکاږل [۱]) ﴿قَالَ ٱبْنَ أُمَّ إِنَّ ٱلْقَوْمَ ٱسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا۟ يَقْتُلُونَنِي﴾ (نوویل (هارون) موسی ته) اې زما دمورې زویه ببشکه چې (دغه) قوم زه ضعیف کړی وم او نږدې وو چې وژلی یې وم) دغه غږیې دمهرباني اولطف کولو لپاره وکړ [۲]) ترڅو دموسی علیه السلام قهرسوړ کړي چې هغه. (هارون) د دوی په راګرزولو کې څه تقصیرندی کړی ﴿فَلَا تُشْمِتْ بِيَ ٱلْأَعْدَآءَ﴾ نو په ما باندي دښمنان مه خوشحالوه) ﴿وَلَا تَجْعَلْنِي مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ﴾ (اوما دظالمانوله قوم سره مه ملګری کوه) یعني ماته بد اورد مه وایه دښمنان مه راباندي خندوه ماددوی په ډله کې مه ګڼه (ماخپل توان وس په کارا چولی چې دوی له دغه ناروا عمل څخه راوګرزوم خوو مي نشوکړای) مجاهدوایي: مراد له ظالمانو څخه هغه کسان دي چې دخوسي عبادت یې کړی وو ﴿قَالَ رَبِّ ٱغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ﴾ وویل: موسی اې ربه زما ! ببنه وکړه ماته او ورور زماته اوداخل کړه موږ په رحمت خپل کې اوهم داته مهربان یې ترټولو مهربانانو) یعني کله چې موسی علیه السلام ته دهارون علیه السلام برأت څرګند شو چې د خلافت په هکله یې څه تقصیر نشته نو یې له الله جل جلاله څخه ځان اوهغه ته ببنه وغوښته. زمخشري وایي چې د ځان لپاره یې ځکه ببنه وغوښته چې دخپل (مشر) ورور په شان کې یې تېرې وکړې دې چې ګني هغه به دخلافت په دوره کې کوتاهي کړې وي اودایې وغوښتل چې دوی دواړه دي دالله له رحمت څخه لیرې نشي اوتل ترتله دي په دنیا او آخرت کې دده په رحمت کې پټ وي [۳]) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ ٱلْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ (بېشکه هغه کسان چې نیولی دی دوی خسی (په معبودیت) ژر به دوی ته ددوی درب له لوري غضب ورسېږي اوذلت او خواري پدې ژوند ددنیا کي) یعني هغه کسان چې دنر غواتې عبادت یې کړی وو او هغه یې په الوهیت غوره کړی وو دوی ته به دالله سخت غضب اوپه دنیاکي سپکوالی او ذلت ورسېږي. ابن کثیروایي:

---

[۱] الطبري ۱۳ / ۱۲۳

[۲] ابن کثیروایي چې: ﴿ٱبْنَ أُمَّ﴾ یې دموسی علیه السلام دشفقت او مهرباني لورته رابللو لپاره وویل که نه هغه خو یې دمور او پلار دواړو له خواسکنی ورور وو.

[۳] الکشاف ۲ / ۱۲۲

Bawar.net



چي کوم غضب بني اسرائيلو ته ورسېدو هغه دا چي توبه يې ترهغو نه قبلېده څو يو بل ووژني او سپکاوی ذلت دا وو چي دغه کار ددوی لپاره په دنيا کي دخواري او ذلت نښه شو(۱) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي ٱلْمُفْتَرِينَ ﴾ (او هم داسي سزا ورکوو موږ بهتان تړونکوته) يعني لکه څرنګه چي دغو خلګوته موږ په غضب او ذلت سزا ورکړه هسي سزا تولو هغوته چي په الله باندي افترا ګاني تړي ورکوو. سفيان بن عيينه وايي: هر مبتدع ذليل وي(۲) ﴿ وَٱلَّذِينَ عَمِلُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ثُمَّ تَابُوا۟ مِنۢ بَعْدِهَا وَءَامَنُوٓا۟ ﴾ او هغه کسان چي دوی ناکاره کارونه کوي بيا توبه وباسي وروسته له کولو دګناهونو) او ايمان راوړي (په ايمان باندي ثبات او اخلاص لري) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه چي رب ستا پس له دې (توبې) خامخا ښه بښونکی دی د ډېر رحم والادی) يعني اې محمده! صلی الله عليه وسلم ستارب وروسته له دې توبې ددوی دګناهونو بښونکی او پر دوی مهربان دی. الوسي وايي په آيت شريف کي داسي انتباه (خبرتيا) شته چي ګناهونه که څه هم ستر او لوی وي خود الله جل جلاله عفو او کرم لا ډېر لوی او ستر دی. ﴿ وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى ٱلْغَضَبُ أَخَذَ ٱلْأَلْوَاحَ ﴾ او کله چي کرار (سوړ) شو قهر دموسی نو هغه تختې يې واخيستې) يعني کله چي دموسی عليه السلام غضب په خپل ورور او قوم باندي سوړ شو نو هغه د تورات تختې يې را واخيستې ﴿ وَفِى نُسْخَتِهَا هُدًى وَرَحْمَةٌ ﴾ او په ليک ددغو (تختو) هدايت او رحمت وو (لپاره دخلګو چي د دارينو ښکمرغي يې ورښوده) ﴿ لِّلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ﴾ لپاره دهغو کسانو چي دوی له خپل رب څخه وېرېږي) يعني دغه رحمت دهغو کسانو لپاره وو چي هغوی له الله جل جلاله او عذابه يې په ګناهونو کولو باندي وېرېږي ﴿ وَٱخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُۥ سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَٰتِنَا ﴾ (او غوره کړل موسی له خپله قومه اويا (تنه) سړي (چي دخوسي عبادت يې نه وو کړی) لپاره دموعود وخت زموږ) هغه چي الله وعده ورکړي وه دوی ته دراتللو لپاره دعذر وړاندي کولو له هغې ګناه چي دخوسي عبادت وو ﴿ فَلَمَّآ أَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ ﴾ (نو کله چي ونيول هغوی زلزلې) يعني کله چي غر ورباندي ولړزېدو او دوی پرمخي ولوېدو ﴿ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُم مِّن قَبْلُ وَإِيَّٰىَ ﴾ نو وويل: (موسی د الهي امر داستسلام او تضرع په توګه) اې ربه زما که اراده فرمايلي وي تا (ددوی دهلاکولو نو) هلاک کړي به وو تادوی او ما پخوا له دې نه (خکه موږ ستا بندګان ستا تر فرمان لاندي او ته کولای شي هر هغه څه چي وغواړې ﴿ أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلسُّفَهَآءُ مِنَّآ ﴾ آيا هلاکوې ته موږ په هغه کار چي کړی دی بې عقلانو له موږه؟ دهغو اويا کسانو چي ويلې وو ﴿ أَرِنَا ٱللَّهَ جَهْرَةً ﴾ راووينه موږ ته الله څرګند, استفهام دلته داستعطاف او تذلل لپاره دی لکه چي وايي: اې الله دنورو په ګناه موږ ته عذاب مه راکوه! طبري دالسدي په روايت وايي: چي الله پاک حضرت موسی ته حکم وکړ چي يو څو تنه بني اسرائيل له ځانه سره راوله چي عذر وړاندي کړي له هغې ګناه چي دخوسي عبادت يې کړی وو او وعده يې ورته ورکړه کله چي موسی عليه السلام او يا تنه مشران غوره کړل او کله چي هغه ځای ته ورغلل نو دوی وويل: اې موسی! تاچي خبري ورسره وکړې يقين مونه راځي ترڅو چي الله څرګندونه وينو موږ ته هغه راووينه دلته تندر ورباندي

---

(۱) المختصر ۲/ ۵۲

(۲) الطبري ۱۳/ ۱۳۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



پرېوت اوتول مره شول موسی علیه السلام ودرېدو اوالله جل جلاله ته يې په ژړا دعاګاني پيل کړې ويل يې: زه به بني اسرائيلوته څه وايم کله چې هلته ورشم پداسي حال کې چې تاددوی مخه ور ګرد هلاک کړل ؟ که تاغوښتي وای زه اودوی به دې پخوا هلاک کړي وو[1] زه وايم چې دغسې خبرې دبني اسرائيلو دمشرانو اخيارو له خولې ژاووزې نودبدانو اشرارو به يې څه حال وي ؟ نعوذبالله من خبث اليهود ﴿ إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ ﴾ ندی داکار مګر ستاازموينت دی ( چې بندګان ورباندې ازمويې ﴿ تُضِلُّ بِهَا مَن تَشَآءُ وَتَهْدِي مَن تَشَآءُ ﴾ ګمراه کوې ته پدې سره یا( الله ) هرهغه څوک چې اراده يې وکړې ته دضلالت اوهدايت کوې ته ( یاالله ) هرهغه چاته چې اراده يې وکړې د هدايت ﴿ أَنتَ وَلِيُّنَا فَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَا ﴾ ته زمونږ واکدار(حافظ ناصر ) يې نوښښنه وکړه ( دګناهونو ) موږ ته اوپرموږ ورحمېږه ( ستاپه پراخ اودېر رحمت باندې )﴿ وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْغَـٰفِرِينَ ﴾ ( اوهم داته يې بهترغوره دټولو ښښونکو ) يعني ته دټولو هغوچې ستراوښښنه د ګناهونو کوې غوره يې ته ګناهونه ښښې اوپه نېکيويې بدې بدلوې ﴿ وَٱكْتُبْ لَنَا فِي هَـٰذِهِ ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي ٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ ( اوولیکه موږ ته په ژوندون ددنيا کې نېکي اوپه آخرت کې ( هم ) نېکي ) دغه دموسی علیه السلام له دعاڅخه دی يعني موږ ته په دنيااوآخرت کې نېکي مقرراوتثبيت کړه ﴿ إِنَّا هُدْنَآ إِلَيْكَ ﴾ ببشکه موږ توبه ګار شوي یو تاته ﴿ قَالَ عَذَابِيٓ أُصِيبُ بِهِۦ مَنْ أَشَآءُ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ نووفرمايل: ( الله چې ) زماعذاب به ورسوم هغه چاته چې اراده وکړم زه ( درسولويې ) او رحمت زما شامل دی هرشي ته ابوالسعود وايې چې: دعذاب په رسېدلوکې د مضارع صيغه اودرحمت په پراخي کې د ماضي صيغه راوړل ددې خبر ورکوي چې رحمت دذات مقتضا او غوښتنه ده اوعذاب بيادبندګانو دګناهونو په مقتضااوغوښتنه راځي[2] ﴿ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَـٰتِنَا يُؤْمِنُونَ ﴾ نوژر به وليکم دا( رحمت په آخرت کې ) هغوکسانو ته چې ځانونه له کفره اوګناهونو ساتي اوزکاتونه ورکوي اوهغه کسان چې زمونږ په آيتونو د(ټولو کتابونو اونبيانو ) ايمان لري ﴿ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِيَّ ٱلْأُمِّيَّ ﴾ ( داهغه کسان دي چې دوی دهغه رسول ( ددين ) متابعت کوي چې أمي نبي دی ) يعني دغه متقيان مؤمنان هغه کسان دي چې دوی ته به رحمت رسېږي کوم چې دمحمدعربي أمي صلی الله علیه وسلم متابعت کوي هغه چې نه ليکي اونه لولي بيضاوي وايې چې رسول په دې نومول چې الله ته يې اضافت اونسبت وشي اونبي پدې چې خلکوته يې اضافت راشي[3] ﴿ ٱلَّذِي يَجِدُونَهُۥ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي ٱلتَّوْرَىٰةِ وَٱلْإِنجِيلِ ﴾ هغه رسول چې دوی مومي ( نعت اوصفت دده ) ليکل شوی په تورات اوانجيل کې. ابن کثير وايې چې: دغه دمحمدصلی الله علیه وسلم هغه صفت دی چې دانبياوو عليهم السلام په کتابونوکې راغلی دی او خپلو امتونوته يې داستازيتوب (بعثت ) زېرې ورکړی اودمتابعت کولوحکم يې فرمايلی دی اوتل ترتله يې صفتونه ددوی په کتابونوکې موجوددي چې علماء اواحبار يې پېژني[4] ﴿ يَأْمُرُهُم بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَىٰهُمْ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ﴾ هغه رسول) چې دوی ته امرکوي په

---

[1] الطبري ۱۳/ ۱۴۰
[2] ابوالسعود۲ /۲۰۱
[3] البيضاوي ص:۲
[4] المختصر ۲ / ۵۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



معروف سره اوله منکرڅخه یې منع کوي ) یعني هغه امرنه کوي مګرپه هر ښکلي اونېک شي سره اومنع نه کوي
مګرله هربد اوقبیح څخه ﴿ وَيُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡخَبَٰٓئِثَ ﴾ ( اوحلالوي دوی ته ګرد طیبات
او حراموي پردوی باندي پلیت شیان ) یعني حلالوي دوی ته هغه پاک شیان چي د دوی دظلم اوتېري له کبله حرام
کړی شوي وو پردوی باندي اوورباندي حراموي هغه پلیت شیان لکه ویني، دخنزیر غوښه اومرداره ( مړزګه ) ،
﴿ وَيَضَعُ عَنۡهُمۡ إِصۡرَهُمۡ وَٱلۡأَغۡلَٰلَ ٱلَّتِي كَانَتۡ عَلَيۡهِمۡۚ ﴾ اولیري کوي له دوی څخه درانه بارونه ددوی اوهغه
قیدونه دسختیوچي پردوی باندي وو ) یعني له دوی څخه شاقه تکالیف سپکوي هغه چي دقیدونوپه ډول وي
لکه دتوبې لپاره دځان وژل اودناپاکه ځای غوڅول اوله قصدي اوغیرقصدي قاتل څخه اکه پکه
قصاص اخیستل اوداسي نور ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِهِۦ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ ﴾ پس هغه کسان چي ایمان یې راوړی
دی په دغه (محمد ) اوعزت کوي دده اومرسته له دغه ( محمدصلی الله علیه وسلم) سره کوي ﴿ وَٱتَّبَعُواْ ٱلنُّورَ
ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ مَعَهُۥٓ ﴾ ( اومتابعت کوي دهغې رڼاچي نازل کړی شوی دی له ده سره ) یعني متابعت کوي دهغه
روښانه قرآن اوغړي شریعت ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ﴾ نو دغه کسان هم دوی دي په مراد رسېدلي ( تل ترتله
نېکمرغي ته ) ﴿ قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّي رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيۡكُمۡ جَمِيعًا ﴾ ووایه (اې محمده ! خلګوته چي) اې
خلګو ! زه تاسي ټولوته دالله رسول ( استازی ) یم دځمکي سردټولو خلګولپاره ﴿ ٱلَّذِي لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ
وَٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ ( هغه الله چي خاص ده لره ده پاچهي دآسمانو اودځمکي ) یعني مالک د ټولو کائناتو دی ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا
هُوَ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُۖ ﴾ ( نشته هیڅ لائق د عبادت ( په حقه سره ) مګرهم دی دی چي ژوندي کول اومړه کول کوي )
یعني له الله پرته هیڅ رب اومعبود نشته چي هغه په ژوندي کولو اومړه کولو قادروی ﴿ فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾
نو ایمان راوړئ په الله جل جلاله اورسول ددغه الله چي ټولو خلګوته مبعوث دی ﴿ ٱلنَّبِيِّ ٱلۡأُمِّيِّ ٱلَّذِي يُؤۡمِنُ
بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ ﴾ چي نبي امي ( نالوستونکی نالیکونکی) دی هغه چي ایمان لري په الله اوپه ګردوخبرو دالله
(که په ده نازل شوي کتابونه دي اوکه په نورو نبیانو ﴿ وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُونَ ﴾ ( اومتابعت وکړئ
دده لپاره ددې چي تاسي لاره ومومئ) یعني دده په پله پل کښېږدئ اولاره یې ونیسئ پدې هیله چي مطلوب ته
ورسېږئ ﴿ وَمِن قَوۡمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٞ يَهۡدُونَ بِٱلۡحَقِّ وَبِهِۦ يَعۡدِلُونَ ﴾ اوځیني له قومه دموسی (بني اسرائیلو) یوه
ټولی ده چي لاره ښیې ( خلګوته ) په حقه ( ظلم نکوي) اوپه دی حق انصاف کوی (په مینځ دخلګو کی لکه چي
دوی پخپله هم پری عمل کوی) زمخشري وایي : کله چي الله هغه کسان یادکړل چي په دین کي متزلزل اوشکمن
شول آن تردې چي په دوو سترو پېښو کي ککړشول یوېې دخسي عبادت اوبل یې دالله جل جلاله رؤیت اوغوښتل
نوبیاالله جل جلاله داذکر کړل چي له دوی څخه یوه داسي ټولی هم شته چي په حق باندي ثابت ولاړدي اوخلګوته
داستقامت سمه لاره ورښیې (١) ﴿ وَقَطَّعۡنَٰهُمُ ٱثۡنَتَيۡ عَشۡرَةَ أَسۡبَاطًا أُمَمٗاۚ ﴾ (اوبېل کړل موږدغه بني اسرائیل ١٣

---

(١) الکشاف ٢ / ١٢٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دولس قبيلې تولی تولی ) يعني د حضرت يعقوب عليه السلام له اولادونو څخه دهريوه اولادمو خان ته قبيله کړه. ابوحيان وايي: معنادا چي دوی موپه سبطونو وويشل ترڅو دهري قبيلې واک خپل مشراورئيس ته وسپارل شي ترڅو په موسی عليه السلام کښه ګونه سپکه شي بل داچي حسد اوکينه سره ونکړي اوناورين جوړنشي څکه دولس چينې اوبه ورته راوبهېدې چي په اوبويې جګړه نه وي اودهري يوې قبيلې لپاره موبقيب او مشروټاکل چي ددوی دچاروفيصله کوي(۱) ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ إِذِ ٱسْتَسْقَىٰهُ قَوْمُهُۥٓ ﴾ اووحی ( حکم ) موولېږه موسی ته کله چي قوم دده ترې اوبه وغوښتې ) هلته چي دتيه په دښته کي تندي وربااندي غلبه وکړه ﴿ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ﴾ چي په خپله همساتېره ووهه ( اوهغه يې ووهله ) ﴿ فَٱنۢبَجَسَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ﴾ نوراوخوتېدلې له هغې (تېږې څخه ) دوولس چينې ( دقبيلوپه شمېر ) ﴿ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ﴾ په تحقيق و پېژانده هري قبيلې ځای داوبو څښلوخپلو ) يعني هري يوې خپله چينه وپېژنده . طبري وايي: چي بيابه نويوه قبيله دبلې په چينه نه ورګډېدله(۲) ﴿ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْغَمَامَ ﴾ (او سيوری کړموږپردوی وريځ ) چي دوی يې دلمرله تودوخي اوتکليف څخه ژغورل. الوسي وايي: چي داهسي سيوری ووچي له دوی سره به هرچېرته چي دوی تلل لېږديدو اوچېري چي به مېشت شول هلته به درېدو ﴿ وَأَنزَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ ﴾ اونازل کړی وو موږپردوی من( ترنجبين ) اوسلوا( مرخان) يعني موږدوی په خوندور خوراک ونازول چي هغه من ووداهسي يوخوږ څېزووچي په ونويې راکوزېدو اودوی به بيا راغوندول اوخوړل(۳) اوسلوی بياډخوندوري غوښي څښتن مرغه (مرز) ته وايي دغه ټول يوازي دالله جل جلاله فضل اواحسان وو دوی هيڅ زيار هم پدي هکله نه ووګاللی.

﴿ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ﴾ ( نوويل موږدوی ته چي) و خورئ تاسي له پاکېزه اوحلالولذيذوهغوشيانو چي موږتاسي ته درکړي ﴿ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ ! ( اودوی ظلم نه ووکړی پرموږ( په دغه کفران اوعصيان سره) وليکن وودوی چي ظلم يې پخپلوځانونوکاوو ) پدې کلام کي حذف راغلی چي تقديريې داسي کېږي دوی ددغوسترونعمتونو کفران وکړاو دوی په سبب ددې کفران په موږظلم ونکړبلکه پخپلوځانونو يې وکړچي دالله عذاب ته چمتو شول ﴿ وَإِذْ قِيلَ لَهُمُ ٱسْكُنُوا۟ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةَ وَكُلُوا۟ مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ ﴾ او( يادکړه هغه وخت) چي وويل شو(پلرونود ) دوی ته اوسئ تاسي پدغه کلي کي (چي بيت المقدس دی) اوخورئ تاسي له ( مېوود ) دې څخه له هرځای څخه چي موخوښه شي ﴿ وَقُولُوا۟ حِطَّةٌ ﴾ اووايئ دننوتلوپه وخت اې الله راوبښه ګناهونه زموږ ﴿ وَٱدْخُلُوا۟ ٱلْبَابَ سُجَّدًا ﴾ اوننوزئ دروازې ( ددې ښارته ) سجده کونکي ﴿ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيٓـَٰٔتِكُمْ ﴾ نووبه ښنوموږ تاسي ته ګناهونه ستاسي (چي پخوامو کړي دي) ﴿ سَنَزِيدُ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ ( ژربه زيات کړونېکانوته اجر ) يعني هغه چاته چي نېک عملونه کوي دالله جل جلاله د اوامرو امتثال کوي په غفران او ښنه د پاسه به دجنت دخول هم

(۱) البحر المحيط ۴ / ۴۰۲
(۲) الطبري ۱۳ / ۱۷۷
(۳) روح المعاني ۹ / ۸۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ورکړو ﴿ فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ ٱلَّذِى قِيلَ لَهُمْ ﴾ پس بدل کړه هغو کسانو چي ظلم يې کړی وو (پخپلو ځانونو) له دوی څخه خبره غير له هغي چي دوی ته ويل شوي وه (هغه چي نه بنائېدله) ويل يې (حنطة في شعيرة) او په ځای ددې چي په سجده دننه شي دوی په کوناتيو دملندو او استهزاء لپاره بنوتېدل چي دالله په اوامرو يې ملندي وهلې ﴿ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُواْ يَظْلِمُونَ ﴾ نو موږ پردوې باندي له آسمانه عذاب ولېږه (څکه دوی پخوا او وروسته تل ترتله په دښمني او ظلم کي وو) ابو السعود وايي: چي مراد له عذابه دطاعون ناروغي وه. روايت کېږي چي په يوه ګړۍ کي څلېرويشت زره تنه هلاک شول(۱) ﴿ وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِى كَانَتْ حَاضِرَةَ ٱلْبَحْرِ ﴾ او وپوښتنه وکړه (اي محمده له يهودو دهغوی داسلافو او حال) دهغه کلي څخه چي دبحر په غاړه وو (چي څه ناورين ورباندي راغی کله چي يې دالله له امر څخه سرغړونه وکړه او دهفتې په ورځ يې دماهيانو ښکار کاوو چي آيا هغه الله تعالی په بېزوګانو او خنزيرانو مسخ نکړل؟ ابن کثير وايي: چي دغه د(ايله) کلی او دقلزم دسيند په غاړه وو(۲)) ﴿ إِذْ يَعْدُونَ فِى ٱلسَّبْتِ ﴾ چي له حده تېرېدل دوی (له فرمانه دالله په ښکار کولو دماهيانو) په ورځي دخالي کي ﴿ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا ﴾ کله چي راتلل دوی ته ماهيان ددوی په ورځي دهفتې د دوی کي ښکاره (پداسي حال کي چي په دې ورځ به په دوی ښکار حرام شوی وو) ﴿ وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ ﴾ او په هغه ورځ کي چي داخل به نه وو په خالي کي نو به (ماهيان) نه راتلل (او پټېدل به) ﴿ كَذَٰلِكَ نَبْلُوهُم بِمَا كَانُواْ يَفْسُقُونَ ﴾ (په مثل ددغه امتحان) ازمويو موږ دوی په سبب ددې چي وو دوی چي فسق به يې کاوو (دالله له طاعت څخه به وتل) يعنی ددغه عجيبه ازموينت په شان چي ماهيان به په حرام شوي ورځ داوبو په سرورته څرګندېدل او په حلاله ورځ به څيني پټېدل دادوی دفسق په وجه او داچي دالله جل جلاله له محرماتو يې ځان نه ووژغورلی. قرطبي وايي: چي داسي روايت شوی دغه خلګ دداؤد عليه السلام په زمانه کي وو او دوی ته ابليس داسي وويل چي تاسو خود خالي په ورځ دماهيانو له ښکار څخه منع شوي ياست ډنډونه تالابونه (حوضونه) جوړ کړئ نو دوی هماغسي وکړل او دجمعي په ورځ به دوی ماهيان ډنډونو (حوضونو) ته وشړل او بيا به داوبو دکمښت له امله هغوی له تالابونو څخه دوتلو امکان نه درلود نو به دوی په داسي دوکه هغه کبان بيا د يکشنبې په ورځ نيول(۳) ﴿ وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا ٱللَّهُ مُهْلِكُهُمْ أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ﴾ (او وپوښتنه وکړه اي محمده له يهودانو) کله چي وويل يوې فرقې له دوی (چي نه يې ښکار کاوو نه يې نور منع کول منع کونکو ته) ولي تاسي نصيحت کوئ هغه قوم ته چي الله ددوی هلاکونکی دی يا عذاب کونکی ددوی دی په سخت عذاب سره) ابن کثير وايي: الله تعالی ددې کلي له خلګو اخبار فرمايي چي هغوی په درې ډلي وو هېشل شول يوې ډلي دشنبې په ورځ ماهيان نيول او دنيولو لپاره يې پلمې (حيلې) جوړي کړې او بله ډله داسي وه چي له دغه کاره يې خلګ منع کول او دوی خپله هم نه کاوو دريمه ډله هغه وه چي چُپه پاتي شوه نه يې پخپله ښکار کاوو نه يې خلګ منع کول خو هغه چاته چي وعظ او پند يې ورکادو

---

(۱) ابو السعود ۲/ ۲۰۵

(۲) المختصر ۲/ ۵۸

(۳) القرطبي ۷/ ۳۰۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او له دغه بده کاره یې خلګ منع کول دوی به ورته ویل: چې ولې دغوته نصیحت کوئ چې دوی دعذاب وړ او مستحق دي تاسو پوهېږئ چې دوی هلاکېدونکي دي ستاسو پند هډو دوی ته ګټه نه رسوي[١] ﴿ قَالُوا۟ مَعْذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمْ ﴾ (وویل دوی (چې وعظ کوو) لپاره د(خپل) عذر پیداکولو رب ستاسي ته) یعني دغه امر بالمعروف کونکو به ورته ویل چې موږ ددې لپاره ورته نصیحت کوو چې دالله په وړاندې دقیامت په ورځ زموږ عذر موجود وي چې موږ خپلې غاړې خلاصې کړېدي ﴿ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ (اولپاره ددې چې ښایې دوی وو ېرېږي) او دغه کار پرېږدي. طبري وایې: ښایې دوی له الله و ېرېږي له ګناه څخه توبه وکاږي دالله طاعت ته رجوع وکړي دخالي دورخې ښکار پرېږدي[٢] ﴿ فَلَمَّا نَسُوا۟ مَا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦٓ ﴾ (نو کله چې پرېښودو دوی (لکه چې هېرکړې یې وي) هغه نصیحت چې پندورکړې شوی وو دوی ته په هغه سره) یعني کله چې دوی دصالحانو خبرې هسې شاته وغورځولې لکه چې یو څوک یې بېخي هېرې کړي اویو مخ ایزه یې مخ ځنې واړاوو ﴿ أَنجَيْنَا ٱلَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ ٱلسُّوٓءِ ﴾ (نجات ورکړموږ هغو کسانو ته چې منع کول دوی (دانور) له بدي) یعني هغه کسانوته مو نجات ورکړچې نورخلګ یې په مخکه کې له فساد اچولو څخه منع کول ﴿ وَأَخَذْنَا ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ بِعَذَابٍۭ بَـِٔيسٍۭ ﴾ اوو مونیول هغه کسان چې ظلم یې کړی وو (په بدوکارونوکولو) په سخت عذاب سره ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴾ (چې وودوی ګناهونه به یې کول) یعني ددوی دفسق اوعصیان په وجه موونیول ﴿ فَلَمَّا عَتَوْا۟ عَن مَّا نُهُوا۟ عَنْهُ ﴾ نو کله چې سرکشي وکړه دوی له (پرېښودلو د) هغه شي څخه چې منع شوي وو دوی له هغه شي څخه ﴿ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا۟ قِرَدَةً خَـٰسِـِٔينَ ﴾ (نو) (وویل موږ دوی ته چې شئ بیزوګان رټلي سپک کړی شوي) معنا داچې موږ هغوی بیزوګان اوخنزیران مسخ کړل. یعني دوی لومړی ځل په سخت عذاب ونیول شول خوچې بیاهم یې توبه ونکړه اوسرغړونه یې هماغسې جاري وساتله نو بیاپه بیزوګانو اوخنزیرانو بدل شول ددې خبرو حاصل داچې دغه خلګ په دریو ټولګیو وېشل شوي وو یوه ګنهکاره ټولی. چې الله جل جلاله معذب کړل اوبله هغه چې وعظ اونصیحت یې ورته کاوو الله له عذابه وژغورل اودریمه هغه چې پخپله یې ګناه نه کوله اونوریې هم له ګناه کولو څخه نه منع کول له دوی څخه قرآنکریم پټه خوله دی. ابن عباس رضی الله عنهما وایې: پدې خبرنه یم چې دغه ساکت ټولګی هلاک اوکه وژغورل شو؟ عکرمة رضی الله عنه وایې: مازیار ایستل تر څوېدې وپوهېدم چې هغوی هم له هلاکت څخه نجات وموند څکه دوی دغه ګناه بده ګڼله اوښه یې نه ایسېدله[٣] ﴿ وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ ﴾ او(یادکړه) هغه وخت چې خبر ورکړی وو رب ستا چې خامخا مسلط به کړم هرومرو په دغو یهودانو تر ورځې دقیامت پورې هغه څوک چې رسوي به دوی ته سخت عذاب (په سبب دعصیان اوسرغړوني ددوی له الهي اوامرو څخه اوداچې دحرامو کارونو لپاره یې حیلې پلمې لټولې همداسې الله جل جلاله په دوی بخت نصر مسلط کړویې وژلو، بندیان یې کړل اونصارې یې ورباندې مسلط کړل چې دوی یې خوار

---

(١) المختصر ٢ / ٥٩
(٢) الطبري ١٣ / ١٨٥
(٣) المختصر ٢ / ٥٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوسپک وګرزول اوجزيې يې وربانديې وټاکلې لکه څرنګه چې يې محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم وربانديې مسلط کړاوځمکه يې ددوی له ناپاکي څخه سپېځلې کړه دوی يې له عربي جزيرې څخه وايستل همدارنګه پدې نژدې وروستي وخت کې يې هټلر وربانديې مسلط کړ چې ددوی سراومال يې ځان ته رواوهغوی يې په وژلو اوشړلو پوپناکړل اودغسې به دالله جل جلاله وعده تل ترتله وي چې په دوی به يو څوک مسلط کوي آن ترهغوی چې مسلمانان به يې په وروستنی جګړه کې بېخ اوبکروباسي ( ويومئذ يفرح المؤمنون بنصر الله ) ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ ٱلْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُۥ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ ببشکه رب ستا خامخا ژردی عذاب دده ) او ببشکه دغه ( الله ) خامخابنه ببنونکی د ( ګنهګارانو ) دېرحم والادی ( دهغه چالپاره چې طاعت يې کوي ) ﴿ وَقَطَّعْنَٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أُمَمًا ۖ ﴾ ( اومتفرق کړل موږ دوی په ځمکه کې فرقې فرقې ) يعني دوی موږ ډلګې ډلګې په هيوادونو کې تبت کړل اودوی يوازنی تاټوبی نلري ترڅوچې دشان اوشوکت خاوندان وي اودوی چې په مقدسه ځمکه کې اوس راټول شوي انشاء الله دمسلمانانو له لاسه وژل کېږي لکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم پدې هکله فرمايلي دي: لاتقوم الساعة حتى يقاتل المسلمون اليهود) الحديث اخرجه مسلم يعني ترهغوقيامت نه راځي ترڅوچې مسلمانان يهودان ووژني ) بيياوروسته الله تعالى هسې وښکوي فرمايي چې دوی ګردسره ټول خوفجار، اشرار نه دي بلکه اخيار اوښه خلک هم پکې شته ﴿ مِّنْهُمُ ٱلصَّٰلِحُونَ وَمِنْهُمْ دُونَ ذَٰلِكَ ۖ ﴾ ځيني له دوی څخه ښکان دي او ځيني له دوی څخه رانښکته له دې ( مرتبې دصلاح ) يعني ځيني له دوی څخه ايمان راوړي چې هغوی ډېرلږ دي اوځيني له دغې درجې دصلاح څخه ښکته ( کافران دي ) چې دوی خورازيات دي ﴿ وَبَلَوْنَٰهُم بِٱلْحَسَنَٰتِ وَٱلسَّيِّـَٔاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ اوو ازمويل موږ دوی په ښکيو ( نعمتونو ) اوبديو ( زحمتونو اوعذابونو )ښايې چې دوی وګرزي ( له کفره ) ﴿ فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ ( نوپاتې شول وروسته له دوی نه داسې بدخليفه ګان چې وارثان شول دکتاب ) ابن کثيروايي : چې له دغه نسله وروسته چې صالح اوطالح کسان پکې وو داسې څوک راغلل چې تورات ورته پاتې شوکوم کسان چې هيڅ خيراومصلحت پکې نه وو(١) ﴿ يَأْخُذُونَ عَرَضَ هَٰذَا ٱلْأَدْنَىٰ وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا ﴾ ( حال داچې ) اخلي دوی مبلغ ( اواسباب ) ددنيا ( په رشوت )وايې دوی ژربه ببښنه وکړه شي موږ ته ) يعني دوی ددغه خسيسې دنياله حرامو اوحلالوراغونډوي اوپه وازکومې وايې چې ژربه موږ ته الله (ج) داعمالوببښنه وکړي اوداپه الله جل جلاله باندې افتراء اوتېروتنه ده ﴿ وَإِن يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهُۥ يَأْخُذُوهُ ۚ ﴾ ( اوحال داکه راشي دوی ته مبلغ ( اواسباب نورهم ) په مثل ددې نواخلي دوی هغه (هم) يعني دوی دمغفرت هيله لري اوپه ګناهونوباندې اصرار کوي هرڅه دنيوي مال اسباب چې ورته څرګندشي دحلال اوحرام غم يې نکوي اوهغه ټولوي ﴿ أَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِم مِّيثَٰقُ ٱلْكِتَٰبِ أَن لَّا يَقُولُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْحَقَّ ﴾ آيانه ده اخيستی شوي له دوی څخه کلکه وعده په دې کتاب کې ؟ (بلکه اخيستی شويده ) چې نه به وايې دوی پرالله مګر حق ) استفهام دتوبيخ اوتقريع لپاره دی چې آيا له دوی څخه په تورات کې کلکه وعده اخيستل شوي نه وه چې دوی به په الله پاک دروغ نه تړي نودوی بياڅرنګه ګومان کوي چې ددوی له ګناهونوکولوسره اوداچې حرام خوري او وربانديې اصرارکوي دوی ته به

---

(١) المختصر ٢ / ٦١

Bawar.net



زربښنه وشي؟! ﴿ وَدَرَسُواْ مَا فِيهِ ﴾ اولوستي وو دوی (هغه احکام) چي په دغه (تورات) کي وو، پدې کي ستر توبيخ اوترټنه ده يعني حال داچي دوی په بشپړه توګه هغه څه لوستي وو چي پدې کتاب کي راغلي اود باطل قول اوافتراء دګناه وعيدېي راوړی دی ﴿ وَٱلدَّارُ ٱلْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ ﴾ اودار دآخرت (جنت) خير (ډېرغوره بهتردی) دپاره دهغه کسانو چي وېرېږي (له الله څخه په پرهېزولو دلوه حرامو) ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ (آيانوتاسي عقل نه کوئ نه پوهېږئ) چي دنيافاني اوعقباباقي ده) مقصد داچي که چېري دوی هوښياران وای نوبه يې فاني دنيا په باقي نه وه غوره کړې ﴿ وَٱلَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِٱلْكِتَٰبِ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ اوهغه کسان (له دوی څخه) چي ښه ټينګ نيسي کتاب اوقائموي (سم اداکوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ (پخپلو وختونوکي) ﴿ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُصْلِحِينَ ﴾ (بېشکه موږنه ضائع کوو ثواب (عوض، بدل دنېکوکارانو) يعني موږ ددوی اجر نه ضائع کوو بلکه پدغه نېکواعمالو اوټينګ نيولو دکتاب اوصلحيت ددوی ښه بهتره اوغوره ثواب ورکوو.

## بلاغت:

۱ - کله چي فرمايي: ﴿ وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى ٱلْغَضَبُ ﴾ دلته يې غصه اوقهرله داسي انسان سره مشابه کړچي سوراوشين کېږي له خولې يې څګونه راوزي اوپه لوړآواز وايي چي خامخابه زه کسات درڅخه واخلم خوبيا وروسته داغږ اوصوت کرار شي نوپه کلام کي مکنيه استعاره راغلي چي خورابنکلی انځور اوتصوير يې کښلی چي په ښکلا اوجمال يې دطبع سليم اوعالي ذوق خاوندان پوهېږي

۲ - د ﴿ تُضِلُّ ﴾ او ﴿ وَتَهْدِي ﴾ ترمينځ اوهمدارازد ﴿ يُحْيِۦ ﴾ او ﴿ وَيُمِيتُ ﴾ ترمينځ دطباق صنعت دی.

۳ - دالله جل جلاله پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ يَأْمُرُهُم بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَىٰهُمْ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ ٱلْخَبَٰٓئِثَ ﴾ دبديعي محسناتو هغه صنعت دی چي ورته مقابله وايي هغه داچي دوې معناګاني اويازياتي راوړل شي او وروسته په ترتيب سره دهغوی مقابل راوړي

۴ - ﴿ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَٱلْأَغْلَٰلَ ﴾ دلته يې درانه بارونه اوطوقونه داحکامو اوشاقه تکاليفو لپاره استعاره کړي دي.

۵ - پدې کلام کي چي الله تعالی فرمايي: ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ دلته له غياب څخه خطاب ته دالتفات صنعت دی اودا په توبيخ اوترټنه کي لازياته مبالغه افاده کوي.

## فائده:

(خَلْفٌ) دلام په زورسره هغه چاته وايي چي په نېکۍ کي دپخوانيو کسانو وارث وي اودلام په سکون سره بياهغه چاته وايي چي دشرپه کارونوکي دبل چاخليفه او وروسته پاتي نائب وي څکه الله جل جلاله فرمايي: ﴿ فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَٱتَّبَعُواْ ٱلشَّهَوَٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴾ مريم: ۵۹ اوهمدا آيت شريف چي: ﴿ فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُواْ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ والله اعلم.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَإِذْ نَتَقْنَا ٱلْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُۥ ظُلَّةٌ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُۥ وَاقِعٌۢ بِهِمْ خُذُوا۟ مَآ ءَاتَيْنَٰكُم بِقُوَّةٍ وَٱذْكُرُوا۟ مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٧١﴾ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنۢ بَنِىٓ ءَادَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا۟ بَلَىٰ شَهِدْنَآ أَن تَقُولُوا۟ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَٰذَا غَٰفِلِينَ ﴿١٧٢﴾ أَوْ تَقُولُوٓا۟ إِنَّمَآ أَشْرَكَ ءَابَآؤُنَا مِن قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنۢ بَعْدِهِمْ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴿١٧٣﴾ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿١٧٤﴾ وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ٱلَّذِىٓ ءَاتَيْنَٰهُ ءَايَٰتِنَا فَٱنسَلَخَ مِنْهَا فَأَتْبَعَهُ ٱلشَّيْطَٰنُ فَكَانَ مِنَ ٱلْغَاوِينَ ﴿١٧٥﴾ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَٰهُ بِهَا وَلَٰكِنَّهُۥٓ أَخْلَدَ إِلَى ٱلْأَرْضِ وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ذَّٰلِكَ مَثَلُ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا فَٱقْصُصِ ٱلْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٧٦﴾ سَآءَ مَثَلًا ٱلْقَوْمُ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَأَنفُسَهُمْ كَانُوا۟ يَظْلِمُونَ ﴿١٧٧﴾ مَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلْمُهْتَدِى وَمَن يُضْلِلْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿١٧٨﴾ وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ ءَاذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَآ أُو۟لَٰٓئِكَ كَٱلْأَنْعَٰمِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْغَٰفِلُونَ ﴿١٧٩﴾ وَلِلَّهِ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ فَٱدْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا۟ ٱلَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِىٓ أَسْمَٰٓئِهِۦ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٨٠﴾ وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴿١٨١﴾ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨٢﴾ وَأُمْلِى لَهُمْ إِنَّ كَيْدِى مَتِينٌ ﴿١٨٣﴾ أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا۟ مَا بِصَاحِبِهِم مِّن جِنَّةٍ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿١٨٤﴾ أَوَلَمْ يَنظُرُوا۟ فِى مَلَكُوتِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ ٱللَّهُ مِن شَىْءٍ وَأَنْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ قَدِ ٱقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ فَبِأَىِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَهُۥ يُؤْمِنُونَ ﴿١٨٥﴾ مَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَا هَادِىَ لَهُۥ وَيَذَرُهُمْ فِى طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١٨٦﴾ ﴾

الأعراف: ١٧١ - ١٨٦

مناسبت اوتړاو:

کله چي الله جل جلاله دبني اسرائيلو هغه دالله په اوامرو تمرد (سرغروني) اوعصيان نموني بيان کړي ور پسي بيې دلته هغه کيسه راوړه چي په دوی باندي غرد پاسه ودرېدو ترڅو دتورات داحکامومنلوته بې اړباسي اوکه هسي نه دغه غربه بې په مخکه پوري وموبني بيا الله تعالی دعلماء سوء بيان کوي اودهغه چاپه کيسه بې راوړي چي دالله جل جلاله له آيتونو څخه ددنيا خسيس مال متاع غوره کوي دهغه لپاره دهغه سپي مثال راوړي چي دهوسابې اوسترياپه دواړوحالتونوکي ژبه راباسي اوغاپي درگرده هونگېږي اودغه ديهودوانو وړښکلی تصوير دی چي دوی څومره په دنياپسي ربړونه ګالي اوځرنګه دمال دولت عبادت کوي ؟

لغتونه:

﴿نتقنا﴾ (نتق) په زوره راکشول . ابوعبيده وايي د (نتق) اصل ديوشي له بېخه ايستلو اوغورځولو په معناده [1]

(ظلة) هرهغه څه چي ورباندي سيوری کوي لکه بام ووريځ دېوال وزر اوداسي نورجمع يې ( ظلل اوظلال) راځي

---

[1] الرازي ۴ / ۴۵۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(ظنوا) يعني وپوهېدل اويقين يې شو ( انسلخ) له يوشي څخه يومخ ايزه وتل لکه چي وايې: (انسلخت الحية من جلدها) يعني مار له خپل پټوکي ( څرمني) څخه ووت ( أخلد) يوشي ته ميلان کولوته وايې اصل يې له خلود اخيستل شوي اولزوم ته وايې لکه چي وايې: ( أخلد فلان بمکان) کله چي هلته لزومي اقامت غوره کړي اوله دې څخه خلودپه جنت کي هم دی ( يلهث) جوهري وايې چي : ( يلهث الکلب) معناداچي ژبه يې له تندي اوسترِيا راايستلي وي (١) (ذرأنا) يعني موږ پيداکړي ( يلحدون) له الحاد څخه اخيستل شوی اوهغه ميل اوله سموالي څخه کږوالي ته ويل کېږي لکه چي وايې: ( ألحد فى الدين فهوملحد ) څکه چي ددیني تعليماتو اواحکامو څخه يې انحراف کړی وي

**تفسير:**

﴿ وَإِذْ نَتَقْنَا ٱلْجَبَلَ فَوْقَهُمْ ﴾ او(يادکړه اې محمده يهودوته !) هغه وخت چي راپورته کړموږ غردپاسه ددوی ( بني اسرائيلو ) ﴿ كَأَنَّهُۥ ظُلَّةٌ ﴾ ګواکي دغه غر، يوسائبان وو ( لکه وريځ غوندي) ﴿ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُۥ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ﴾ اوددوی يقين شوچي بېشکه هغه (غر) پردوی راپرېوتونکی دی ( که چېري دالله دامرامتثال ونکړي) مفسرين کرام وايې چي: داسي روايت شوی چي دوی دتورات داحکامو له منلو څخه چي درانه اوسخت وو ممانعت وکړنوالله يې په سرباندي دطورغردچترپه شان ودراوواودوی ته وويل شول که مودتورات احکام ومنل نه ترڅنه اوکه نه دغه غربه درباندي راپرېوزي نوکله چي دوی غره ته وکتل هريويې پرمخي دسجدې په حال کي له ډېري ولوېدل بياالله وفرمايل: ﴿ خُذُوا۟ مَآ ءَاتَيْنَٰكُم بِقُوَّةٍ ﴾ او( وموويل دوی ته چي) ونيسئ تاسي هغه ( تورات ) چي درکړی مودی تاسي ته په قوت ( زورعزيمت) سره ﴿ وَٱذْكُرُوا۟ مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ ( اويادکړئ هغه (احکام) چي په ده کي دي ښايې چي تاسي ځانونه (له ګناهونو ) وساتئ ) يعني هغه حکمونه چي پکې دي په هغو عمل وکړئ ترڅو دمتقينو په ډله کي شئ. ﴿ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنۢ بَنِىٓ ءَادَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ﴾ (او( يادکړه اې محمده ! ) هغه وخت چي واخيست رب ستاله بني آدمو څخه له شاګانو ددوی څخه اولاده ددوی ) طبري وايې: معناداچي اې محمده ! يادکړه هغه وخت کله چي الله بني آدمان دپلرونوله شاګانو راوايستل اوبيايې خپل توحيد ورته ورباندي کړهغوی ومانو او ځيني ددوی په ځينونوروشاهدان شول (٢) ﴿ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا۟ بَلَىٰ ۛ شَهِدْنَآ ۛ ﴾ اوشاهدان يې کړل دوی پرځانونوخپلو باندي ( اووفرمايل الله دوی ته ) آيانه يم زه رب ستاسي ؟ وويل دوی ( اواقراريې وکړ ) هو ! ته رب زموږيې ) ګواه کړو موږخپل ځانونه ) يعني دوی يې پخپل ربوبيت

---

(١) الصحاح مادة لهث

(٢) مفسرين پدې آيت کي دوه خبري کوي يوه داچي کله الله جل جلاله آدم عليه السلام پيداکړنو دده له ملايې زوزات دکوچنيو مېږيانو په مثل پيدا اووپنځول اوعهديې ځيني واخيست چي الله ددوی رب دی پدې اقرار شول اوشاهدي يې ورکړه دغه معناپه حديث شريف کي هم راغلي چي روايات يې د بردي اويوې تولی. اصحابو هم دغسي ويلي دي. دوهم داچي دغه دتمثيل اوتخيل په ډول دی معنايې داچي الله پاک دوی ته پخپل ربوبيت اووحدانيت باندي دلائل راوړي اوددوی عقلونواوپوهي هغه منلي اوداېې دضلالت اوهدايت ترمينځ تميز ګرځولی لکه چي دوی يې پخپل ځان ګواه (شاهد ) ګرزولي دي اوورته ويلي يې دي چي (الست بربکم ) اودغه دوهمه رايه زمخشري او ابو السعود غوره کړي خولومرنی ترټولو سمه ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اووحدانيت اقرارکړل ﴿ أَن تَقُولُواْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَـٰذَا غَـٰفِلِينَ ﴾ ( د دې جهته ) چې ونه وايئ تاسي په ورځ د قيامت کي چې بېشکه موږ له دغه توحيده ناخبران وو ) يعني چې تاسو د حساب په ورځ ونه واياست چې موږ په ربوبيت دالله له دغه عهد او ټينګي وعدې څخه غافلان اوناخبره وو ﴿ أَوْ تَقُولُوٓاْ إِنَّمَآ أَشْرَكَ ءَابَآؤُنَا مِن قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنۢ بَعْدِهِمْ ﴾ ( يا(د دې جهته ) چې و( نه ) وايئ تاسي چې بېشکه هم دا خبره ده چې شرک غوره کړی وو پلرونو زموږ پخوا ( له موږ ) اوو موږ اولاده پس له دوی نه ) يعني او همدارنګه چې تاسي ونه واياست چې موږ خو شرک نه دی کړی زموږ پلرونه پخواله موږ مشرکان وو اوموږ د دوی لاره ونيوه نوموږ معذور يو ﴿ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴾ ( نو آيا هلاکوې موږ په هغه کارباندي چې کړی وو باطل عمل کونکو( مشرکانو ) ؟ يعني آيا نه موږ د دوی د شرک په سبب هلاکوې ؟ په داسي حال کي چې موږ له حقه ناخبره او د دې ګمراهانو پيروي موکړي وه

﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْـَٔايَـٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ او هم داسي (لکه بيان د مېثاق ) په تفصيل سره بيانوو آيتونه د قدرت ( لپاره د خلګو ) د پاره د دې چې ښايې دوی راوګرزي ( له چټي کارونو: په باطل اصرار او د پلرونو له تقليده نه ) ﴿ وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ٱلَّذِىٓ ءَاتَيْنَـٰهُ ءَايَـٰتِنَا فَٱنسَلَخَ مِنْهَا ﴾ او( ولوله اې محمده ! ) پر دغو ( يهودانو يا خپل قوم ) خبر د هغه ( چا ) چې ورکړی وو موږ هغه ته (علم) د آيتونو خپلو نو راووت ( او بېزارشو په کفر سره ) (له هغو آيتونو ) يعني ولوله اې محمد ! په يهودانو دهغه عالم کيسه چې موږ هغه ته دکوم کتاب علم ورکړی وو خو هغه داسي له آيتونو ووت لکه چې مار له خپلي څرمني وزي چې اعراض يې وکړ اوکافرشو ﴿ فَأَتْبَعَهُ ٱلشَّيْطَـٰنُ ﴾ نو ورپسي شو شيطان ﴿ فَكَانَ مِنَ ٱلْغَاوِينَ ﴾ ( نو شو له ګمراهانو ) يعني نو شيطان ورپسي شو وربانديي غلبه يې وکړه ترڅو يې د ګمراهانو په ډله کي ودراوو وروسته له هغه چې له مهتدينو او لارموندونکو څخه وو. ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې: دغه ( بلعم باعورا ) وو هغه ته دالله ﷻ اسم اعظم معلوم وو . ابن مسعود رضی الله عنه بيا وايي چې : دغه د بني اسرائيلو يوتن وو چې د قاصد په توګه حضرت موسی عليه السلام هغه د ( مدين ) باچاته ورولېږل خو باچا ده ته رشوت ورکړ باچهي ته يې وهڅاوو چې د موسی دين پرېږدي او د باچا دين ومني ده هم هغسي وکړل او خلګ يې په ده ګمراهان کړل(١) ﴿ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَـٰهُ بِهَا وَلَـٰكِنَّهُۥٓ أَخْلَدَ إِلَى ٱلْأَرْضِ وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ ﴾ اوکه اراده فرمايلي وای موږ نو خامخا پورته کړي به وو موږ دوی په دې آيتونو سره ( دابرارو علماوو مقام ته ) ولکن دی ( دنياته مائل شو ) ځمکي ته يې مينه وکړه او متابعت يې دخپلي هوا وکړ(نو اسفل سافلين ته ولوېدو ) ﴿ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ﴾ نو مثال د ده ( په خساست او دناتت کي ) په شان د سپي دی چې که حمله پرې وکړې ( يا يې کوري اوڅغه کړې ، ويې شړې نو ژبه راباسي اوغاپي اوکه يې پرېږدې اوځه نه ورته وايې هم ژبه راباسي او هونګېږي دغه په بلاغت کي خوراوتلی تمثيل دی ﴿ ذَّٰلِكَ مَثَلُ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَـٰتِنَا ﴾ ( دغه تېرمثال ) مثال دهغه قوم دی چې زموږ آياتونو ته د دروغو نسبت کوي ) يعني دغه بدمثال د هر هغه چالپاره دی چې دالله جل جلاله په

(١) التسهيل ٢/٥٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



آيتونو باندي دروغ تړي او پټې کي يهودانو ته ګوت نيونه او تعريض دی څخه تورات ورکول شوی او دنبي ﷺ صفت بې پېژندلی خو کله چي پيغمبر صلی الله عليه وسلم مبعوث شو او دوی وپېژانده ورباندي کافران شول او دتورات له حکم څخه منسلخ او وتل ﴿ فَٱقْصُصِ ٱلْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ نو بيان کړه دوی ( ستا امت ) ته دغه کيسې بنايې چي دوی (پکې) فکرو کړي ( پند واخلي ) ﴿ سَآءَ مَثَلًا ٱلْقَوْمُ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَا وَأَنفُسَهُمْ كَانُوا۟ يَظْلِمُونَ ﴾ بد مثال دی ( مثال د ) قوم هغه چي نسبت د دروغو بې کړی وي آيتونو زموږ ته ﴿ وَأَنفُسَهُمْ كَانُوا۟ يَظْلِمُونَ ﴾ او په ځانونو خپلو وو دوی چي ظلم به بې کاوو ) يعني پدغه تکذيب دوی له خانه پرته په بل چا ظلم نه کاوو څکه چي وبال بې دوی ته راجع وو ﴿ مَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلْمُهْتَدِى ۖ وَمَن يُضْلِلْ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَـٰسِرُونَ ﴾ (هرچا ته چي هدايت وکړي ( سمه لاره وښيې ) ) الله نو هغه د هدايت موندونکی دی او هر هغه څوک چي ګمراه کړي (ده لره الله) نو دغه ګمراهان هم دوی زيانکاران دي) يعني چا ته چي الله لاره وښيې هغه نېکمرغه دی او څوک چي ګمراه کړي هغه ارومرو نا اميد او په خسران کي دی له آيت څخه مقصد دا چي هدايت او ضلالت دالله په يد قدرت کي دي ﴿ وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ ۖ ﴾ او خامخا په تحقيق پيدا کړي دي موږ لپاره د دوزخ ډېر کسان له پېريانو او انسانانو ( چي د دوزخ شومه او ازو غه شي مراد له دې څخه هغه څوک دی چي ازلي بد مرغه او اشقياء وي ﴿ لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا ﴾ (چي) دوی لره زړونه دي (پوچ) چي دوی په هغو سره په هيڅ نه پوهېږي ( حق نه پېژني ) ﴿ وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا ﴾ او دوی لره داسي (بې فائدې ) سترګي دي چي نهويني دوی په هغو سره ( دلائل د قدرت دالله) ﴿ وَلَهُمْ ءَاذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَآ ۚ ﴾ او دوی لره داسي ( بېکاره ) غوږونه دي چي نه اوري په هغو سره آيتونه دالله او نه پندونه وعظونه په سماع دقبول او منلو سره اوري مقصد د دوی د زړونو ، سترګو او غوږونو نېستي نه ده بلکه دا چي په دين کي دوی ته ګټه نه وررسوي ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ كَٱلْأَنْعَـٰمِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ ﴾ دغه کسان په شان د چارپايانو دي ( په نه پوهېدلو ، اورېدلو او ليدلو کي بلکه ترحيواناتو لا هم بد دي څکه هغوی خپلي ګټي او تاوانونه پېژني خو دغه کسان بې نه پېژني څکه نو اور د دوزخ ته ور روان دي ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْغَـٰفِلُونَ ﴾ دغه کسان هم دوی غافلان دي يعني په غفلت کي ډوب دي ﴿ وَلِلَّهِ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ فَٱدْعُوهُ بِهَا ۖ ﴾ (او خاص الله لره دي ( ټول ) نومونه ډېر ښه نو و بولئ دغه ( الله ) په هغو سره ) يعني الله لره ډېر ښه نومونه دي څکه له ښو معانيو څخه آګاهي ورکوي نو په دغو نومونو بې وبولئ ﴿ وَذَرُوا۟ ٱلَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِىٓ أَسْمَـٰٓئِهِۦ ۚ ﴾ او پرېږدئ هغه کسان چي ( له ډېره ناپوهي ) کوږوالی کوي په نومونو دده کي يعني پرېږدئ هغه څوک چي دالله جل جلاله په نومونو کي له حق څخه ميلان کوي لکه مشرکان چي دالله له نومونو څخه به بې د بتانو لپاره نور نومونه را ايستل چي لات بې له الله ، عزی بې له عزيز منات بې له منان څخه مشتق کړي وو ﴿ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ ژر به دوی ته ( په آخرت کي ) د هغو کارونو سزا ورکول شي چي دوی به کول ﴿ وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴾ او ځيني له هغو کسانو چي پيدا کړي دي موږ يو امت دی چي لاره ښيې خلګو ته په حقه او په هم دې (حق) سره برابري کوي ( په ټولو معاملاتو کي ) يعني ځيني له امتونو څخه هغه امت دی چي موږ پيدا کړی دالله په

Bawar.net



شریعت قولا اوعملا منګولي لګوي اوخلګ حق ته رابولي په هغه عمل اوفیصلې کوي. ابن کثیروایي چې پدې آیت کي مراد محمدي امت دی ځکه حدیث شریف دی چې: لاتزال طائفة من امتی ظاهرین علی الحق لایضرهم من خذلهم ولامن خالفهم حتی یأتی أمرالله وهم علی ذلک([1]) یعني تل ترتله به په حق باندي وي یوه ټولی زما له امته بریمند، دوی ته به هغه هغه کسان چې ددوی ملاتړیې نه وي کړی اویاورسره مخالف وي زیان نشي رسولای ترڅوچې قیامت راځي اودوی به هغسې (په لوړتیاکي) وي. دغه طائفه په کومي ځانګړي زماني پوري خاص نه ده بلکه په هروخت اوهرځای کي شته نواسلام خوتل په لوړتیاکي وي پرهغه بل څه نه دپاسه کېږي که څه هم فاسقان د براواشرار دمځکي مخ ونیسي خوبیاهم دوی ته اعتبار نشته اونه هم غالب کېدلای شي اوپه حدیث شریف کي دغه محمدي امت ته سترزېری دی چې اسلام په لوړتیا اوهمداراز مسلمان په اوچتېدلوکي دی ترڅوچې قیامت راځي

﴿ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (اوهغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آیتونوزموږ ته ژربه موږ دوی ونیسوله داسي لوري چې دوی به نه پوهېږي) یعني هغه کسان چې قرآن دروغ بولي دمځکې له خلګونه اویانوروڅخه موږ به یې لږ لږ ونیسو اوهلاکت ته به یې نژدې کړو چې دوی به ونه پوهېږي. بیضاوي وایې هغه داسي چې پرله پسې نعمتونه ورکړي دوی به ګمان کوي چې دا دالله لطف اومهرباني ده نولازیات به کبر غوره کړي اوپه سرغړونه کي به غوپه شي ترڅو دعذاب وړاومستحق شي([2]) ﴿ وَأُمْلِي لَهُمْ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴾ اوزه دوی ته مهلت ورکوم بېشکه چې کید (حیله ،نیونه) زما ډېرسخت دی لکه چې په حدیث شریف کي راځي (ان الله لیملي للظالم حتی اذا أخذه لم یفلته) یعني الله پاک ظالم ته مهلت ورکوي ترڅویې نیسي اوکله چې ونیسي بیایې نه خوشی کوي دغه عذاب ته چې یې (کید) ووایوځکه ظاهریې احسان اوباطن یې خذلان دی ﴿ أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِهِم مِّن جِنَّةٍ ﴾ آیا فکر ندی کړی دغو (مکذبینوپه آیتونوچې پوه شوي به وي په دې باندي) چې نشته په ملګري ددوی پسي هیڅ یو حال (لېونتوب) بلکه هغه دالله حق استازی دی چې ددوی دلارښووني لپاره یې رالېږلی دی اود مشرکینو د هغه وینا نفی کول دي چې دوی به ویل هغه مجنون دی ﴿ وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ﴾ الحجر: ۶ ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ نه دی دغه (صاحب) مګر (خو دی) یو وېرونکی ښکاره (دهغه چالپاره چې عقل زړه اودماغ لري اوپوهېږي ﴿ أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ (آیادوی نظرنه کاوو (داستدلال په ډول) په سلطنت دآسمانونواو ځمکي کي) چې په ستره پاچهي اوبشپړقدرت دلالت کوي استفهام دلته دانکار، تعجب اوتوبیخ لپاره دی ﴿ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ ﴾ (اوپه هغه کي چې پیداکړي دي الله له هرشي څخه) یعني اودلوی خدای په مخلوقاتو کي چې لوی اوواړه دي فکرنه کوي؟ چې دالله جل جلاله په بشپړ قدرت اودمالک په سترشان اوډ خالق په یووالي دلالت کوي

﴿ وَأَنْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ ﴾ (او (بل پدې کي فکرنه کوي) چې ښایې چې وي (داخبره) چې به تحقیق نژدې شوي به وي وعده ددوی) یعني اودادي فکروکړي چې ښایې دوی به په دانژدې کي مره شي نوپه بېړه دي سوچ اونظروکړي چې څه شی به دوی دالله له عذاب څخه ژغوري؟ تریخواله دې چې دوی ته اجل ورسېږي

---

([1]) المختصر ۲/۷ حدیث شریف په صحیحینو کي دی.
([2]) البیضاوي ص: ۲۰۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَهُۥ يُؤْمِنُونَ ﴾ نو په کومې (يوې) خبرې پس له دې (قرآنه) دوی ايمان راوړي؟ سره له دې چې دغه قرآن وروستي حد ته په بيان او وضاحت کې رسېدلی دی. ﴿ مَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَا هَادِيَ لَهُۥ ﴾ (هرڅوک چې ګمراه کړي الله نو نشته هيڅ لارښونکی ده ته) يعني چا ته چې الله ګمراهي ليکلې دي هيڅوک يې سمې لارې ته رهبري کولای نشي ﴿ وَيَذَرُهُمْ فِى طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ او (الله) پرېږدي دوی په سرغړونو خپلو کې په داسې حال کې چې حيران او سرګردانه ګرزي.

## بلاغت:

۱- ﴿ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ ﴾ دلته التفات شوی له متکلم څخه مخاطب ته ځکه اصل خو داوو چې (واذاخذنا) وای خو چې غائب يې راوړی نکته پکې داده چې په خطاب کولو سره د رسول تعظيم وشي چې دغه تعظيم له اضافت څخه ښه څرګند ېږي او په آيت شريف کې وروسته له ابهام څخه بيان او له اجمال څخه تفصيل راغلی دی.

۲- پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ فَٱنسَلَخَ مِنْهَا ﴾ يعني يو مخ ايزه ځني ووت لکه چې پسه له پوستو کې څخه وايستل شي. ابو السعود وايي له وتلو څخه په انسلاخ تعبير کول د دې آګاهي او خبرتيا پاره دی چې په بشپړه توګه سره بېل شول وروسته له هغه چې په بشپړه توګه سره يو ځای او پتلېزوو[1]

۳- ﴿ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ﴾ پدې کې تمثيلي تشبيه ده يعني دده حال په بدوالي کې د هغه خسيس سپي چې تر ټولو حيواناتو سپک او په هر حال کې غاپي او ژبه راباسي که آرام وي او که ستړی نو دغه تصوير له متعدد څخه اخيستل شوی ځکه ورته تمثيلي تشبيه ويله کېږي.

۴- پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ كَٱلْأَنْعَٰمِ ﴾ دلته مرسله مجمله تشبيه ده.

## فائده:

له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت کېږي چې ﴿ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا۟ بَلَىٰ ﴾ هغه وايي چې که چېرې دوی (نعم) په جواب کې ويلي وای نو به کافران وو ځکه چې د (نعم) معنا په نفي او ايجاب سره د مخبر تصديق دی نو لکه چې دوی پدې اقرار کړی وي چې هو ته زموږ رب نه يې او واد ﴿ بَلَىٰ ﴾ په خلاف ځکه هغه د خواب حرف او په نفي پورې اختصاص لري چې د معنا ابطال کوي او معنا يې داسې راځي چې هو ته زموږ رب يې او که چېرې يې (نعم) ويلي وای نو معنا به يې داوه چې هو ته زموږ رب نه يې دغه د ابن عباس رضی الله عنه د قول سبب دی ورته خبرشه باريکه خبره ده.

## تنبيه:

د ترمذي په روايت په حديث شريف کې راځي چې: ان لله تسعة وتسعين اسما من احصاها دخل الجنة) يعني د الله ﷻ نه نوي (۹۹) نومونه دي چا چې وګڼل جنت ته به داخل شي علماء کرام وايي چې: معنا دا چې يادېې کړي او په مدلول کې يې سوچ او فکر وکړي نو به جنت ته داخل شي، د حديث شريف د امرادنه دی چې د الله ټول نومونه همدا دي ځکه چې په بل حديث شريف کې راځي ( اسألک بکل اسم سميت به نفسک اواستأثرت به في علم الغيب عندک) يعني زه سوال کوم ستا په هر نامه چې تا ورباندې ځان نومولی او يا دې له ځانه سره په علم غيب کې خوندي کړي دي.

---

[1] ابو السعود ۲/ ۳۶۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ابن عربي له ځينو کسانو څخه يادونه کوي چي هغوی وايي: دالله جل جلاله يوزرنومونه دي.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلسَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَىٰهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ رَبِّى ۖ لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَآ إِلَّا هُوَ ۚ ثَقُلَتْ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً ۗ يَسْـَٔلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِىٌّ عَنْهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨٧﴾ قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِى نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۚ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ لَٱسْتَكْثَرْتُ مِنَ ٱلْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِىَ ٱلسُّوٓءُ ۚ إِنْ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿١٨٨﴾ ۞ هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا ۖ فَلَمَّا تَغَشَّىٰهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا فَمَرَّتْ بِهِۦ ۖ فَلَمَّآ أَثْقَلَت دَّعَوَا ٱللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ ءَاتَيْتَنَا صَٰلِحًا لَّنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ﴿١٨٩﴾ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُمَا صَٰلِحًا جَعَلَا لَهُۥ شُرَكَآءَ فِيمَآ ءَاتَىٰهُمَا ۚ فَتَعَٰلَى ٱللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿١٩٠﴾ أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْـًٔا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾ وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا وَلَآ أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٢﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى ٱلْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنتُمْ صَٰمِتُونَ ﴿١٩٣﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ ۖ فَٱدْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا۟ لَكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿١٩٤﴾ أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۗ قُلِ ٱدْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ ﴿١٩٥﴾ إِنَّ وَلِۦِّىَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى نَزَّلَ ٱلْكِتَٰبَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿١٩٦﴾ وَٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَآ أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٧﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى ٱلْهُدَىٰ لَا يَسْمَعُوا۟ ۖ وَتَرَىٰهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿١٩٨﴾ خُذِ ٱلْعَفْوَ وَأْمُرْ بِٱلْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴿١٩٩﴾ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ ۚ إِنَّهُۥ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٠٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ إِذَا مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ ٱلشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا۟ فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴿٢٠١﴾ وَإِخْوَٰنُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِى ٱلْغَىِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴿٢٠٢﴾ وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِم بِـَٔايَةٍ قَالُوا۟ لَوْلَا ٱجْتَبَيْتَهَا ۚ قُلْ إِنَّمَآ أَتَّبِعُ مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ مِن رَّبِّى ۚ هَٰذَا بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠٣﴾ وَإِذَا قُرِئَ ٱلْقُرْءَانُ فَٱسْتَمِعُوا۟ لَهُۥ وَأَنصِتُوا۟ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٢٠٤﴾ وَٱذْكُر رَّبَّكَ فِى نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ ٱلْجَهْرِ مِنَ ٱلْقَوْلِ بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْـَٔاصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْغَٰفِلِينَ ﴿٢٠٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِۦ وَيُسَبِّحُونَهُۥ وَلَهُۥ يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢٠٦﴾ ﴾

الأعراف: ١٨٧ - ٢٠٦

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله جل جلاله دهغو کسانو چي د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په دعوت يې ملنډي وهلې دريز ذکر کړ دلته يې دهغوی دعناد او استهزاء يوه بېلګه راوړه چي پيغمبر ته يې ويل قيامت به کله وي؟ وروسته يې د مشرکينو دعقائدو بطلان ياد کړ چي دبتانو عبادت يې کاوو په پای کي سورت مبارک دقرآن کريم دشان عظمت بيانوي او دا فرمايي چي دقرآن دلوستلو په وخت کي استماع او انصات لازمي دی

Bawar.net



## لغتونه:

(مرساها) استقرار دهغې اوله دې څخه اخيستل شوي (رست السفينة) كله چې ودرېږي او استقرار ومومي (يجليها) له تجلي څخه اخيستل شوي او هغه ځرګندېدل و.كشف او اظهار ته وايي (حفى) مبالغه كونكى ديوشي په هكله. احفاء لكه چې وايي: (احفاء الشوارب) يعني په بيخ اخيستل دبريتونو او حفي په شي باندې يعني كله چې د هغه دپېژندګلوي په باب زياته څېړنه اوبحث كوي (العرف) نېک كار هغه ته ويل كېږي چې عقل يې خوښوي او زړه ځني مطمئن وي (الآصال) دأصيل جمع ده اوجوهري وايي چې: دغه له مازيګره وروسته ترمانبامه وخت ته ويل كېږي([1])

## دنزول سبب يې:

روايت كېږي چې مشركانو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل كه چېري ته نبي يې نو موږ ته دقيامت دپېښېدلو وخت راوښيه([2])

## تفسير:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلسَّاعَةِ ﴾ (پوښتنه كوي له تا (اې محمده! دقيامت له حاله ﴿ أَيَّانَ مُرْسَىٰهَا ﴾ (چې كله به وي وخت دقيام دهغه) يعني كله به پېښېږي او قيامت ته چې (ساعت) وويل شوځكه چې په سرعت سره به پکې حساب كېږي الله فرمايي: ﴿ وَمَآ أَمْرُ ٱلسَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ ٱلْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ﴾ النحل: ٧٧ ﴿ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ رَبِّى ﴾ ووايه (دوى ته بېشكه خبره هم داده چې علم دده په نزد درب زمادى يعني هيڅوک يې دوقوع په وخت پرته له الله سبحانه وتعالى نه پوهېږي اوبيايې ددغې خبرې تاكيدهسې وفرمايل: ﴿ لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَآ إِلَّا هُوَ ﴾ (نه ښكاروي) داقيامت هيڅوک په وخت دده كې مګر (ښكاروي يې) همدغه (الله) هغه يې په وخت باندې عالم اوپوه دى ﴿ ثَقُلَتْ فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ (درونددى (دقيامت وېره) په (مخلوقاتود) آسمانونو او(مخلوقاتود) ځمكې) يعني دوى دقيامت له شدائدو اوسختيو څخه دارېږي([3]) ﴿ لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً ﴾ رابه نشي دغه قيامت) تاسي ته مګرناڅاپه ﴿ يَسْـَٔلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِىٌّ عَنْهَا ﴾ پوښتنه كوي دوى له تانه (اې محمده!) ګواكي ته مبالغه كونكى يې (په سوال كې) له قيامته) سخت غوښتونكى يې دپېژندګلوي دقيامت ﴿ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ ٱللَّهِ ﴾ (ووايه چې بېشكه علم ددغه (قيامت خاص) په نزد دالله دى) يعني له الله پرته بل چاته علم نشته چې كله به قيامت وي او داله غيبي امورو څخه دى چې الله جل جلاله دځان لپاره غوره كړى هغه علام الغيوب ذات دى ﴿ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليكن زياتره خلک پدې نه پوهېږي چې په څه سبب يې

---

([1]) الصحاح مادة ـ أصل ـ

([2]) القرطبي ٣٣٥/٧

([3]) دغه دقتاده رضى الله عنه قول دى چابياويلي چې پټ دى علم ددغه قيامت په اهل دآسمانونو اوځمكې باندې.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله جل جلاله وخت نامعلوم کړیدی. امام فخر رازي رحمه الله وايي دقيامت دوخت په پټولو کي حکمت دادی چي کله خلک پدې ونه پوهېږي چي قيامت به کله وي نوبه په وېره کي وي طاعات به کوي اوله ګناه به ځان ساتي[1]

﴿ قُل لَّآ أَمۡلِكُ لِنَفۡسِي نَفۡعٗا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُۚ ﴾ (ووايه (اې محمده ! دوی ته) چي زه واک نلرم لپاره دځان خپل (درسولو) دګټي اونه د دفع کولو) دتاوان مګرهغه چي الله اراده فرمايي) نوځرنګه به دقيامت معلومات ولرم ﴿ وَلَوۡ كُنتُ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ لَٱسۡتَكۡثَرۡتُ مِنَ ٱلۡخَيۡرِ ﴾ (اوکه وي چي زه پوهېدلای په (خبرو) دغيب نوخوامخواه به مي حاصل کړي وو ډېرله نفعي څخه) يعني که زه په پټوامورو خبروای نوبه مي ډېري دنيوي ګټي اوفائدې ترلاسه کړي وای اوله آفاتو مشکلاتو به مي ځان ژغورلی وای ﴿ وَمَا مَسَّنِيَ ٱلسُّوٓءُۚ ﴾ (اونه به وو رسېدلی ماته کوم زيان) يعني که زه په غيبو خبروای نوله هرتکليف څخه به مي ځان ساتلای خوزه خبرنه يم ځکه راته هغه مقدرخيراوشررسېږي ﴿ إِنۡ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٞ وَبَشِيرٞ ﴾ نه يم زه (خويم) زه وېرونکی اوزېری کونکی ﴿ لِّقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ ﴾ (دپاره د (هغه) قوم چي مؤمنان دي) يعني باورلري په هغه چي ماد الله جل جلاله له لوري دوی ته راوړي دي ﴿ هُوَ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفۡسٖ وَٰحِدَةٖ ﴾ هم دغه الله هغه ذات دی چي پيداکړي يې تاسي له يوه نفس څخه (چي) آدم عليه السلام دی ﴿ وَجَعَلَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا ﴾ اوپيداکړي يې ده له دې نفس څخه ښځه دده ﴿ لِيَسۡكُنَ إِلَيۡهَاۖ ﴾ چي آرام ونيسي له دې سره ﴿ فَلَمَّا تَغَشَّىٰهَا حَمَلَتۡ حَمۡلًا خَفِيفٗا ﴾ نوکله چي نارينه پټه کړه دغه ښځه (جماع کوروالی يې ورسره وکړ) نوحامله شوه (په جنين) په حمل سپک سره (بې تکليفه ځکه په لومړي پيل کي نطفه وه. ابوالسعود وايي چي کله په لومړي سرکي دغه حمل نطفه اوعلقه وه نونسبت مابعد ته سپکه وه اود سپکوالي يادونه يې دالله د نعمت لوري ته اشاره کول دي چي هغه يې په تدريجي توګه لويول ترڅو يې له عدم څخه وجودته وباسي اوله ضعف څخه يې قوت اوتوانايي ته لېږدوي[2] ﴿ فَمَرَّتۡ بِهِۦۖ ﴾ نوتله راتله به له دې حمل سره (ترځويې مېلاد را ورسېږي) ﴿ فَلَمَّآ أَثۡقَلَت ﴾ نوکله چي دروند شو حمل (اوداپه هغه درنه شوه ځکه ماشوم يې په ګېډه کي سترشو) ﴿ دَّعَوَا ٱللَّهَ رَبَّهُمَا ﴾ نوسوال وکړ دواړو له الله رب (پروردګار) اومالک دچارو) ددوی نه ﴿ لَئِنۡ ءَاتَيۡتَنَا صَٰلِحٗا لَّنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ﴾ چي قسم دی خامخا که راکړې ته موږ ته صالح (روغ رمټ ولد) نوخامخا شوبه موږ هرو مرو له شکرايستونکو (ستا په نعمتونو باندي) ﴿ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُمَا صَٰلِحٗا ﴾ نوکله چي ورکړ دوی دواړوته الله صالح روغ (ولد) ﴿ جَعَلَا لَهُۥ شُرَكَآءَ فِيمَآ ءَاتَىٰهُمَاۚ ﴾ (نووګرځول دوی دواړوالله ته شريکان په هغه کي چي الله دوی ته ورکړ) يعني ويې ګرځول دغه اولاداوذوذات له الله سره شريکان چي دبتانواوثانوعبادت يې وکړ ﴿ فَتَعَٰلَى ٱللَّهُ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴾ (نوپورته دی الله له هغه چي دوی (اولاده ددوی

---

[1] الفخر الرازي ۴/ ۴۸۴

[2] ابوالسعود۲ ـ ۲۱۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

يې له ده سره ) شريکوي )([1]) يعني پاک دى الله له هغه څه چي دوى ورته د شرک نسبت کوي ﴿ أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا ﴾ ( آيا شريک ګرځوي دوى ( له الله سره ) هغه شى چي نشي پيدا کولى هيڅ څېز؟ ) استفهام د توبيخ لپاره دى يعني دوى هغه څوک چي د هيڅ شي په پيدا کولو قادر نه دي له الله سره شريک ګرځوي ﴿ وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴾ حال دا چي دغه بتان پيدا کاوه شي ( نو څرنګه به له الله سره د عبادت وړ وګڼل شي. قرطبي وايي چي: (ضمير جمع په واو او نون سره د دې لپاره دى چي د دوى باور ( عقيده ) وه چي بتان ګټه او زيان رسولاى شي نو د خلکو په ضمير سره ښکه جمع شول ([2]) ﴿ وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا ﴾ او توان نلري دغه ( بتان ) لپاره د دغو ( عابدانو خپلو له ) د مرستي کولو ﴿ وَلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴾ او نه له خپلو ځانونو سره مرسته کولاى شي ( چي کله څوک دوى ته زيان ور رسوي دوى يو مخ ايزه عاجزان او ذليل وي نو څرنګه به د عبادت وړ وګڼل شي ﴿ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ﴾ او که تاسي رابولئ دوى سمي لاري ته نو دوى ستاسي متابعت نه کوي ) يعني دوى جمادات دي کله چي يې خير او ښېګني ته رابولئ دوى يې اجابت نشي کولاى ﴿ سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنتُمْ صَامِتُونَ ﴾ . ( برابره ده پر تاسي ( دغه خبره ) چي آيا بولئ تاسي ( دوى ) او که تاسي چُپ ياست ( له بلني څخه يې ) يعني ستاسو بلنه او سکوت دواړه د دوى په عدم افاده کي مساوي دي ابن کثير وايي: معنا دا چي دغه بتان د چاغږ نه اوري او دا او رباندى برابره ده که څوک ورته غږ کوي، يا يې څوک پلنوي (په لته وهي) لکه چي الله له ابراهيم عليه السلام څخه حکايت کوي ﴿ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴾ مريم: ٤٢ ([3]) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ ﴾ بېشکه هغه کسان چي عبادت کوئ تاسي (د دوى بولئ يې ( اې مشرکانو ) بې له الله مملوکان دي په شان ستاسو ) يعني اې مشرکانو د کومو کسانو چي تاسو پرته له الله عبادت کوئ او بتان دي تاسو هغوى معبودان بولئ دوى ستاسي په شان مخلوقات دي بلکه خلګ تر هغوى زيات کامل دي ښکه چي ويني ، اوري او نيسي مګر دغه بتان دا هيڅ نشي کولاى ښکه يې وفرمايل: ﴿ فَادْعُوهُمْ

---

([1]) موږ دغي رايې ته ښکه ولاړو چي محققينو علماوو ترجيح ورکړي او روښانه ده څينو مفسرينو ويلي چي آيت شريف د آدم عليه السلام او حواء رضى الله عنها په هکله دى او ضمير د الله په دې قول کي چي ﴿ جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ ﴾ دوى دواړو ته راجع دى او پدې هکله يې احاديث او آثار هم روايت کړي دي يو دا چي سمرة رضى الله عنه مرفوع روايت کوي چي: کله حواء ته به الله ماشوم ورکړ نو ابليس به ورته راغى نو اولاديې نه پاتېدو ابليس ورته وويل چي ( عبد الحارث ) نوم ورباندي کښېږده بيا به ژوندى پاته شي نو هم هغه وو چي دغه نوم يې ورباندي کېښود او هغه (پايندى )ژوندى پاتي شو او دغه شيطاني وحى وه ) رواه احمد والترمذي. حافظ ابن کثير وايي چي په دغه حديث کي درې کمزورۍ دي او دې ته يې ترجيح ورکړي چي حديث موقوف دى او هغه چي کوم آثار راغلي ضعيف يې ګڼلي او بيا يې پخپل سند له حسن رحمه الله څخه راوړي چي هغه وويل: دغه په څينو ملتونو کي وو د آدم عليه السلام په هکله نه دى ابن کثير وايي چي: موږ د حسن بصري په مذهب يو چي هغه پدې هکله وايي دغه سياق د آدم عليه السلام سره نه دى بلکه مراد څيني د هغه د اولادې مشرکان دي او دليل يې د الله دغه وروستنى قول دى چي فرمايي: ﴿ فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ زه وايم چي هم دا خبره حق دى او تري ګرځيدا نشته.

([2]) القرطبي ٣٤١/٧

([3]) المختصر ٧٥/٢

Bawar.net



فَلْيَسْتَجِيبُوا۟ لَكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ نو بولئ تاسي دوی نوودي مني دوی ستاسي بلنه که تاسي (پدې دعوا ) کي ربښتني یاست ( چي دوی خدایان دي) دغه امر د تعجیز اوتبکیت لپاره دی یعني تاسو دوی دګتې درکولو اوزیان دڅغورلو لپاره دروبولئ که تاسو په رښتیایاست لکه چي تاسو دعوا لرئ چي دوی خدایان دي (١)﴿ أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَآ ﴾ (آیاشته دوی ته پښې چي ور باندي تګ کوي ؟) دغه توبیخ وروسته له بل توبیخ دی او همدا راز داوروستی استفهام د تکولو اوترتلو لپاره دی ﴿ أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَآ ﴾(آیاشته دوی ته داسي لاسونه چي دوی په هغو نیول کوي ؟(دهغه چاچي دوی ته زیان رسوي) ﴿ أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَآ ﴾ آیاشته دوی ته (داسي ) سترګي چي دوی په هغو لیدل کوي (دشیانو )؟﴿ أَمْ لَهُمْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ﴾ آیاشته دوی ته (داسي ) غوږونه چي په هغو دوی اورېدل کوي (دغږونو ) غرض له دې ټولونه ددوی دجهالت اوتسفیه څرګندول دي چي دوی دداسي جماداتو عبادت کوي چي نه اوري ، نه ویني او نه له خپل عبادت کونکي څخه څه ګرزولای شي څکه دوی حواس نلري او (فاقد الشئ لایعطیه ) څښتن (چي پخپله نیني خوري سپي نه به څه ورواچوي ) انسان خوله دغو بتانو څخه دېر زیات بهتر او غوره دی هغه دعقل اوحواسو درلودونکی دی نو څرنګه به اشرف او اکمل د أخس اوارذل دعبادت کولو لپاره ښایې هغه چي نه ګټه وررسولای شي او نه ورڅخه زیان دفع کولای شي؟﴿ قُلِ ٱدْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ ﴾ (ووایه ( اې محمده دوی ته ) چي راوبولئ تاسي شریکان خپل) یعني ستاسي بتان راوبولئ اوزما په وړاندي ددوی مرسته وغواړئ ﴿ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ ﴾ (بیا (په خپلو تدبیرونو سره ) ضرروورسوئ ما ته پس ماته مهلت مه راکوئ ) دستر کوپه رپ کي زه ستاسي پروانلرم څکه زما په الله جل جلاله اعتماددی . حسن رضی الله عنه وایې دوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته پخپلو خدایانو بتانو وېره ترهه ورکوله نو الله جل جلاله ورته امر وکړچي دا دول ځواب ورکړي ﴿ إِنَّ وَلِـِّۧىَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى نَزَّلَ ٱلْكِتَٰبَ وَهُوَ يَتَوَلَّى ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ ببشکه زما ساتونکی (ناصر ) الله دی هغه چي تو ته تو ته کتاب (قرآن) یې نازل کړیدی او هم دغه (الله ساتنه کوي دصالحانو ( او په دنیا اوآخرت کي یې کارونه جوړوي) ﴿ وَٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَآ أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴾ او ببشکه هغه معبودان چي تاسي یې بې له الله بولئ طاقت نلری دوی ستاسو دمرستي کولو او نه دځانو خپلو سره مرسته کولای شي .تکراریې ددې لپاره راوړچي دغه څرګنده کړي چي ددوی معبودان نه ګټه رسوي او نه هم زیان ﴿ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى ٱلْهُدَىٰ لَا يَسْمَعُوا۟ وَتَرَىٰهُمْ يَنظُرُونَ

---

(١) حافظ ابن کثیر وایې چي معاذبن جبل اومعاذبن عمروبن الجموح مسلمانان شول اودواړه زني خوانان وو دشپې به یې دمشرکانو بتان ورماتول اوآزوغه به یې څني تیاروله عمروبن الجموح چي دخپل قوم سردار وو یو بت یې درلودچي هغه به یې خوشبویه کول اوعبادت به یې کاوونو دوی به دشپې ورته راغلل سرپه څېرې به یې ودراوواوپه پلیتي به یې ولړل عمروبن الجموح چي به راغی اوبت به یې داسي ولیدل نو هغه به یې پرېمنځل اوبیابه یې خوشبویه کړتوره به یې له اړخ سره ورته کېښوده ورته ویل به یې خپل غېچ واخله بری ترلاسه کړه خو بیابه هم دوی هغسي وکړل ترڅو یوه ورځ یې له مردارسپي سره په یو کوهي کي چي هلته وو راوځراوو عمروبن الجموح چي داحالت ولید پوه شوچي دی په باطل دین روان دی اوداسي شعریې ولوست ( تالله لوکنت الها مستدن * لم تکن الکلب جمیعًا فی قرن) یعني قسم په خدای که ته مخدوم، معبود وای نو ته اوسپی به یو ځای دلته په کوهي کي نه وای پراته ) بیا ښه مسلمان شو اوپه أحد کي شهید شو.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴾ اوكه تاسي را وبولى دوى سمى لارى ته نو دوى ستاسي متابعت نه كوى وينې به ته (مخامخ) دوى چې ګوري به تاته اوحال داچې دوى به هيڅ نه ويني، هغوى جمادات دي ليدل نه كوي سترګې بې يوانخوروى چې هيڅ شى ور باندې نه ويني ﴿ خُذِ ٱلْعَفْوَ ﴾ (ونيسه (اې محمده ا عادت د ) عفوي كولو) پدې كې محمدصلى الله عليه وسلم ته دمكارم الاخلاق دخپلولوامرشوى دى يعني له خلګوسره په معاملاتو او معاشرت كې آسانتياكوه. ابن كثير وايې چې: دغه ترټولواقوالومشهورقول دى اودحضرت جبريل عليه السلام وينايې شاهدي وركوي چې هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: (بېشكه الله تاته امركوي چې هغه چاته عفوه وكړې چې پرتاباندې ظلم كړى اوهغه چاته څه وركړې چې له تاڅخه يې منع كړې وي ، له هغه چاسره خپلوي وساتې چاچې درسره شلون ( مقاطعه) كړې وي) ﴿ وَأْمُرْ بِٱلْعُرْفِ ﴾ اوحكم وكړه په معروف (نېكوكارونوښوافعالو اواقوالو) ﴿ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴾ اومخ وګرزوه (په څنګ شه !) له ناپوهانو څخه ) يعني دناپوهانوسره ددوى دناپوهي په وجه معامله مكوه بلكه زغم اوحلم كوه. قرطبي وايې: دغه كه څه هم نبي عليه السلام ته خطاب دى خودټولوخلګولپاره تأديب اوتعليم دى[1] ﴿ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ ﴾ اوكه باعث اوتېز كړي تا (په تشكيك دحق) كومه وسوسه له طرفه دشيطانه ﴿ فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ ﴾ نوپناه غواړه په الله پورې ( اوهغه ته رجوع وكړه چې له تانه يې دفع كړي) ﴿ إِنَّهُۥ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ (بېشكه ده( الله ) ښه اورېدونكى ښه عالم دى دټولو اقوالواوافعالو) يعني اورېدونكى دى چې ته څه وايې عليم دى پرهغه څه چې ته يې كوې ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ ﴾ بېشكه هغه كسان چې متقيان دي ﴿ إِذَا مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ كله چې ورسېږي دوى ته كومه وسوسه له طرفه دشيطانه (اودوى ته چورتونه ورواچوي ﴿ تَذَكَّرُوا۟ ﴾ نويادكاندي دوى (عذاب اوثواب د ) الله ﴿ فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴾ پس ناڅاپه دوى ليدونكي وي (دحق) دبصيرت په نورسره اودشيطان له وسوسو خلاص شي ﴿ وَإِخْوَٰنُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِى ٱلْغَىِّ ﴾ او وروڼه ددوى (چې شيطانان دي) راكاږي دغه(كفار) په ګمراهي كې يعني هغه كسان چې له الله څخه نه وېرېږي اوكفار، فجار دي نوشيطانان هغوى ګمراه كوي دضلالت لارې ورته ښايسته كوي ﴿ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴾ بيادوى تقصيرنه كوي ) يعني دوى دګمراه كولو څخه لاس نه اخلي او دكفاروپه ښويولو كې تقصيراو كوتاهي نه كوي ﴿ وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِم بِـَٔايَةٍ ﴾ اوترهغه وخته پورى چې رانه وړې (ته اې محمده ) دوى ته كومه معجزه (لكه چې دوى يې درڅخه غواړي) ﴿ قَالُوا۟ لَوْلَا ٱجْتَبَيْتَهَا ﴾ (نو) وايې دوى ولې دى ( له خپله ځانه) داسې معجزه جوړه نكړه ؟ يعني هغه معجزه به دې له ځانه اختراع اوجوړه كړې واى اودغه ددوى ملعونانو استهزاء، او ملنډې دي ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَتَّبِعُ مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ مِن رَّبِّى ﴾ نووايه بېشكه هم داخبره ده چې زه متابعت كوم دهغه وحى چې ماته دخپل رب له لوري وحى كولى شي ) يعني زه له خپله ځانه هيڅ شى هم نه راوړم ﴿ هَٰذَا بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ ﴾ دغه (قرآن ټول دلائل د )پوهنې دي له لوري درب ستاسي (چې له نورو

---

[1] القرطبي ۷ / ۳۴۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



معجزاتو څخه غنااوړي ګواکي هغه دزړونو لپاره ديداوبصيرت دی چي حق ورباندي ليدل اوپېژندل کېږي ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ (او هدايت اورحمت دی لپاره د (هغه) قوم چي دوی مؤمنان دي) ځکه دوی يې له انوارو څخه مستفيداوپه احکامو عمل کونکي دي ﴿وَإِذَا قُرِئَ ٱلْقُرْءَانُ فَٱسْتَمِعُوا۟ لَهُۥ وَأَنصِتُوا۟﴾ اوکله چي قرآن ولوستل شي نوغوږکېږدئ هغه ته (په تدبراوسوچ کولو سره اود قرآن کريم د تعظيم اواجلال لپار پته خوله شئ) چُپ اوسئ تاسي ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ لپاره ددې چي درباندي رحم وشي ﴿وَٱذْكُر رَّبَّكَ فِى نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً﴾ اويادوه ته (اې بنده) رب ستا (په پټه چي د هغه عظمت اوجلال دي په نظرکي وي) په زاري اوويري سره له ده نه ﴿وَدُونَ ٱلْجَهْرِ مِنَ ٱلْقَوْلِ﴾ اوترهسک په راټيټ غږله ويناېعني چي د جهر اوسرترمينځ وي ﴿بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْءَاصَالِ﴾ (په ړومبي وخت دسهاراوروستني وخت دبېګاه کي) يعني په سبا، بېګاه کي ﴿وَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْغَٰفِلِينَ﴾ اومه کېږه له غافلانو (له ذکره دالله نه) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ﴾ بېشکه هغه چي په نزد د رب ستا دي يعني پاکېزه مقربي پرښتې (ملائکي) ﴿لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِۦ﴾ تکبرنه کوي دوی له عبادت ددغه (الله) څخه ﴿وَيُسَبِّحُونَهُۥ﴾ اوپاکي وايي په هروخت ددغه (الله) (له هغه څه چي ورسره نه ښايي) ﴿وَلَهُۥ يَسْجُدُونَ﴾ اوخاص همدغه (الله) ته سجدې کوي) يعني پرته له الله بل چاته تنده دسجدې لپاره په ځمکه نه اېږدي.

بلاغت:

۱- ﴿كَأَنَّكَ حَفِىٌّ عَنْهَا﴾ دلته مرسله مجمله تشبيه ده ځکه دتشبيه ادات ذکرشوي اودشبه وجه نده راغلي اودې ته مرسله مجمله تشبيه ويل کېږي.

۲- کله چي فرمايي: ﴿فَلَمَّا تَغَشَّىٰهَا﴾ دغه له جماع څخه عبارت دی اوخوړ الطيفه کنايه ده.

۳- ﴿أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَآ﴾ دغه اسلوب ته دبلاغت په علم کي (اطناب) وايي اوفائده يې زيات توبيخ اوتکول دي

۴- پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿يَنزَغَنَّكَ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ﴾ دلته يې دشيطان وسوسه اوپه ګناهونوورا چول له (نزغ) سره تشبيه کړه او (نزغ) دستني اويابل څيزنني ايستل په پوستوکي ته وايي اودغه هم لطيفه استعاره ده.

۵- ﴿هَٰذَا بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ﴾ دلته بليغه تشبيه ده اواصل يې داچي (هذا کالبصائر) علماء کرام دغه دمرسل مجاز له ډولونواخلي چي دمسبب اطلاق په سبب باندي شويدی څرنګه چي قرآنکريم دعقلونود روښانولو سبب وو ورباندي دبصيرت اطلاق شوی دی.

لطيفه

حکايت کېږي چي دځينو سلفوصالحينو څخه يوچاخپل شاګردته وويل کله چي شيطان دګناهونوپه باب ې درواچوي څه به کوې؟ هغه ورته وويل ورسره مجاهده به کوم. ورته ويې ويل

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



که بیادرته راغی. هغه ورته وویل: ورسره مجاهده اوزیاربه کاږم. ورته ویل یې: که بیادرته راغی هغه ورته ویل ورسره جهادبه کوم. استاذ ورته ویل: داخواوږدېږي که چېرې ته له یوې رمې سره تېرېږې اوسپی درته غاپي، نه پرېږدي چې ته لاره ووهې ته به څه کوې؟ هغه ویل: زه به یې په خپل توان له خانه شړم نو استاذورته ویل: داهم په تا اوږدېږي درمې مالک ته غږکړه ترڅوسپې درڅخه وشړي اودغه د استعاذې فائده ده.

دالله جل جلاله په مرسته دالاعراف سورت تفسیربشپړشو.

***

## (۸) دالانفال سورت مدني اوپنځه اویاآیتونه لري.

### دسورت په ورانډې:

• دالانفال سورت دهغومدني سورتونوڅخه یودی چې دتشریع لوري ته یې پاملرنه کړې اوپه ځانګړې توګه هغه څه ته چې له غزاګانواوجهادفی سبیل الله سره اړیکي لري پدې سورت کې دځیني حربي اونظامي اړخونوڅېرنه اوسمونه شوي چې دځیني غزاګانوروسته پېښ شوي وو اوددې سورت په ترڅ کې دډېرحربي تشریعات، وجائب اوالهي لارښووني هغه چې لازمه ده مسلمانان یې دالله جل جلاله ددښمنانوسره دجنګ جګړې په وخت کې عملي کړي راغلي دي دلته دسولې اوجګړې لوري هم څېړل شوی اودبندیانو اوولجو (غنائمو) احکام هم پکې راغلي دي.

• دغه سورت ورروسته دبدرله غزانازل شوی هغه غزاچې داسلام په سترتاریخ کې دغزواتوپیلامه اودالله جل جلاله دلښکرو دبریالیتوب شروع وه آن تردې چې دغه سورت ځیني اصحابانو رضوان الله علیهم دبدرسورت نومولی څکه پدې کې دبدرپېښې په تفصیل سره څېړل شوي اودجنګ نقشه یې په بشپړه توګه رسم (انځور) کړې ده اوهغه څه یې څرګند کړي چې ښایې یومسلمان یې دغیرت اوشهامت (مېړانې) څخه ولري اودباطل په مقابل کې په خورامېړانه، زغم اوټینګارسره ودرېږي.

• دامعلومه خبره ده چې دغزاګانوپه تاریخ کې دبدرغزاد روژې مبارکې په میاشت چې دهجرت دوهم کال وپېښه شوه اودالومړنۍ جګړه وه چې دحق اوباطل ترمینځ ترسره شوه اوپه نتیجه کې یې طغیان اوبغاوت په ګونډوشو کمزوري مسلمانان نارینه، ښځې اوماشومان هغه چې په مکه مکرمه کې پاتې اوالله جل جلاله ته یې زارۍ کولې چې اې لویه خدایه! موږ له دغه کلي (ښاره) چې خلګ یې ظالمان دي وباسې الله جل جلاله ددوی سوال اوزارۍ ومنلې اودوی ته یې ددغې غزاامکانات برابرکړل هغه چې مسلمانانوته الله پاک سره له دې چې شمېریې لږ اوسامان یې نه ووبرې ولیکل اوداسربېره پردې چې دوی دغزالپاره تیاری هم نه وونیولی پدې غزاکې دباطل پلویان پدې وپوهېدل چې که څه هم ددوی موده اوږده، شوکت یې زیات، حکومت یې پراخ وي خو بیایوه نه، یوه ورځ دحق دجلال اولوېې اودایمان دزور اوقوت په وړاندې پرمخې غورځېدونکې دي او همداسې دبدرغزادمسلمانانولپاره بریالیتوب اودکفارولپاره ماتې اوشکست وو.

• ددغې کیسې دپېښوپه ترڅ کې الهي غږونه(نداګانې) دشپږځلولپاره مسلمانانوته دایمان په وصف سره داوړول شول چې ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ﴾ لکه چې دوی صبراوثبات ته رابولې ترڅودالله جل جلاله له دښمنانو سره جهادوکړي اولکه چې دوی ته وریادوي چې کوم ربړونه اوتکالیف چې دوی ته وربانډې امرشوی دغه دایمان

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



غوښتني دي هغه ايمان چي دوی ورباندي سينګاردي اوهغه بری چي الله جل جلاله دوی ته ورکړ يوازي دايمان په سبب وو نه دوسلې په کثرت اودغازيانو خلکوپه زياتوالي باندي

* لومړی نداء (غږ) پدې کي له جګړې څخه دتيښتي په هکله مسلمانان وېرول شوي دي فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴾ اوپدې کي الله پاک تيښته کونکي په سخت عذاب وېرولي دي.

* دوهمه نداء دالله اوپيغمبرد اوامرواواحکامو دمنلوپه هکله ده چي فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَوَلَّوْاْ عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴾ (اوهمدارازپدې نداء کي ) لکه چي الله جل جلاله کفار دڅلوربولوڅارپايانوپه څېربللي چي نه اوري نه پوهېږي اونه هم دحق بلنه مني.

* دريمه نداء ددې څرګندونه کوي چي هغه څه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی هغه ته وربولي داهغه څه دي چي پکي ددوی ژوند ، عزت ، نېکمرغي اودداريښوسعادت اوخوښي تأمين کېږي. الله جل جلاله فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسْتَجِيبُواْ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ ﴾ .

* اوڅلورمه نداء داچي داسلامي امت راز دښمنانوته لوڅول اوافشاء کول دالله اورسول الله سره خيانت دی لکه څرنګه چي له امت سره هم خيانت الله فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَخُونُواْ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓاْ أَمَـٰنَـٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ .

* پنځمه نداء الله جل جلاله داسي ورته فرمايي چي ددوی نظردتقوی لوري ته راواړوي اودوی ته وريه يادوي چي تقوی دټولوښېګړوبنسټ دی اودتقوی له ستروثمراتوڅخه دادی چي الله پاک رباني نوردمؤمن په زړه کي وراچوي اوپه هغه خلاسره دسمي اوکږې لاري توپېرکولای شي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تَتَّقُواْ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ .

* شپږمه نداء هغه چي وروستنۍ نداء ده اوپه هغې کي ددوی لپاره دعزت لاره ښيې دمرستي بنسټونه اواساسات څرګندوي چي هغه ددښمنانوپه وړاندي ثبات اودجنګ په وخت کي صبراوزغم دی دالله جل جلاله هغه عظمت اوسترتوب چي اندازه نلري په يادول دي اوهم هغه قوت اوزورچي بل څوک ورسره سيالي نشي کولای دوی ته پداسي يوروحاني مرستي پوري لاس نيول اومنګولې تينګول په کاردي چي هغه دالله جل جلاله دېرذکر اويادول دي فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴾ .

* دسورت په پای کي دابيانوي چي دمؤمنانوترمينځ بشپړ ولايت دی که څه هم هيوادونه يې سره ليري اوتوکمونه ( جنسونه ) يې مختلف وي خوبياهم دوی يوامت دی اوپردوی لازمه ده دهغوکسانومرسته وکړي چاچي ورڅخه دمرستي غوښتنه کړې وي لکه چي کفارهم يوملت دي اودکافرانوترمينځ دضلالت اوبغاوت ولايت موجوددی بل داچي هيڅکله دمؤمنانواوکافرانوترمينځ ولايت نشي راتلای: ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُن فِتْنَةٌ فِى ٱلْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ ﴾ دغه لنډيزهغه څه دي چي سورت ورته دموخو اوهدفونوپه باب اشاره کړې اويايې درسونه اوپندونه ښودلي له الله جل جلاله څخه هيله اوغوښتنه کوو چي موږ دفهم اوخبرخاوندان وګرزوي ( آمين يارب العالمين ).

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله تعالى فرمايې:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَنفَالِ ۖ قُلِ ٱلْأَنفَالُ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ ۖ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَصْلِحُوا۟ ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۖ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ
إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١﴾ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُهُۥ زَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا
وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٢﴾ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُمْ
دَرَجَٰتٌ عِندَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٤﴾ كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ بِٱلْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ
لَكَٰرِهُونَ ﴿٥﴾ يُجَٰدِلُونَكَ فِى ٱلْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى ٱلْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٦﴾ وَإِذْ يَعِدُكُمُ ٱللَّهُ
إِحْدَى ٱلطَّآئِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ ٱلشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُحِقَّ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ
وَيَقْطَعَ دَابِرَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٧﴾ لِيُحِقَّ ٱلْحَقَّ وَيُبْطِلَ ٱلْبَٰطِلَ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٨﴾ إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَٱسْتَجَابَ
لَكُمْ أَنِّى مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ مُرْدِفِينَ ﴿٩﴾ وَمَا جَعَلَهُ ٱللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِۦ قُلُوبُكُمْ ۚ وَمَا
ٱلنَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾ إِذْ يُغَشِّيكُمُ ٱلنُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ
مَآءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِۦ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ ٱلشَّيْطَٰنِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ ٱلْأَقْدَامَ ﴿١١﴾ إِذْ يُوحِى رَبُّكَ إِلَى
ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّى مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا۟ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۚ سَأُلْقِى فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلرُّعْبَ فَٱضْرِبُوا۟ فَوْقَ ٱلْأَعْنَاقِ
وَٱضْرِبُوا۟ مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿١٢﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَآقُّوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ۚ وَمَن يُشَاقِقِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ
ٱلْعِقَابِ ﴿١٣﴾ ذَٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴿١٤﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ
كَفَرُوا۟ زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴿١٥﴾ وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ
بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٦﴾ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ
رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِىَ ٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَآءً حَسَنًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾ ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ ٱللَّهَ
مُوهِنُ كَيْدِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿١٨﴾ إِن تَسْتَفْتِحُوا۟ فَقَدْ جَآءَكُمُ ٱلْفَتْحُ ۖ وَإِن تَنتَهُوا۟ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَعُودُوا۟ نَعُدْ وَلَن
تُغْنِىَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْـًٔا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَوَلَّوْا۟
عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ قَالُوا۟ سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿٢١﴾ ۞ إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ
ٱللَّهِ ٱلصُّمُّ ٱلْبُكْمُ ٱلَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٢٢﴾ وَلَوْ عَلِمَ ٱللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَّأَسْمَعَهُمْ ۖ وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوا۟ وَّهُم مُّعْرِضُونَ
﴿٢٣﴾ ﴾ الأنفال: ١ - ٢٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## لغتونه:

( الانفال ) دنفل جمع او هغه زیادت ته وایې او غنیمتونو ته ځکه انفال وویل شو چې هغه هم ددین او وطن په ژغورلو یو زیات څیز دی چې لاس ته راځي نفلی لمنځونه هم په اصلي لمنځو زیاتوب ته ویل کېږي او هم دا راز دزوی زوی (لمسی) (نافلة) بولي لکه چې الله فرمایي: ( ووهبناله اسحق ویعقوب نافلة) ( وجلت ) وېرېږي له (وجل) څخه اخیستل شوی هغه وېري ته وایې ( ذات الشوکة) دوسلې خاوند اصل یې له شوکت څخه راغلی او ابو عبیده وایې چې: (شوکه) مجاز حد ته ویل کېږي لکه چې وایې: ( ماأشدشوکة بني فلان ) [1] یعني څومره سخت دی حد دفلاني قوم ( تستغیثون) له استغاثې څخه راغلی او طلب دمرستي او مدد ته وایې ( مردفین) پرله پسې ځکه چې ردف او اردف په یوه معنا دي یعني دا چې پیروي یې کړي وه عرب وایې چې: ( ردفته ) او (أردفته) یعني ما یې متابعت کړی وو (بنان) د (بنانة) جمع او دګوتو بندونو ته وایې (زحفا) لړلړ بښوئېد لو ته وایې له (زحف الصبي) څخه اخیستل شوی کله چې په کناتو لړلړ خوځېږي او بیا وروسته د پرلپسکر ته وویل شو ځکه هغوی هم کرار کرار په مخ درومي ( متحیزاً) یو ځای شوی ویل کېږي چې: (تحیز )یعني یو ځای شوی او ضمیمه ګرځېدلي (بآء) رجوع کولو ته وایې (موهن) ضعیف کونکي ته وایې ( تستفتحوا) تاسو طلب دفتحې کوئ پخپلو دښمنانو باندي.

## دنزول سبب:

ا – ابن عباس رضی الله عنهما وایې: چې دبدر په ورځ باندي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چې کوم ( مشرک ) ووژني دهغه لپاره هومره هومره انعام ورکول کېږي نو بوډاګان تر بیرغونو لاندي ودرېدل او ځوانان دجګړې او غنیمتونو لور ته ولاړل بوډاګانو ځوانانو ته ویل چې موږ هم له تاسو سره په ولجو کې شریک کړئ ځکه موږ ستاسو ملاتړي وو که تاسو ته کوم مشکل رسېدلی وای موږ ته مو پناه راوړله خو هغوی نه منله او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دفیصلې لپاره راغلل بیا دا آیت نازل شو ﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَنفَالِ ﴾ نو غنېمتونه او ولجې ددوی ترمینځ برابري وویشل شوې [2]

ب - روایت کېږي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم دبدر په ورځ یو موټی خاوري راواخیستلې او ددښمن مخونو ته یې ورو ویشتلې او ویې ویل: ( شاهت الوجوه) نو هیڅ مشرک پاته نشو چې سترګو او پوزې ته یې دغه خاوري ( شګې ) ورلوېدلي نه وې او پرشا و تمبېدل نو دا آیت نازل شو: ﴿ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ رَمَىٰ ﴾.

## تفسیر:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَنفَالِ ﴾ (پوښتنه کوي له تانه ( اې محمده ! ) له حکمه دغنائمو څخه) یعني له تانه پوښتنه کوي اصحابان چې هغه غنیمتونه چې په بدر کې لاس ته درغلل د چا دي ؟ او څنګه وېشل کېږي؟ ﴿ قُلِ ٱلْأَنفَالُ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ ﴾ ( ووایه ( دوی ته چې اموال د ) غنیمتونو خاص الله او رسول د ( الله) لره دي ) یعني ورته

---

[1] زاد المسیر ۳/ ۳۲۴

[2] روح المعاني ۹/ ۱۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



روایه چي په غنیمتونو کي حکم دالله اورسول الله دی ستاسو حکم نه دی ﴿ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ﴾ پس تاسي له الله نه ووېرېږئ (په طاعت کولو دده اوله نواهیو څخه یې په ځان ژغورلو سره ) ﴿ وَأَصۡلِحُواْ ذَاتَ بَيۡنِكُمۡۖ ﴾ او اصلاح وکړئ تاسي دهغه حال چي په مینځ ستاسي کي دی ( یعني دوستي وکړئ اونزاع پرېږدئ ﴿ وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ﴾ اوحکم ومنئ تاسي دالله اورسول دالله جل جلاله په حکم دغنیمتونو کي. عبادة بن صامت وايي: دغه آیت زموږ په هکله هغه وخت نازل شو چي زموږ ترخپل مینځ اختلاف راغی اواخلاق مو ناسم شول نو الله جل جلاله غنیمتونه زموږ له لاسه وایستل اودرسول الله صلی الله علیه وسلم په واک کی یې ورکړل چي مساوي اوبرابر یې ووېشل چي پدې کي تقوی ، دپیغمبرصلی الله علیه وسلم حکم منل اواصلاح ذات البين راغلل [1] ﴿ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ که یې تاسي مؤمنان (په حقه سره ) دغه شرط دی اوځواب دشرط محذوف هغه داچي که چېري تاسو حقاني په بشپړه توګه دایمان خاوندان یاست نو دالله اورسول الله حکم ومنئ ﴿ إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلَّذِينَ ﴾ بېشکه خبره هم داده چي حقاني مؤمنان هغه کسان دي ﴿ إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتۡ قُلُوبُهُمۡ ﴾ کله چي یاکړی شي دوی ته (نوم د ) الله نو ددوی زړونه وېرېږي له جهته دلویوالي دشان دالله جل جلاله دوی ته دالله دجلال هیبت ودرېږي ﴿ وَإِذَا تُلِيَتۡ عَلَيۡهِمۡ ءَايَٰتُهُۥ زَادَتۡهُمۡ إِيمَٰنٗا ﴾ اوکله چي ولوستی شي پردوی باندي آیتونه دالله نو زیاتوي ( دغه آیتونه) ایمان ددوی ) یعني ددوی باور اوتصدیق په الله جل جلاله لازیاتوي ﴿ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ﴾[2] او په رب خپل باندي دوی توکل کوي) یعني له الله پرته نه له چاوېرېږي اونه له چاڅخه څه تمه اوهیله لري په البحرالمحیط کي وايي چي له دوی څخه یې په اسم موصول سره درې ځایه اخبارفرمایلی چي درې سره خورا سترمقامات دي لومړی: دوېري ، خوف مقام دوهم: دایمان دزیاتوالي مقام درېیم: په رحمن باندي دتوکل اوبروسې مقام[3] ﴿ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ هغه مؤمنان دي چي ( سم) اداکوي لمنځونه ( سره له ټولو حقوقو په خشوع، خضوع فرائضو اوادابو باندي ﴿ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ ﴾ ( اوځیني له هغه ماله چي موږدوی ته ورکړی لګوي یې ( دالله په لارکي) یعني لګوي یې دالله په طاعت کي اودغه عام دی که فرضي زکات وي اوکه نفلي صدقات او خیراتونه ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ ﴾ ( دغه کسان هم دوی دي په حقه سره مؤمنان ) یعني دغه کسان چي پورتني ستایلي صفات ولري حقاني مؤمنان دي څکه دوی دایمان اوصالحواعمالو یوځای والي کړی دی ﴿ لَّهُمۡ دَرَجَٰتٌ عِندَ رَبِّهِمۡ ﴾ شته دوی ته درجې په نزد درب ددوی ) یعني دوی لره په جنت کي لوړي مرتبې

---

[1] التسهیل ۲/ ۶۰

[2] ابن الخطیب وايي: دغه آیت دي هرمؤمن تلاوت اوولولي پخپل ځان دي وړاندي کړي که چېري دغه صفتونه پکي موجودوو ځان ته دي مباركي ووايي چي الله وړباندي دفضل اوبهتري پېرزوینه کړي ده اوکه چېري دی په یوه کنده اوصفات په بله کي وونو رحیم او ودود الله جل جلاله ته دي پناه یوسي اوله حمید اولطیف الله جل جلاله څخه دي غوښتنه وکړي چي زړه ته یې دایمان اوتوکل ښکلا وروبښي او دلمانځه دسم اداکولو اودزکاة دورکولولپاره یې چمتو کړي هغه ښه نژدې اوددعامنونکی دی دغه دعادي دزړه په اخلاص اوسپېڅلي نیت ورته وړاندي کړي

[3] البحر ۴/ ۴۵۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دي ﴿ وَمَغْفِرَةٌ ﴾ اوبښنه ده ( د تېرشوو ګناهونو ددوی ) ﴿ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ اورزق نېک ( دعزت ) يعني دائمي د عزت اوتعظيم روزي ورکول کېږي ﴿ كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ بِٱلْحَقِّ ﴾ ( اودادوېش اوتقسيم کراهيت دوی ته داسي وو ) لکه چي ايستلی وې ته رب ستا له خپله کوره په حقه سره ) کاف دتشبيه توری اومشبه غواړي . ابن عطيه وايې چي دغه کيسه چي درسول الله صلی الله عليه وسلم له کوره راايستل وو له پخوانی کيسې سره چي هغه ددوی پوښتنه له غنيمتونوڅخه وه اوهغه ناخوښي چي په وېش کي ورپېښه شوه[١] اومعنا داشوه چي حال ددوی په وخت دوېشلو دغنيمتونو کي هسي دی لکه حال ددوی په وخت دراوتلو ستادحرب اوجګړې لپاره . طبري وايې : معنايې داده لکه چي ته رب ستاپه حقه سره په داسي حال کي چي دوی څيني کسان يوه ډله دمؤمنانو ناخوښه وه راوايستلې همداسي دوی له تاسره دحق په هکله وروسته له هغه چي ورته څرګند شو مجادله کوي اوهغه حق چي دوی ته څرګند او دوی يې په باب له پيغمبرعليه السلام سره جګړه کوله جنګ اوقتال وو[٢] ﴿ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ﴾ ( حال داچي بېشکه يوه ډله له مؤمنانو خامخاناخوښه وو ) له دښمن سره په جنګ کولو باندي دوژل کېدوله وېري اويا داچي دجنګ لپاره يې تياری نه وه نيولی ﴿ يُجَٰدِلُونَكَ فِى ٱلْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ ﴾ ( حال داچي جګړه کوله دوی له تاسره په حقه خبره کي (چي جهادوو ) وروسته له هغه چي ښکاره شوه دوی ته) يعني اې محمده ! دوی له تاسره جنګ ته دوتلوپه باب جګړه کوله وروسته له هغه چي حق څرګند اوښکاره شواوددوی جدال هغه وو چي ويل يې : موږخودقافلې لپاره راوتلي وو اوکه پدې پوهېدلای چي جګړه پېښېږي موږبه تياری ورته نيولی وو ﴿ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى ٱلْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴾ ( داسي جګړه يې کوله دجهاد دکولوپه هکله ) ګواکي دوی بېولي کېږي مرګ ته پداسي حال کي چي ( مرګ په سترګو ) ويني ) بيضاوي وايې: دوی جګړه داسي ناخوښه بولي لکه چي څوک مرګ ته بېول کېږي اوهغه يې اسباب پخپلوسترګوويني څکه ددوی شمېرلږاوتياری يې نه ده کړی اوپدې کي دغه اشاره هم شته چي ددوی مجادله ددوی دزياتي وېري او ترهي له کبله وه[٣] ﴿ وَإِذْ يَعِدُكُمُ ٱللَّهُ إِحْدَى ٱلطَّآئِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ ﴾ ( اويادکړئ هغه وخت چي وعده کوله له تاسي سره الله يود دوودډلوڅخه ( چي قافله ، يالښکروو چي بېشکه دغه تاسي لره دی ) يعني اې درسول الله اصحابانو هغه الهي وعده درپه يادکړئ چي درته ويلي شوي وو يوددوو ډلوبه ستاسولپاره غنيمت وي هغه که قافله وي که جګړه ﴿ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ ٱلشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ ﴾ ( اوستاسي خوښه وه چي بېشکه هغه بې وسلې، بې زحمته ( ډله دي ) وي تاسي ته ) يعني تاسودي له قافلې سره مخامخ شئ هغه چي بې وسلې اودقريشودسوداګری مالونه يې راباركړي وو . مفسرين وايې : روايت کېږي چي دقريشوقافله له شام څخه راستنېدله اوپدې کي ستره برخه دتجارت اوسوداګری دابوسفيان په مشرتابه وه حضرت جبرئيل عليه السلام راغی اورسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې وويل: اې محمده ! الله (پاک ) تاسوته يوددوو ډلو وعده درکړې چي ياقافله اوياپخپله قريش دي نورسول الله صلی الله عليه وسلم له اصحابانو رضی الله عنهم سره مشوره وکړه هغوی قافله غوره کړه څکه له قافلې سره جګړه نه وه غنيمت اوولجه زياته وه کله چي راووتل اودمکې خلکوته خبر

---

[١] الطبري ۴/ ۴۶۱
[٢] الطبري ۱۳/ ۲۹۳
[٣] البيضاوي ص: ۳۰۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ورسېدو نوابو جهل داسي دېغ وکړچي اې دمکې خلګونجات ، نجات! قافله ستاسوخپل مالونه دي که چېري دمحمدلاس ته ورسېږي نوبيابه تاسوهيڅکله هم خلاص نشئ نومشرکان په ټولو مشکلاتواوتکليفونو سربېره راووتل ، ابوجهل ورسره وو ترڅوبدرته راورسېدل اوقافله وژغورل شوه نورسول الله صلى الله عليه وسلم خپلو اصحابانورضى الله عنهم ته خبرورکړ اوورته ويې ويل چي: قافله دبحرپه څنډه تېره شوه اودادى ابوجهل مخې ته راغى نودوى ورته وويل: اې رسول الله ! قافله راګرزوه اودښمن پرېږده ! رسول الله صلى الله عليه وسلم ته قهرورغى نوسعد بن عبادة رضى الله عنه ولاړشواو ويې ويل: اې دخداى پيغمبره هرچېرته چي غواړې موږبوزه موږستامتابعت کوو اوبياسعد ابن معاذ رضى الله عنه اوچت شو ويې ويل: زمادي په هغه ذات قسم وي چي ته يې په حق رالېږلى يې که چېري دغه بحرته ورلوېږې موږ دالله دنامه په برکت له تاسره ورلوېږو هرچېري چي موبيايې ستاخوښه ده نورسول الله صلى الله عليه وسلم خوشحاله شو اواصحابانوته يې وفرمايل: درځئ دالله جل جلاله په برکت اوپدې زېري خوښ شئ چي الله جل جلاله ماته ديودوو ډلو دبري وعده راکړې ده زمادي په الله جل جلاله لوړه وي لکه چي زه ددوى ماتي په سترګووينم(۱) ﴿ وَيُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُحِقَّ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ ﴾ (اواراده لري الله ددې چي ښکاره ثابت کړي رښتياپه کلامونو خپلو سره ) يعني الله جل جلاله غواړي چي حق دين چي اسلام دى دکافرانوپه قتل او هلاکت چي دبدرپه ورځ به راځي څرګند کړي ﴿ وَيَقْطَعَ دَابِرَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ ( اوپرې کړي بېخ دکافرانو ) يعنى دوى يومخه ايزه له بېخه وباسي اوټول هلاک کړي په البحر المحيط کي وايې: معنادا چي تاسوخودعاجلي اوبېړنى ګټې ، سلامتيادحال اوناکاره شيانو غوښتنه کوئ مګرالله جل جلاله دلويوشيانو لکه داعلاء کلمة الله اودداړينو نېکمرغي درته غواړي اوددغو دوو غوښتنو ترمينځ خورا زيات واټن ( مسافه ) ده ځکه نوالله پاک هغه دوسلې لرونکي ډله درته غوره کړه اوتاسوته يې ددوى ښوئېدل دسرپه سترګودرولېدل تاسويې بريالي او عزتمند کړئ دوى يې کونډې کېږ مات اوذليل کړل.(۲) ﴿ لِيُحِقَّ ٱلْحَقَّ وَيُبْطِلَ ٱلْبَٰطِلَ ﴾ لپاره ددې چي ظاهر غالب کړي حق ( دين داسلام ) او(لپاره ددې چي ) ظاهرکړي بطلان دباطل(کفر) دلته په آيت شريف کي له محذوف سره تعلق شته چي هغه داچي ( ليحق الحق ويبطل الباطل فعل مافعل ) نوګواکي مراددااسلام اظهار اود شرک ابطال دى ﴿ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ اواګرکه يې بده مني ( داخبره ) مجرمان ( کافران ) چي اسلام ظاهراو کفر باطل شي ﴿ إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ ﴾ ( يادکړئ ) هغه وخت چي استغاثه به کوله تاسي رب خپل ته ) يعني له الله جل جلاله څخه مود دښمنانو په لښکرنصرت اوبرى غوښتل. روايت کېږي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مشرکانوته وکتل چي يوزرتنه وو اوخپلو اصحابانوته يې وکتل چي څه دپاسه درې سوه تنه وو نوقبلې ته مخامخ لاس په دعاشو ويل يې : اې الله ! هغه وعده چي دي له ماسره کړي هغه ترسره کړه اې ربه ! که دغه دمسلمانانو ټولى هلاکه کړې نور به بياستاعبادت په ځمکه کي ونکړل شي په دعاکي بې دومره الحاح اوزيار وکېښ چي مبارک څادرېې له اوږو ولوېدو اوحضرت ابوبکررضى الله عنه هغه راواخيست بېرته يې رسول الله صلى الله عليه وسلم په اوږو ورواچاو اوله شاورپسې په دعاودرېدو اوورته ويې ويل: اې دالله جل جلاله نبي! بس ده نورنوپه ځان ربړمه راوله الله جل جلاله به ژرهغه چي له تاسره يې دبري وعده کړي پوره کړي نودا ايت نازل شو ﴿ فَٱسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّى مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ ﴾ نوالله دروررسېدو( لپاره ) دفرياد ستاسي چي بېشکه

(۱) البيضاوي ص: ۳۰۹ له تصرف سره

(۲) البحر المحيط ۴ / ۴۷۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



زه مرسته کونکی يم له تاسي سره په زروتنو له پرښتو ) يعني الله يې دعاقبوله کړه چې زه به په زرو تنو پرښتودرسره مرسته وکړم ﴿ مُرْدِفِينَ ﴾ يوه په بله پسې راتلونکي پرله پسې . مفسرين وايي چې: داسې راغلي چې حضرت جبرئيل عليه السلام له پنځو سوو پرښتو سره راغی اودلښکرپه ښي اړخ کې يې جهاديل کړاوحضرت ميکائيل عليه السلام بياله پنځو سووتنو سره دلښکرپه کيڼ اړخ کي جګړه شروع کړه اوله بدرڅخه پرته په بله هيڅ يوه غزاکي هم پرښتو( ملائکو ) جګړه نه ده کړي بلکه يوازي به راتلې چې دمسلمانانو شمېرزيات کړي جنګ يې نه کاوو(١)﴿ وَمَا جَعَلَهُ ٱللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ ﴾ ( اونه وه ورکړي دغه مرسته دوی ته الله پاک مګردپاره ددې چې زيری شي د(نصرت) يعني دغه امدادپه پرښتودبرياليتوب لپاره دبری زيری وو ﴿ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِۦ قُلُوبُكُمْ ﴾ اولپاره ددې چې آرام شي په دې(امداد ) زړونه ستاسې ﴿ وَمَا ٱلنَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ﴾ اونده، مرسته ( مګرخوده ) له جانبه دالله (په حقيقت کي نوتاسودالله څخه په مرسته درکولوباورولرئ اوپخپلومنتواووسلو تکيه مه کوئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ بېشکه الله ښه غالب قوي دی ښه حکمت والادی ) هغه فيصله کوي چې دحکمت ، مصلحت وي ﴿ إِذْ يُغَشِّيكُمُ ٱلنُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ ﴾ اوياد کړئ(هغه وخت )چې واچوله الله په تاسي باندې پرکالي ( دخوب پرمنبکي ) لپاره د امن ستاسي له جانبه خپله (سبحانه وتعالى) اودغه درسول الله صلى الله عليه وسلم معجزه وه چې په ټولوباندې دخوب پرکالي راغله پداسي حال کي چې سخته وېره وه حضرت علي کرم الله وجهه وايي: دبدرپه ورځ په موږکې پرته له مقدادرضی الله عنه نه بل څوک دآس سپورنه وو اوچې موږته دې کتلای کردوېده وو خويوازې رسول الله صلى الله عليه وسلم تروني لاندې لمونځ کاوو اوژړل يې ترڅوسهارشو(٢) ابن کثيروايي: ګواکي دغه په سخت تکليف کي دمسلمانانولپاره هسې و شول ترڅويې زړونه دالله جل جلاله په مرسته مطمئن اوآرام شي ﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ ( اونازلي کړي (الله ) پرتاسي ( له طرفه ) دآسمانه اوبه ) پدغه سره دنعمتونوګڼل او شمېرل مراد دي يعني بل نعمت داوبوراتويول ووڅکه دوی اوبه نه درلودې (په بدرکي مشرکانو واردمخه داوبوپه ځای اړولي وو، نوالله جل جلاله په بدرکي باران و اوراوو اوخوړونه وبهېدل اوځيني اصحابانو رضی الله عنهم ته د احتلام جنابت رسېدلی وو غسلونه يې وکړل ﴿ لِّيُطَهِّرَكُم بِهِۦ ﴾ ترڅوچې پاک کړي تاسي په دغو(اوبو ) سره ( له بې اودسي اوجنابت څخه ﴿ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ اولېرې کړي له تاسي نجاست دشيطان ) يعني د دې لپاره چې دشيطان وسوسه او وېرونه چې تاسوپه تنده وېروي درڅخه دفع کړي . بيضاوي وايي چې دوی په داسي شګلنه ځمکه کي اړولي ووچې پښې پکې ننوتلې اوچې دوی وېده شول اکثروته احتلام ورسېدو نوشيطان وسوسې وراچولې چې څرنګه به تاسو بريالي کېږئ چې دښمنانواوبه درڅخه نيولي تاسوبې اودسه اوپه جنابت کي ياست ، لمونځونه کوئ اوتاسودا خيال کوئ چې تاسودالله جل جلاله دوستان اودغه پيغمبرپه تاسي کي دی ؟ نودلته الله جل جلاله باران واوراووپه همدغي شګلني ځمکي کي يې پښې ټينګي اوبيابه نه ننوتل اودشيطان وسوسه ورکه شوه(٣)

---

(١) حاشية الصاوي على الجلالين ٢ / ١١٨
(٢) رواه ابويعلي .
(٣) البيضاوي ص: ٣١٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَلِيَرۡبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمۡ ﴾ اولپاره ددې چې قوت واچوي په زړونوستاسي دالله په مرسته كولوباندي ﴿ وَيُثَبِّتَ بِهِ ٱلۡأَقۡدَامَ ﴾ اومحكم كړي په (هغواوبو) سره قدمونه ستاسي (چي په شګوكي نه خښيږي) طبري وايي: چي په باران باندي ددوى قدمونه پدې ټينګ شول دوى خوپه داسي نرموشګوكي له دښمن سره مخامخ شول چي پښې بې په كي خښيدلې تګ پكي نه كېدو كله چي شګې باران لمدې كړې كلكي شوې او تګ راتګ ورته آسان شو([1]) ﴿ إِذۡ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمۡ ﴾ (يادكړه اي محمده!) هغه وخت چي وحى وكړه رب ستاملائكوته (چي) زه له تاسي سره يم (په نصرت اواعانت) ﴿ فَثَبِّتُواْ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْۚ ﴾ نوثابت كړئ هغه كسان چي مؤمنان دي) ددوى زړونه په دښمنانو باندي قوي كړئ ﴿ سَأُلۡقِي فِي قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلرُّعۡبَ ﴾ ژر به وغورځوم زه په زړونودهغوكسانو چي كافران شويدي وېره (ترڅو ماتي وخوري) ﴿ فَٱضۡرِبُواْ فَوۡقَ ٱلۡأَعۡنَاقِ ﴾ نووهئ تاسي (سرونه ددې كفارو) دورمېږونودپاسه لكه چي ويل كېږي (ضرب الرقاب) اومرادخيني سرونه دي ﴿ وَٱضۡرِبُواْ مِنۡهُمۡ كُلَّ بَنَانٖ ﴾ اووهئ تاسي له دغوكفاروڅخه (هرهربند) اوتولي ګوتي په التسهيل كتاب كي راوړي چي كله دجنګ كونكي ګوتي ورپرې كړي نوله جنګ اوجګړې لاس اخلي اوبيابې بندي كول اووژل ممكن شي([2]) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ شَآقُّواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۚ ﴾ (دغه وهل دكفارو) ددې دپاره دي چي بېشكه دوى مخالفت كړى دى له الله اوله رسول دده نه) يعني دغه سخت عذاب ځكه دوى ته وركول كېږي چي دوى دالله اورسول له امرڅخه مخالفت اوعصيان كړى دى ﴿ وَمَن يُشَاقِقِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴾ (اوهرهغه څوك چي مخالفت كوي له الله اورسوله دده نوبېشكه سخت دى عذاب دالله ده لره) ﴿ ذَٰلِكُمۡ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴾ دغه (ستاسي دنيوي عذاب دى) نووڅكئ تاسي (داعذاب) او(وپوهېږئ) چي بېشكه كافرانوته شته داورعذاب (په آخرت كي) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ زَحۡفٗا ﴾ اې هغوكسانوچي ايمان بې راوړى دى يعني اې مؤمنانو كله چي يوځاى شئ تاسي له هغوكسانو سره چي دوى كافران شوي دي پداسي حال كي چي دوى غونډ(اوګڼ) دي (ته به وايې ورو 'ځكېږي) ﴿ فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلۡأَدۡبَارَ ﴾ (نومه ګرځوئ تاسي دغوكفاروته شاوي خپلي) يعني ماتي اوتېښته مكوئ بلكه ثابت قدم اوپه صبراوسئ ﴿ وَمَن يُوَلِّهِمۡ يَوۡمَئِذٖ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفٗا لِّقِتَالٍ ﴾ (اوهرهغه چي وګرځوي دغو(كفارو) ته په دغه ورځ (دمخامخ كېدلو دجنګ) شاخپله مګرپدې حال كي چي بېرته ګرځېدونكى وي دجنګ لپاره) يعني نه هغه چي د بلي ډلي سره جنګ كونكى وي اويا خوپه هنرسره دوى ته شاكړي چي بيرته وربادي راوګرزي دوى په دې تېرباسي چي دددښمن داخيال شي چي مات شوخوهغه بيرته وربادي راوګرزي اودا چم دهغه څه لپاره دى چي وايي: (الحرب خدعة) ﴿ أَوۡ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٖ ﴾ ياحال داچي يوځاى كېدونكى وي په طرف دبلي طائفې (د

---

([1]) الطبري ۱۳/ ۴۲۱
([2]) التسهيل ۲/ ۶۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مجاهدينو چې له هغوی) څخه مرسته غواړي ) ﴿ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ نو په تحقيق رجوع يې وکړه او
اخته شو په (ستر) غضب (له جانبه) د الله ﴿ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ او ځای د اوسېدلو د ده دوزخ دی
او بد ځای د ورتلو دی هغه ﴿ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ قَتَلَهُمْ ﴾ نو نه دي وژلي تاسو دوی (کفار په بدر کې په
خپل توان سره ) ليکن الله وژلي دي دغه (کفار) چې تاسو ته يې مرسته درکړي وه او د دوی په زړونو کې يې ويره
وراچولې وه ) ﴿ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ ﴾ ( او ويشتل نه دي کړي تا ( اې محمده ! ) په هغه وخت کې چې
(ظاهري) ويشتل کړي وو تا ) يعني اې محمده اپه حقيقت کې تا ويشتل ندي کړي کله چې دي يو موټی خاوري
د کفارو لوري ته ورو شيندلې او د ټولو په سترګو کې اغزي شوې څکه يو موټی خاوري د ستر لښکر سترګې نشې
ورډکولای. ابن عباس رضی الله عنه وايي: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم يو موټی خاوري راواخيستلې
او د کفارو مخونو ته يې ور وشيندلې او ويې ويل: (شاهت الوجوه) نو هيڅوک پاتي نشول چې دغه خاوري يې په
سترګو او سپوږمو کې نه وې ننوتلې نو يې ماتي وخوړله او په شا شول (١) ﴿ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ رَمَىٰ ﴾ وليکن الله دغه
ويشتل کړي وو په رسول او د دغو شګو د دوی سترګو ته نو ګواکې په حقيقت کې دغه د الله کار وو ﴿ وَلِيُبْلِيَ
ٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَآءً حَسَنًا ﴾ او د دې لپاره چې ( الله ) وازمويي مؤمنان له نزده خپله په ازموينه نيکه سره )
يعني دغه الله جل جلاله د دې لپاره وکړل چې کافران مات او مغلوب شي او په مؤمنانو باندي اکرام د مرستې،
ولجې او ثواب وشي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ ( بېشکه الله ښه اورېدونکی ښه عالم دانادی ) يعني
اورېدونکی دی د خبرو د دوی او عالم دی په نيتونو او احوالو د دوی ﴿ ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ ٱللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾
دغه ( د مشرکينو قتل او د مسلمانانو نصرت حق دی) او دا چې بېشکه الله د کفارو د تدبير ضعيفونکی دی (ترڅو
دوی په پښو ونه دربېږي ﴿ إِن تَسْتَفْتِحُوا۟ فَقَدْ جَآءَكُمُ ٱلْفَتْحُ ﴾ ( که غواړئ تاسي فتح ( اې کفارو ) نو په
تحقيق راغله تاسي ته فتح ) دغه خطاب د کفارو قريشو لپاره دی يعني که تاسو په مؤمنانو باندي فتح او نصرت
غواړئ نو دا دی تاسي ته فتح راغله چې ماتي خوړل او مغلوب بدل دي او دغه د تهکم په ډول ورته ويل شوي دي.
طبري وايي: چې د زهري په روايت کې راغلي چې ابوجهل د بدر په ورځ داسي ويل: اې الله ! په موږ کې
(مسلمانانو، يا مشرکانو کې ) چې هرڅوک زيات فاجر او د صله رحمي نه پالونکی وي هغه نن ورځ هلاک کړه !
نو الله جل جلاله دا آيت نازل کړ ﴿ إِن تَسْتَفْتِحُوا۟ فَقَدْ جَآءَكُمُ ٱلْفَتْحُ ﴾ نو ابوجهل فتح غوښتونکی وو
﴿ وَإِن تَنتَهُوا۟ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ او که تاسي منع راوړه د رسول الله له جنګه او له دښمني او له کفر په الله او رسول د
ده ) نو دا ستاسو لپاره ( په دنيا او آخرت کې ) خير دی ﴿ وَإِن تَعُودُوا۟ نَعُدْ ﴾ ( او که بيا راوګرځېدئ تاسي ( جنګ او
کفر ته ) موږ به هم راوګرځو ) يعني که چېري تاسي د رسول الله جګړې او قتال ته راوګرځېدئ موږ به هم د ده مرستې
ته راوګرځو چې پر تاسو برې ورکړو ﴿ وَلَن تُغْنِىَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْـًٔا وَلَوْ كَثُرَتْ ﴾ ( او له سره به دفع ونکړي له تاسي
ډله ستاسي هيڅ شی ( له عذاب د الله نه ) او اګر که ډېره لويه هم وي ) يعني ستاسو هغه ډله چې تاسو يې خپلې

(١) الطبري ١٣ / ٤٤٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

مرستي ته راوبولئ که څه هم ستاسو ملګري اوپلويان زيات هم وي د دنيا عذاب به درڅخه دفع نکړي ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او(پوه شئ ) چي بېشکه الله له مؤمنانو سره دی ( په نصرت او تائيد سره ) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ ( اې هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی ( اې مؤمنانو ! ) حکم ومنئ تاسي دالله اورسول دالله ) يعني اې مؤمنانو ثابت اودائم اوسئ په اطاعت دالله اورسول دالله ترڅوستاسي هغه بری او عزت دائم پاتي شي کوم چي په بدرکي مولاس ته درغی ﴿ وَلَا تَوَلَّوْاْ عَنْهُ ﴾ اومخ مه ګرځوئ تاسي له دغه ( اطاعته چي مخالفت يې کوئ د ( تولوا ) اصل (تتولوا ) وو يوه تاپې حذف شوي ده ﴿ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴾ حال دا چي تاسي اورئ قرآن ( اونصيحتونه ) ﴿ وَلَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ قَالُواْ سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴾ ( اومه کېږئ تاسي ( اې مؤمنانو ) په شان د هغو کسانو چي وايي: وا اورېده مو ږ حال دا چي دوی نه اوري ) يعني تاسي د هغو کفارو په شان مه کېږئ چي په غوږونو اوري ، زړونه يې نه مني د دوی اورېدل دنه اورېدلو په شان دي ځکه له اورېدلو څخه غرض تدبر او پند اخيستل دي ﴿ إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ ٱللَّهِ ٱلصُّمُّ ٱلْبُكْمُ ﴾ بېشکه بدتر د ټولو حيواناتو ) (هغه چي په مځکه ګرځي ) په نزد دالله ( هغه دي چي ) کاڼه دي ( دحق له اورېدلو ) اوګونګيان دي ( دحق له ويلو څخه) ﴿ ٱلَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴾ هغه کسان دي چي دوی عقل نلري هغه عقل چي د خير او شر توپير ورباندي وکړي ، دغه آيت د(عبد الدار ) دخلګو ديوه ټولګي په باب نازل شوی چي دوی ويل : موږ په هغه څه چي محمد صلی الله عليه وسلم راوړي کاڼه اوګونګيان يو نو يې درسول الله جګړې ته ملا وتړله اود ابوجهل ملګرتيايې غوره کړه ؛ په آيت شريف کي د کفارو بېبخي زياته بدي څرګنده شوي چي دوی ترسپيو ، خنزيرانو اوخرو لابدتر دي ځکه دوی له خپلو حواسو ګټه نه ده اخيستي بلاشبه نوتر حيواناتو لابدتر دي ﴿ وَلَوْ عَلِمَ ٱللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَّأَسْمَعَهُمْ ﴾ ( اوکه معلوم وای الله ته پدوی کي څه خير نو خامخا به يې دوی اورولي وو ) په اورولو د پوهي اوتدبر سره ﴿ وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعْرِضُونَ ﴾ ( اوکه اورولي وای دوی الله نو هرومرو به ګرځېدلي وای حال دا چي دوی به ځنګ کونکي وود ( حق له قبلولو ) يعني که فرضاً الله پاک دوی اورولي هم وای دا سره له دې چي الله ته ورمعلوم دی چي په دوی کي هېڅ خير نشته نو دوی به اعراض کړی وو په انکار او عناد سره او پدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره دادېنه او تسلا ده چې کافران ايمان نه راوړي

بلاغت:

١- پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ﴾ دلته د بعيد لپاره اشاره ده ځکه چي رتبه يې لوړه او منزلت يې بعيد دی د شرافت خاوندان دي.

٢- ﴿ لَّهُمْ دَرَجَٰتٌ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ دلته يې درجات (زينې) دلوړو مراتبو لپاره چي په جنت کي دي استعاره کړې دي.

٣- ﴿ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى ٱلْمَوْتِ ﴾ دلته تشبيه تمثيلي ده.

٤- ﴿ لِيُحِقَّ ٱلْحَقَّ ﴾ دلته اشتقاقي جناس موجود دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۵ - پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ ذَاتِ ٱلشَّوْكَةِ ﴾ اغزي يې له وسلې څخه استعاره راوړې ځکه ددوی ترمينځ وجه جامع تېره والی او سختي ده.

۶ - ﴿ وَيَقْطَعَ دَابِرَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ دلته بېخ ايستل له يو مخه ايزه هلاکت څخه کنايه ده.

۷ - پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ ﴾ دمضارع صيغه يې دعجيب صورت د استحضار لپاره راوړې ده.

۸ - ﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ جار او مجرور يې په مفعول به باندې ځکه مخکې راوړي چې د مقدم اهتمام او د مؤخر لپاره تشويق افاده کړي.

۹ - د الله جل جلاله پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ إِن تَسْتَفْتِحُوا۟ فَقَدْ جَآءَكُمُ ٱلْفَتْحُ ﴾ دلته خطاب دمشرکانو لپاره داستهزاء په ډول دی لکه چې وايي: ﴿ ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْكَرِيمُ ﴾ الدخان: ۴۹

۱۰ - ﴿ إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ دلته يې کفار له بهائمو، بوده ګانو سره مشابه بلکه بدتر ګڼلي او دغه د بلاغت وروستی پړاو او داعجاز وروستی پوړۍ ده ځکه کافر هم حق نه اوري او ځلوربول يې هم نه اوري او نه کافر و رباندې نطق کوي او ګرېږي نه هم حيوان، کافر خوراک، څښاک کوي حيوان هم نو پاتې شوه داچې کافر زبان رسوي او حيوان يې نه رسوي نو ولې به تر حيوان بدتر نه وي !؟

تنبيه:

الله جل جلاله پدې سورت کې يادونه وکړه چې مؤمنانو ته يې په يو زر پرښتو مرسته او مدد ورکړی دی او په آل عمران سورت کې يې د دريو زرو ملائکو يادونه کړې ده ؛ دآيتونو ترمينځ تعارض نشته ځکه الله پاک دلته د ﴿ مُرْدِفِينَ ﴾ لفظ استعمال کړی او معنايې پر له پسې ده نو لومړی يې په زروتنو او بيايې په دريو زروتنو سره مدد کړيدی والله الموفق.

الله تعالی فرمايي:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱسْتَجِيبُوا۟ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ ۖ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ ٱلْمَرْءِ وَقَلْبِهِۦ وَأَنَّهُۥٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٢٤﴾ وَٱتَّقُوا۟ فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنكُمْ خَآصَّةً ۖ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿٢٥﴾ وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِى ٱلْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ ٱلنَّاسُ فَـَٔاوَىٰكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ وَرَزَقَكُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَـٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٢٦﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَخُونُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓا۟ أَمَـٰنَـٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَـٰدُكُمْ فِتْنَةٌ وَأَنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تَتَّقُوا۟ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

﴿ وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ ۚ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ ٱللَّهُ ۖ وَٱللَّهُ خَيْرُ ٱلْمَٰكِرِينَ (٣٠) وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا قَالُوا۟ قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَآ ۙ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ (٣١) وَإِذْ قَالُوا۟ ٱللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ ٱلْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ أَوِ ٱئْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (٣٢) وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ۚ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ (٣٣) وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ ٱللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ وَمَا كَانُوٓا۟ أَوْلِيَآءَهُۥٓ ۚ إِنْ أَوْلِيَآؤُهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (٣٤) وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ ٱلْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ (٣٥) إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ لِيَصُدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ (٣٦) لِيَمِيزَ ٱللَّهُ ٱلْخَبِيثَ مِنَ ٱلطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ ٱلْخَبِيثَ بَعْضَهُۥ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُۥ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُۥ فِى جَهَنَّمَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ (٣٧) قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِن يَنتَهُوا۟ يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ وَإِن يَعُودُوا۟ فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ ٱلْأَوَّلِينَ (٣٨) وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ ٱنتَهَوْا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ (٣٩) وَإِن تَوَلَّوْا۟ فَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ مَوْلَىٰكُمْ ۚ نِعْمَ ٱلْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ ٱلنَّصِيرُ (٤٠) ﴾ الأنفال: ٢٤ - ٤٠

### مناسبت او تړاو:

کله چې الله کافران یادکړل او له ځرېدونکو بوده ګانو سره یې مشابه وګڼل ځکه دوی دبلني له منلو څخه غاړه غړولي نو دلته الله جل جلاله مؤمنانو ته حکم وکړچي د الله او رسول حکم ومني او بلني ته یې لبیک ووایې ځکه په هغه د زړونو ژوند او حیات راځي او د دنیا او آخرت بشپړه نېکمرغي ترلاسه کېږي.

### لغتونه:

(مکاء) شپېلی ابو عبیده وایې چي: داصواتو ته د ېږدولونه د فعال په لفظ راځي لکه (صراخ)، جواز، دُعا اونباح) ([1]) (تصدية) چکچکي دلاسونو پړکول اصل یې له صدّی څخه اخیستل شوی او هغه دغره غبرازانګې (پژواک) ته وایې (فیرکمه) رکم، یوشی دبل دپاسه اوډلوا وجمع کولو ته وایې (رکام) لکه سحاب غوندي وزن دی ([2]) (سلف) تېرشو ( سنة الاولين ) دالله عادت په هلاکولو دمکذبینو دپخوانیوامتونوکي ( مولاکم ) ستاسو ناصر او مدډګار.

---

([1]) البحر ۴ / ۴۷۴

([2]) تیره مرجع

Bawar.net



## دنزول سبب:

ابن جرير له زهري څخه روايت کوي چي: کله رسول الله صلى الله عليه وسلم دبنى قريضه يهودان محاصره کړل نودوى سوله (صلح) وغوښتله نورسول الله صلى الله عليه وسلم حکم ورته وکړچي دسعدبن معاذ په فيصله دي رانښکته شي نودوى ورته وويل موږته ( ابولبابة) راولېږه هغه ووچي رسول الله صلى الله عليه وسلم ورواستاوو دوى ابولبابة ته وويل: ته څه فکرکوې آيامونږ دسعدبن معاذ په فيصله ښکته شونوابولبابه غاړي ته اشاره وکړه ( يعني دغه ښکته کېدل دوژلواوذبح کېدلومرادف دي ) ( ابولبابة ) وايي: زمادي په الله لوړه اوقسم وي چي زه لاپه همغه ځاى ولاړوم چي وپوهېدم ماد الله اورسول الله سره خيانت وکړاوقسم مي وکړچي ترهغوبه نه څه خورم ، نه به څه څښم ترڅويامړشم اويامي الله جل جلاله توبه قبوله کړي نودغه آيت شريف نازل شو:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱسْتَجِيبُوا۟ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ ﴾ دآيت ترپايه اوبيايې توبه نازله شوه.(١)

## تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱسْتَجِيبُوا۟ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ ﴾ اې هغوکسانوچي دوى ايمان راوړى دى ( اې مؤمنانو ) حکم منئ تاسي (خاص) دالله اودرسول ( دالله ) کله چي وبولي تاسي لپاره دهغه کارچي ژوندي کوئ تاسي (په ابدي ژوند سره ) قتادة وايې چي: دغه عبارت له قرآنکريم څخه دي چي په دنيا اوآخرت کي وربانديژوند، اعتبار، نجات اوعصمت ( ساتنه ) کېږي (٢)﴿ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ ٱلْمَرْءِ وَقَلْبِهِۦ ﴾ (اوپوه شئ تاسي چي بېشکه الله پرده کېږي په منځ دانسان اودزړه دده کي) يعني الله جل جلاله په ټولو څېزونو تصرف کوي اوزړونه هم دغسي اړوي چي خوښه يې شي دغه کاردزړونو دخاوندپه لاس کي نه دى څکه د هغه موخي اوهدفونه بدلوي سمي لاري ته يې راکاږي اويايې له سمي لاري څخه کږې لاري ته زړه ښويوي. په حديث شريف کي راځي:( يامقلب القلوب ثبت قلبي على دينک ) ابن عباس رضى الله عنه وايې: الله جل جلاله پرده کېږي دمؤمن اوکفرترمينځ اوهمداراز دکافراوايمان ترمينځ (٣) ابوحيان وايې چي: پدې کي دالله جل جلاله څخه وېره اودهغه جل جلاله مراقبت اوڅارنه ده اوداچي څومره ژرکېږي دالله جل جلاله دحکم مننه اواطاعت دي وکړي (٤)﴿ وَأَنَّهُۥٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴾ اوبېشکه شان هم دادى چي تاسوخاص هم ده ته جمع کېږئ ( نوستاسي په عملونوبه جزادرکړي﴿ وَٱتَّقُوا۟ فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنكُمْ خَآصَّةً ﴾ اوځان وساتئ تاسي له هغي فتنې څخه چي نه رسېږي (عذاب يې يوازي ) هغوکسانوته چي ظلم يې کړى وي له تاسي څخه (بلکه عمومي به وي) يعني دالله له نيولواوانتقام څخه ووېرېږئ اوله داسي فتنې څخه وېره وکړئ چي که په تاسوراولوېږي يوازي دظلم ظالمانواوبدانوته نه رسېږي بلکه ښه اوبدبه ټول سره نغاړي څکه ظالم ته دظلم په سبب رسېږي اونورته بيادچوپتيااوسکوت په سبب چي ولي يې ظالمان له ظلمه نه راګرزول ؟ په حديث شريف کى راځي چي: کله خلګ

---

(١) روح المعاني للالوسي ٩ / ١٩٥
(٢) الطبري ١٣ / ٤٦٨
(٣) روح المعاني ٩ / ١٩١
(٤) البحر ٤ / ٤٨١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ظالم سړي ووینې چې ظلم کوي او له ظلم څخه یې لاس لنډ نه کړي نژدې دی چې داسې عذاب ورته راشي چې ټول به یې راګېر او ونیول شي (۱) ابن عباس رضی الله عنه وایې چې: الله پاک مؤمنانو ته حکم کړی چې پخپل مینځ منکر (ناکاره عمل) پرې نږدئ که نه نو به الله دوی ټولو ته عذاب ورکړي که ظالم وي او که بل څوک (۲) ﴿ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴾ (او په دې پوه شئ چې بېشکه د الله عذاب سخت دی) پدې کې سخت وعید دی یعنې د الله عذاب د ګناهګارانو لپاره سخت دی ﴿ وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (او یاد کړئ هغه وخت چې تاسو لږ (شمېر) ضعیفان کړی شوي وی په ځمکه کې) یعنې تاسو هغه وخت درپه یاد کړئ چې د مکې په ځمکې کې کافرانو تاسې مغلوبان کړي وی او له دین څخه په اړولو یې ډول ډول تکلیفونه او مشکلات در لیدل ﴿ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ ٱلنَّاسُ ﴾ (و بېرېدی تاسي له دې نه چې تاسي به په تلواره خلګ وتښتوي) یعنې تاسو له کافرانو څخه وېره لاست چې تاسو به ووژني او یا به موورک کړي خطف په تلواره نیولو ته وایې ﴿ فَـَٔاوَىٰكُمْ ﴾ (نو ځای درکړ (الله) تاسي ته) چې تاسو هلته له دښمنانو څخه خوندي شئ او هغه منوره مدینه وه ﴿ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ ﴾ (او قوت یې درکړ تاسي ته په کومک خپل سره) یعنې د بدر په ورځ یې تاسو ته ټینګ نصرت درکړ چې دښمن مو مغلوب شو ﴿ وَرَزَقَكُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَـٰتِ ﴾ او روزي یې درکړه تاسي ته له پاکو شیانو) یعنې تاسو ته یې د دوی غنیمتونه پاکېزه حلال وګرزول چې تردې پخوا دهیچا لپاره حلال نه وو ﴿ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ لپاره ددې چې تاسو د دغو (سترو) نعمتونو شکروباسئ غرض د لته دوی ته نعمت وریادونه ده څکه دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر بعثت له مخه خورا لږ شمېر او په ذلت کې وو او وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم له بعثت نه خورا په عزت او لوړتیا کې راغلل نو پر دوی باندې ده چې د الله اطاعت وکړي او پدې نعمت یې شکر پر ځای کړي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَخُونُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ ﴾ (اې هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (اې مؤمنانو!) مه کوئ خیانت له الله او رسول د الله سره) یعنې تاسو د خپل دین او پیغمبر په هکله خیانت مکوئ چې د مؤمنانو په اسرارو او رازونو مشرکان خبر کړئ ﴿ وَتَخُونُوٓا۟ أَمَـٰنَـٰتِكُمْ ﴾ (او (مه) کوئ خیانت تاسي په آمانتونو خپلو کې) هغه چې شرعي احکام او تکالیف دي لکه چې الله فرمایي: ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ ﴾ الاحزاب ۷۲ د آیت تر پایه. ابن عباس رضی الله عنهما وایې: له الله سره خیانت د هغه د فرضونو پرېښودل او له پیغمبر سره خیانت د هغه د سنتونو پرېښودل او د ګناهو نو کول دي او امانات بیا هغه اعمال دي چې الله پاک بندګان ور باندې أمناء ټاکلي او ګمارلي دي (۳) ﴿ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ حال دا چې تاسي پوهېږئ) چې دغه خیانت دی او تاسو ته یې عذاب او وبال معلوم دی ﴿ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَـٰدُكُمْ فِتْنَةٌ ﴾ (او په دې پوه شئ تاسي چې بېشکه مالونه ستاسي او اولادونه ستاسي ابتلاء ده) چې تاسو الله ازمېږي چې څرنګه له مالونو، اولادونو سره سره د الله

---

(۱) رواه البخاري.

(۲) حاشية الصاوي ۲/۱۲۲

(۳) روح المعاني ۹/۱۹۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



جل جلاله د حدودو ساتنه کوئ. امام فخر رازي وايي: څکه ازمويښت دی چي ددوی زړه په دنيا مشغول کوي او دخپل بادار له چوپړ وهلو (خدمت) څخه يې پټوي (۱) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجۡرٌ عَظِيمٞ ﴾ او بېشکه په نزد دالله ثواب دېرلوی دی تر مالونو او اولادونو، دالله په اطاعت کولو کي زيار و باسئ ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تَتَّقُواْ ٱللَّهَ يَجۡعَل لَّكُمۡ فُرۡقَانٗا ﴾ اې هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی ( اې مؤمنانو ! ) که و وېرېږئ تاسي له الله (له ګناهونو پرهېز وکړئ او اطاعت پرځای کړئ ) و به ګرځوي ستاسي لپاره هدايت او نور( ستاسي په زړونو کي چي حق او باطل سره بېل کړئ لکه دا قول دالله تعالی: ﴿ وَيَجۡعَل لَّكُمۡ نُورٗا تَمۡشُونَ بِهِۦ ﴾ حديد ۲۸ په آيت شريف کي ددې دليل دی چي تقوی زړه روښانه کوي ، سينه پراخوي ، علم او معرفت زياتوي. ﴿ وَيُكَفِّرۡ عَنكُمۡ سَيِّـَٔاتِكُمۡ ﴾ ( او لېري به کړي له تاسي ګناهونه ستاسي (پخواني) ﴿ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡ ﴾ (او مغفرت به وکړي تاسي ته) يعني ستاسي ګناهونه به پټ کړي او عذاب به ورباندي نه درکوي ﴿ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ او الله څښتن دفضل دېرلوی دی ) فضل يې پراخ او عطاء بخشش يې ستردی ﴿ وَإِذۡ يَمۡكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ او يادکړه (اې محمده ! هغه وخت) چي مکر فريب به کاوو له تاسره هغو کسانو چي کافران شوي وو ) دغه ديو خانګړي نعمت يادونه ده چي په رسول الله صلی الله عليه وسلم شوی وو او( وروسته له هغه عام نعمته چي په ټولو مؤمنانو پېرزو شوی راوړی معنادا چي اې محمده ! صلی الله عليه وسلم هغه وخت چي په دارالندوة کي مشرکانو ستا په هکله چم او دوکه جوړوله هغه در په يادکړه ﴿ لِيُثۡبِتُوكَ أَوۡ يَقۡتُلُوكَ أَوۡ يُخۡرِجُوكَۚ ﴾ چي تاوتړي او يا دي ووژني ( په ټولو سره ) او يادي وباسي تا( له مکې نه) ﴿ وَيَمۡكُرُونَ وَيَمۡكُرُ ٱللَّهُۖ ﴾ ( او پټ فريب کوي دوی (له تاسره ) او جزا دمکرالله دوی ته ور کوي) يعني دوی ستالپاره دوکه سنجوي خو الله جل جلاله ددوی دوکي افشاء کوي ﴿ وَٱللَّهُ خَيۡرُ ٱلۡمَٰكِرِينَ ﴾ او الله جل جلاله بهتره دجزا ورکونکو دمکر دی. يعني دالله جل جلاله مکر ددوی ترمکرزيات اغيزناک او کارکونکی دی. طبري پخپل روايت کي له ابن عباس رضی الله عنه څخه راوړي چي يوځوتنه دقريشو اشراف او مشران په (دارالندوة) کي سره راغونډ شول نو ابليس هم ديومخه ورتن عزتمن سپين دېري په جامه کي ورته راغی کله چي دوی وليدو ورته ويل يې: ته څوک يې ؟ هغه ورته وويل: دعرب يو شيخ سپين روبی يم ستاسي په ټولنه او اجتماع خبرشوم و مي غوښتل له تاسو سره يوځای او خپله رايه او پند درسره ګډ کړم. دوی ورته وويل: سمه ده رادننه شه نو يې ورته وويل: ددغه سړي (محمد ) په شان کي خپلي رايې او نظريې ووايا ست نو يو چا وويل چي: هغه په ټينګو پړيو وتړئ او پرېږدئ چي پخپله يې مشکلات ووژني نو ابليس وويل: دا هيڅ رايه نه ده. بېخي کېدای شي چي ملګري يې راپاڅېږي او ستاسي له لاسه دي وژغوري. بل چا وويل چي: له وطنه دي وشړل شي ترڅو يې له شرڅخه په امن شئ نو کله چي ووزي بيا به تاسو ته زيان هڅونه ورسوي هرڅېري چي وي. نو موږي شيخ وويل: والله چي دا هم هيڅ رايه نه ده. آيا تاسو دهغه خوږه ژبه نه وينئ دهغه سحرآميزه لهجه مونه ده ليدلي چي دخلګو زړونه په خبرو باندي دخان کوي ؟ په الله لوړه که مو داسي وکړل نو ټول عرب به پرتاسو راټول شي ترڅو موله خپل هيواده وشړي او مشران ، مخه ور کسان مو ووژني . دوی وويل: رښتيا وايي له دې پرته بل رايه او نظريه وړاندي کړئ. ابوجهل وويل: زمادي په الله قسم وي زه به يوه رايه ووايم

---

(۱) التفسير الکبير ۱۵ / ۱۵۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي ترهغې بله پخه رايه نه وينم دوی ورته ويل: هغه څه ده؟ نوويې ويل: چي دعربو د ګرده قبائلو څخه دي يو يوزړه ورځلمی غوره شي اودغه بهادرځلميان دي ټول سره لاسونه يو کړي اويو خل دي پخپلو تېرو تورو سره په ټلوار (ديوسري دوهلوپه شان) پرمحمد (صلی الله عليه وسلم) ګوزار وکړي چي وينې يې په ټولو قبائلو کې تيت شي اوګومان نه کوم چي بني هاشم دي له ټولو قريشو سره جنګ وکړای شي نوبه ديت ته غاړه کېږدي اوموږ به څيني بېغمه اوله زيان څخه به يې وژګارشو نو ابليس دالله دښمن چيغه وکړه چي په الله سوګند داهسي رايه دچي زه يې غوره نه وينم پدې فيصله وشوه اوسره تيت شول جبريل عليه السلام رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغی ورته وېې ويل چي: دشپې پخپل ځای کې مه څمله (الله جل جلاله) دهجرت امر درته وکړ،اوکله چي مدينې منورې ته ولاړی وروسته الله دخپل دغه نعمت يادونه ورته کوي فرمايي: ﴿ وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ ۚ ﴾ [1]﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا قَالُوا۟ ﴾ اوکله چي ولوستلی شي پردوی باندي آيتونه زموږ نووايي دوی) يعني کله چي دوی ته دمبين قرآن آيتونه ولوستل شي دوی دتکبر اوعنادله مخي وايي: ﴿ قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَآ ۙ ﴾ په تحقيق واورېده موږ (دغه کلام) که موږوغواړو نوخامخابه موږهم ووايوپه مثل دده ﴿ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ (ندی دغه کلام مګر خودی ددروغوليکل دپخوانيو) يعني نه دی دغه قرآن کوم چي ته يې موږته لولې مګردروغ کيسې د پخوانيو خلګوليکلي شوي دي دغه دالله کلام نه دی. ابوالسعودوايي چي: دغه نوبېخي عناد اومکابره ده اوولي نه که دوی کولای شوای يوه شبهه به يې هم درنګ نه وو کړی چي دغسي کلام يې اورولای وای خوددوی توان نه ووځکه لس کاله دوی ته ددې تحدیٰ او (چيلنج) ورکول شوی دی اوبياورسره په توره مقابله وشوه او توان يې ونه درلود سره ددوی له زياته غروره اوتکبره چي غوښتل يې دوی به تل برياليي وي اوپه خاصه توګه بيادبيان اوبلاغت په ډګر کي ﴿ وَإِذْ قَالُوا۟ ٱللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ ٱلْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾ اوياد کړه هغه وخت چي وويل: دغو(کفارو) ياالله که چېري وي دغه (قرآن) حق ستاله لوري (نازل شوی) نورا واوروه پر موږباندي کاڼي له آسمانه (لکه چي دلوط په قوم دي رااورولي وو) ﴿ أَوِ ٱئْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ يارااوړه (راولېږه) بل ډول دردناک عذاب؛ دغه خبره دوی داستهزاء اوملنډوپه ډول کوله. ابن کثيروايي: دغه ددوی له خورا جهل اوناپوهي څخه وه چي سخت عناد او تکذيب يې کاووکه نه بهتره خوداوه چي ويلي يې وای: الهي که داقرآن ستاله لوري نازل شوی اوحق وي نوموږ ته د منلو او اتباع لارښوونه وکړه خودوی دناپوهي په سبب دعذاب دژر راتلو غوښتنه کوله [2]﴿ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ۚ ﴾ (اونه دی الله چي په عذاب کاندي دوی حال داچي ته (اې رسوله!) په دوی کي يې) دغه ددوی دسپکي اوناکاره خبري خواب دی چي ددوی له عذابه د خوندي پاتي کېدلوموجب ستاسو وجوددی که نه دوی خودعذاب وړاو مستحق دي خوالله پدې عذاب نه ورکوي چي ته پکښې يې دغه ستا داکرام له وجهي دالله جل جلاله سنت داسي جاري دی چي هيڅ امت ته ترڅوچي پيمغبرورسره

---

(1) الطبري ۱۳/ ۴۹۵

(2) المختصر ۲/ ۱۰۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وي عذاب نه ورويني (¹) او مراد په عذاب سره له بېخه ايستل او بشپړ هلاکت دی ﴿ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ ( او نه دی الله عذابونکی ددوی حال دا چي دوی مغفرت غواړي ) يعني الله دغه کفار ترهغو نه هلاکوي ترڅو چي ددوی په مېنځ کي مؤمنان وی او له الله څخه مغفرت غواړي او دغه هغو مستضعفينو مؤمنانو ته چي ددوی په مېنځ کي پاتي وو اشاره ده. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: ددوی په مېنځ کي دوه امانه موجود وو چي يو د الله نبي صلی الله عليه وسلم او بل استغفار دالله جل جلاله نبي خو ولاړ او استغفار به تر قيامته پوري پاتي وي (²) ﴿ وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ او څه دي دوی ته چي نه په عذابوي دوی الله يعني څه شی دی چي له دوی څخه عذاب نفی کوي؟ او ولي به عذاب نشي ورکولای چي دوی هومره ګمراهان او سرغړونکي دي ﴿ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾ حال دا چي دوی منع کوي خلګ له (دخول د) مسجد حرام نه) لکه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم يې د حديبي په کال منع کړ او لکه چي رسول الله او مسلمانان يې له مکې څخه منورې مدينې ته په هجرت کولو اړ ايستل ﴿ وَمَا كَانُوٓا۟ أَوْلِيَآءَهُۥٓ ﴾ ( او نه دي دوی واکداران ددغه (مسجدحرام) څکه دوی مشرکان دي ﴿ إِنْ أَوْلِيَآؤُهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ ندي واکداران ددغه ( مسجدحرام) مګر متقيان دي يعني دواکداري وړ او اهل يې نېکان او متقيان دي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ليکن اکثره د دوی نه پوهېږي چي ويل به يې مور د بيت الله او حرم واکداران يو چا ته به د دخول اجازه ورکوو او څوک به بيانه پرېږدو. له آيت شريف څخه غرض ددوی دعذاب او د بېخ بکرايستلو استحقاق او ورتيا دي چي دوی هومره سخت جرائم کړي خو د رسول الله صلی الله عليه وسلم او مستضعفينو مسلمانانو د مغفرت غوښتلو له امله الله عذاب ځيني پورته کړي دي ﴿ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ ٱلْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَتَصْدِيَةً ﴾ ( او نه وو لمونځ (عبادت) ددغو (کفارو) په نزد د کعبې کي مګر شپېلۍ وهلې او لاسونه ټکول؛) مشرکانو به دغه افعال هله کول چي مسلمانانو به لمونځ ګذارل ترڅو د دوی لمونځ ورګډ وډ کړي معنا دا چي دوی به دلمانځه او تقرب الی الله په وخت کي شپېلۍ او چکچکي وهلې. ابن عباس رضی الله عنه وايي: قريشو به په بيت الله باندي بربنډ طواف کاوو شپېلۍ به يې وهلې او لاسونه به يې پر کول (³) ﴿ فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ (نو وڅکئ تاسي عذاب په سبب دهغه څه چي وی تاسي کفر به موغوره کاوو ) يعني وڅکئ عذاب دقتل او بند په سبب د کفر او بدو اعمالو ستاسي او پدې کي هغه څه ته اشاره ده چي د بدر په ورځ پېښ شول ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ لِيَصُدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي کافران شويدي لګوي مالونه خپل د پاره ددې چي خلګ دالله له لاري څخه منع کړي ) يعني چي اسلام ته څوک داخل نشي او خپل مالونه د رسول الله سره د جنګ په لاره کي مصرفوي. طبري وايي چي: کله د قريشو کفار په بدر کي وځپل شول او پاتي کسان يې مکې ته راستانه شول نو يې وويل: اې د قريشو خلګو! بېشکه محمد صلی الله عليه وسلم تاسي وځپلاست مشران يې درڅخه ووژل نو له مور سره په خپلو مالونو مرسته وکړئ ښايي چي مور د خپلو مړيو او تکليفونو کسات ځيني واخلو بيا دا آيت نازل

(¹) البحر المحيط ۴/ ۴۸۹
(²) الرازي ۱۵/ ۱۵۸
(³) الطبري ۱۳/ ۵۲۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شو[۱] ﴿ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ﴾ نوژر به نورهم ولگوي دغه مالونه بيا به شي دغه ( لگول
پردوی باندي پښېماني ) يعني دوی به دغه خپل مالونه لگوي او بيا به ورباندي پښېماني کوي چي مال يې درومي
اومطلب يې نه حاصلېږي دوی هيله لرله چي دالله جل جلاله بل شوی نور( مشال ) به مړ کړي او د کفر کلمه به لوړه
کړي ﴿ ثُمَّ يُغْلَبُونَ ﴾ بيا به په آخر کي مغلوب شي دغه اخبار په غيب باندي دی. ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِلَىٰ
جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴾ او هغه کسان چي کافران شوي دي او په کفر کي مړه شي دوزخ ته به شړل کېږي نو د دوی
پښېماني او حسرت ستر او زيات دی چي څوک ژوندي وي له دوی نه او يا هلاک شوي وي ﴿ لِيَمِيزَ ٱللَّهُ ٱلْخَبِيثَ
مِنَ ٱلطَّيِّبِ ﴾ ( د پاره د دې چي بېل کړي الله ناپاک (کافر ) له پاک(مؤمن ) څخه ) يعني ترڅو الله جل جلاله د رحماني
لښکرو فرق له شيطاني لښکرو څخه وکړي او ابرار مؤمنان له اشرارو کفارو څخه جلا کړي ﴿ وَيَجْعَلَ ٱلْخَبِيثَ
بَعْضَهُۥ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ او بيا کېږدي خبيث (سره لاندي باندي) ځيني د ده پر ځينو نورو باندي ﴿ فَيَرْكُمَهُۥ ﴾
نورا ټول به کړي دا(خبيثان ) ټول ) يعني غونډ به يې کړي د زيات ازدحام له وجي ﴿ فَيَجْعَلَهُۥ فِى جَهَنَّمَ ﴾
نو وبه يې غورځوي په دوزخ کي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ دغه (لگونکي د مال يا خبيثان ) هم دوی
زيانکاران دي ) يعني دوی د بشپړ خسران خاوندان دي چي ځانونه او مالونه يې د واړه په خسران کي لوېدلي بيا الله
جل جلاله دوی توبې او رجوع ته راوبلل چي له کفر څخه دي لاس واخلي نور دي په گمراهي او بې لاري کي نه اوسي
فرمايي: ﴿ قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِن يَنتَهُوا۟ يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ ﴾ (ووايه ( اې محمده ! ) هغو کسانو ته
چي کافران شويدي که واوړي ( بس کړي له کفره ) نو وبه ښښلی شي دوی ته هغه بدي چي په تحقيق پخوا تېري
شوي وي ) يعني اې محمده ! دغه ستا د قوم مشرکانو ته ووايه که چېري له کفره لاس واخلي په الله ايمان راوړي
ستا او د مسلمانانو سره جنگ کول پرېږدي نو به د دوی هغه تېر شوي گناهونه او جرمونه ورو ښښل شي ﴿ وَإِن يَعُودُوا۟
فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ او که بيا وگرزي (کلک شي په کفر او جنگ ) نو تېره شوي ده لاره (د الله عادت
په حق) د پخوانيو کي ) يعني الله جل جلاله بيا هغه کسان چي د انبياوو تکذيب يې کوی هلاکوي او همداسي به له
دوی سره وکړي دغه د دوی لپاره سخت وعيد دی که چېري له تکبر او عناده وانه وړي هلاک به شي ﴿ وَقَٰتِلُوهُمْ
حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ ﴾ (او وجنگېږئ (اې مؤمنانو )له دغو (کفارو ) سره ترهغو چي پاتي نشي فتنه (په ځمکه
کي ) يعني اې مؤمنانو له مشرکانو سره ترهغو وجنگېږئ ترڅو د شر تغر د ځمکي له مخ نه ټول شي او له الله تعالی
پرته د بل هيچا عبادت ونه کول شي . ابن عباس رضی الله عنه وايې : مراد له فتنې څخه شرک دی يعني
ترڅو يو مشرک هم په سر د ځمکي پاتي نشي . ابن جريج وايې چي: د فتنې معنا دا چي مؤمن له خپله دينه څخه په
فتنه کي ونه لوېږي[۲] ﴿ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِ ﴾ او شي دين (حکم ) ټول خاص الله لره يعني ټول دينونه
محو او يوازي د اسلام دين پاتي شي . الوسي وايې چي : د دينونو امحاء ياخو د ټول اهل په هلاکت سره د

---

[۱] الطبري ۱۳ / ۵۳۸
[۲] الطبری ۱۳ / ۵۳۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اویادمرګ له وېرې ددوی رجوع کول دي([1]) چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: (أمرت ان أقاتل الناس حتى يقولوا لااله الاالله) یعني ماته حکم شوی ترهغوله خلګوسره وجنګېږم ترڅودوی دا کلمه طیبه ووایي ﴿فَإِنِ ٱنتَهَوْاْ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ نوکه واوړي دوی (له کفره او اسلام راوړي) نو بېشکه الله پرهغو عملونو چې دوی يې کوي ښه ليدونکی دی نو به ددوی په توبه کولو او اسلام راوړلو ثواب ورکړي ﴿وَإِن تَوَلَّوْاْ فَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَوْلَىٰكُمْ﴾ (او که مخ وګرځوي دوی (له ايمانه) نو پوه شئ اې مؤمنانو چې بېشکه الله ستاسي ساتونکی بادار دی) یعني که چېرې دوی له کفرڅخه نه ګرځي او له ايمانه مخ نه اړوي نو تاسو په دې پوه شئ چې الله ستاسو ناصر او مرستندوی دی دهغه په ساتنه او مرسته ډاډه اوسئ ددوی ددښمنۍ هيڅ پروا مکوئ ﴿نِعْمَ ٱلْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ ٱلنَّصِيرُ﴾ ښه مولا او ښه مددګار دی) یعني الله ښه بادار دی هغه چې خپل دوستان نه هېروي او ښه مرستندوی دی څکه له چاسره چې دده مرسته وي اکه پکه بريالی او مراد ته رسېدونکی دی.

## بلاغت:

۱. ﴿يَحُولُ بَيْنَ ٱلْمَرْءِ وَقَلْبِهِۦ﴾ دلته تمثيلي استعاره ده دالله جل جلاله هغه توان چې دخلګو دزړونو په اړولو کي يې لري له هغه څه سره مشابه شوی چې پرده او حائل ګرزي او دغه يوه باريکه استعاره ده.

۲. ﴿وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ﴾ دلته يې دماضي پرځای دهغي عجيبي پېښې داستحضار لپاره دمضارع صيغه راوړه کومه چې مشرکانو درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره دوکه جوړوله.

۳. پدې کلام کي چې الله فرمايي: ﴿وَيَمْكُرُ ٱللَّهُ﴾ دمکرنسبت الله تعالی ته دمشاکلت په توګه راغلی دی یعني ددوی دتدبير ورانول کوي هغه شندوي او دمشاکلت معنادا چې يولفظ دوه څله استعمال شي خو معناګاني تو پيرلري او پخوا هم تېرشو([2])

۴. ﴿وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ ٱلْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَتَصْدِيَةً﴾ وګوره الهي هېښونکی نادرتعبيرته چې قرآني اسلوب څرنګه د(تصفير او تصفيق) پرځای (مکاء او تصدية) راوړي چې دلمانځه پرځای هغه دعبادت په معنانه پوهېږي او نه دبيت الله حرمت ته په درنه سترګه ګوري ګواکي دوی لکه دشاعرهغه قول چې وايي؛ (تحية بينهم ضرب وجيع) یعني ددوی ترمينځ تحيه او سلام سخت وهل ټکول دي.

۵. ددې کلماتو ترمينځ چې ﴿ٱلْخَبِيثَ مِنَ ٱلطَّيِّبِ﴾ دی دطباق صنعت دی او دغه دواړه له مؤمن او کافرڅخه کنايه راغلي ده

---

([1]) روح المعاني ۹/ ۲۰۷

([2]) روح المعاني ۹/ ۲۰۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



**تنبيه:**
حافظ ابن کثیرله ابو سعید بن معلي رضی الله عنه څخه روایت کوي چي هغه وایي: چي زه په لمانځه ولاړوم او رسول الله صلی الله علیه وسلم تېرېدو ماته یې آواز وکړزه ترهغو نه ورغلم ترڅومي لمونځ بشپړکړورته راغلم راته وېې ویل: ولي رانغلې آیاالله جل جلاله داسي ندي فرمایلي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَجِيبُواْ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيكُمۡ ﴾ بیایې راته وویل: زه به تاته تر وتلو دمخه دقرآنکریم یوسورت دروښیم او بیاچي پیغمبر صلی الله علیه وسلم دوتلوتکل وکړ ماورپه یادکړه راته ویل یې: ﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ دغه سبع مثاني اوقرآن عظیم دی چي ماته راکول شوی دی([1])

**لطيفه**
حکایت کېږي چي یوه ورځ معاویه رضی الله عنه دسبأ دښاریوسړي ته وویل: ستاسوقوم څومره ناپوه وو چي ښځي وربادي پاچهي کوله. سړي ورته وویل: (صاحبه!) زماترقوم ستاسوقوم لازیات ناپوه او جاهل وو چي کله رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی حق ته راوبلل نوهغوی وویل: ﴿ ٱللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ ٱلۡحَقَّ مِنۡ عِندِكَ فَأَمۡطِرۡ عَلَيۡنَا حِجَارَةٗ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ أَوِ ٱئۡتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٖ ﴾ خوداسي یې ونه یول چي: (ان کان هذاهو الحق فاهدنااليه) یعني که داحق وي موږ ته هدایت وکړې نومعاویه رضی الله عنه چُپ اوساکت شو.

* * *

([1]) مختصرابن کثیر۲/۹۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ
السَّبِيلِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ
(٤١) إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُم بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوَىٰ وَالرَّكْبُ أَسْفَلَ مِنكُمْ ۚ وَلَوْ تَوَاعَدتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِي
الْمِيعَادِ ۙ وَلَٰكِن لِّيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَن بَيِّنَةٍ وَيَحْيَىٰ مَنْ حَيَّ عَن بَيِّنَةٍ ۗ
وَإِنَّ اللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ (٤٢) إِذْ يُرِيكَهُمُ اللَّهُ فِي مَنَامِكَ قَلِيلًا ۖ وَلَوْ أَرَاكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ
فِي الْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ سَلَّمَ ۗ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ (٤٣) وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ الْتَقَيْتُمْ فِي أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا
وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ (٤٤) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا
لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (٤٥) وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا
وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَاصْبِرُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ (٤٦) وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ
وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ (٤٧) وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ
الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَّكُمْ ۖ فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ وَقَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكُمْ إِنِّي أَرَىٰ
مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ ۚ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ (٤٨) إِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ غَرَّ
هَٰؤُلَاءِ دِينُهُمْ ۗ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (٤٩) وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُوا ۙ
الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ (٥٠) ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ
بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ (٥١) كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ
شَدِيدُ الْعِقَابِ (٥٢) ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ
(٥٣) كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ ۚ
وَكُلٌّ كَانُوا ظَالِمِينَ (٥٤) إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِندَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ (٥٥) الَّذِينَ عَاهَدتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ
يَنقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ (٥٦) فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ
يَذَّكَّرُونَ (٥٧) وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ (٥٨) وَلَا يَحْسَبَنَّ
الَّذِينَ كَفَرُوا سَبَقُوا ۚ إِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُونَ (٥٩) وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ
عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ ۚ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ
إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ (٦٠) ﴾ الأنفال: ٤١ - ٦٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


## مناسبت او تړاو:

څرنگه چي الله تعالی د مشرکانو سره په جگړه کولو امر وفرمایل او د بدر د غزا یو څه برخه یې یادونه وکړه او په جهاد کي به د مجاهدینو لاس ته اکه پکه (خامخا) څه ولجې او غنیمتونه رسېږي او هغه د مشرکینو هغه اموال دي چي په زور سره د بریالیتوب په وخت کي ترلاسه کېږي نو دلته الله پاک د هغوی د ویش او توزیع د احکامو څرنگوالی بیانوي وروسته بیا هغه د اهمیت وړ پېښي چيّ په دغه (د بدر) غزاکي راغلي څېړي

## لغتونه:

(العدوة الدنیا) (عدوة الوادي) د خوړ او کندي څنډي ته وایي دنیا د أدنی تأنیث دی یعني د هر نژدې او مقصد ورڅخه مدینې ته نژدې دی (العدوة القصوی) قصوی د أقصی تأنیث دی یعني خور الیري او هرشی چي له بله لیري وي ورته اقصی وایي مقصد ورڅخه مکې ته نژدې لوری دی (نکص) گرزېدل (کدأب) (دأب) عادت ته وایي او اصل یې د عمل مداومت دی ویل کېږي: (فلان یدأب فی کذا) یعني فلانی دغه کار همېشه کوي او وروسته بیا عادت ته (دأب) وویل شو څکه انسان پخپل عادت باندي مداوم وي (تثقفنهم) لیث وایي: (ثقفنا فلانا فی موضع کذا) یعني موږ په فلاني باندي په هغه ځای کي بری وموند[1] (فشرد) تشرید تفریق او شړلو ته وایي لکه چي وایي: (شردت القوم) کله چي ورسره جگړه وکړي تیت او پرک یې کړي.

## تفسیر:

﴿وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَا غَنِمۡتُم مِّن شَيۡءٖ﴾ او پوه شئ (اې مسلمانانو) بېشکه هرهغه شی چي په غنیمت واخیست تاسي) له کفارو په جنگ کي لږ وي او که ډېر ﴿فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُۥ﴾ نو بېشکه الله لره دی (حکم کول) په پنځمه دهغه کي. حسن وایي: دغه د خبري کِلي (مفتاح) ده اصلاً خو دنیا او آخرت دواړه الله لره دي[2] یعني د الله جل جلاله د نوم یادول د تبرک او تعظیم له وجهي دی لکه: ﴿يَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمۡ لِيُرۡضُوكُمۡ وَٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَحَقُّ أَن يُرۡضُوهُ إِن كَانُواْ مُؤۡمِنِينَ﴾ التوبة: ۶۲ مفسرین کرام وایي: غنیمت په پنځه برخي دی یوه پنځمه د هغه څلپاره چي الله جل جلاله پدې آیت کي یادکړي او نور بیا په غنیمت کونکو مجاهدینو وېشل کېږي ﴿وَلِلرَّسُولِ﴾ او (یوه برخه د خمس) لپاره د رسول (او الله) دی ﴿وَلِذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ﴾ او لپاره د خپلوانو د رسول الله چي بني هاشم او بني عبدالمطلب دي ﴿وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِ﴾ (او لپاره د یتیمانو او (لپاره) د مسکینانو (او لپاره) د مسافرانو دي) یعني دغه ډلي چي یتیمان دي هغه کسان چي پلرونه یې مړه شوي وي یا بېوزلان مسکینان وي او یا په سفر روان مسلمانان وي چي خپل کور او کلی یې ترشا پاتي وي د غه خمس دوی ته ورکول کېږي ﴿إِن كُنتُمۡ ءَامَنتُم بِٱللَّهِ﴾ که یاست تاسو چي ایمان لرئ په الله جل جلاله ،ځواب د شرط محذوف

---

(1) الرازي ۱۵ / ۱۸۹
(2) ابو السعود ۲ / ۲۴۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شوی او تقدیر یې داسې دی که چېرې تاسو په الله ایمان لرئ نو پدې وپوهېږئ چې دغه دغنیمتونو په هکله الهي احکام دي نو د هغه د امر امتثال د هغه په طاعت سره وکړئ ﴿ وَمَآ أَنزَلۡنَا عَلَىٰ عَبۡدِنَا ﴾ او په هغو (آیتونو) چې موږ په خپل بنده محمد صلی الله علیه وسلم باندې نازل کړي دي ﴿ يَوۡمَ ٱلۡفُرۡقَانِ ﴾ په ورځ دفیصلې کې (چې هغه د بدر ورځ او دحق او باطل ترمینځ فیصله کوونکې وه ﴿ يَوۡمَ ٱلۡتَقَى ٱلۡجَمۡعَانِۗ ﴾ هغه ورځ چې سره مخامخ شولې دوارې ډلې (مؤمنان او کافران ) د اسلام لښکري ( جند الرحمان ) او دکفر پلټنې ( جند الشیطان ) ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴾ ( او الله په هرشي باندې ښه قادردی ) هیڅ شی یې مغلوب کولای نشي او له دې څخه ستاسو کامیابي او نصرت هم دی چې تاسو لږ او دوی ډېر وو مګر تاسو الله بریالي کړی ﴿ إِذۡ أَنتُم بِٱلۡعُدۡوَةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ یاد کړئ ( اې مسلمانانو ) هغه وخت چې تاسي په څنډه دکندې نژدې د مدینې ته وی دغه دجګړې د ښېښې انځور او تصویر دی ﴿ وَهُم بِٱلۡعُدۡوَةِ ٱلۡقُصۡوَىٰ ﴾ او وو دغه (کفار) په څنډې دکندې هسې چې ( له مدینې ) لیرې وو ﴿ وَٱلرَّكۡبُ أَسۡفَلَ مِنكُمۡۚ ﴾ او داچې سواره (قافله هغه چې د قریشو تجارت پکې وو ) ښکته وو له تاسي هغه چې د بحر ساحل ته نژدې وو ﴿ وَلَوۡ تَوَاعَدتُّمۡ لَٱخۡتَلَفۡتُمۡ فِي ٱلۡمِيعَٰدِ ﴾ او که یو تر بله وعده کړې وای تاسي (او مشرکانو د جنګ ) نو خامخا به مخالفت کړی وی تاسي په دغه وعده کې لیکن الله جل جلاله پخپل حکمت سره برابره او بشپړه کړه. کعب بن مالک رضی الله عنه وايي : بېشکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانان د قافلې په لټه کې راووتل ترڅو چې الله جل جلاله دوی او دښمنان ددوی پرته له کومې وعدې سره مخامخ کړل[1] امام رازي وايي چې : معنایې داده که تاسو او دمکې مشرکانو د جنګ کولو لپاره کومه نېټه ټاکلې هم وای نو ستاسو څینو به دنورو مخالفت کړی وو څکه تاسو لږ او دوی ډېر وو [2] ﴿ وَلَٰكِن لِّيَقۡضِيَ ٱللَّهُ أَمۡرٗا كَانَ مَفۡعُولٗا ﴾ ( ولیکن ( یې له وعدې الله تاسي جمع کړی ) دپاره ددې چې پوره کړي الله هغه کار چې مقرر شوی وو (په ازل کې ) یعني لیکن الله جل جلاله تاسو یو دبل سره جمع کړی ترڅو ترسره کړي هغه کار چې پخپل قدرت سره یې اراده لرله چې اسلام او مسلمانان عزتمن او شرک او اهل یې سپک او خوار کړي او دغه کار خامخا کېدونکی وو مقصد له آیت شریف څخه داچې دوی ته دغه ثابته شي چې دغه ددوی بری او فتح دالله جل جلاله له لوري څخه یو خارق العادة پېښه وه نو به یې ایمان او شکر لازیات او قوي شي او ددوی څانونه به دخمس ورکولو لپاره مطمئن او چمتو شي ﴿ لِّيَهۡلِكَ مَنۡ هَلَكَ عَنۢ بَيِّنَةٖ ﴾ (لپاره ددې چې هلاک شي هغه څوک چې له شانه یې هلاک وي پس له قیامه د حجت روښانه ) ﴿ وَيَحۡيَىٰ مَنۡ حَيَّ عَنۢ بَيِّنَةٖۗ ﴾ ( او ژوندی پاتې شي هغه څوک چې له شانه یې ژوندون وي پس له قیامه د روښانه حجت ) یعني الله تعالی دغه کار څکه وکړ چې کافر شي هغه څوک چې کافر شوی له څرګند بدا او روښانتیا او ایمان راوړي هغه څوک چې مؤمنان شوي له څرګند بدا او روښانتیانه[3] څکه چې دبدر

---

[1]) الطبري ۱۳ / ۵۲۲

[2]) تفسیر الرازي -۱۵- ۱۲۷

[3]) طبري وايي : معنایې داده چې مړ شي هغه چې مړ شوی له مخلوق دده نه پس له درولو د الهي حجت هغه چې ده لره مقرر شوی وو او دده عذر له مینځه لاړ شي او ترڅو ژوندي پاتې شي هغه چې ژوندي شوي وروسته له قیامه د حجت نه چې ده لره

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ببښنه دالله جل جلاله په نصرت باندي چي خپلو اولياوو ته يې ورکړ او خپل دښمنان يې مغلوب وګرزول له څرګندو معجزاتو څخه ګڼل کېږي ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ اوبېشکه الله خامخا ښه اورېدونکی (داقوالو دبندګانو) ښه پوه دی (په نيتونو د دوی) ﴿ إِذْ يُرِيكَهُمُ ٱللَّهُ فِى مَنَامِكَ قَلِيلًا ﴾ (يادکړه) هغه وخت چي (الله) وښودل تاته دغه کفار لږ په خوب کي (او تا اصحابان پرې خبر کړل ترڅو چي زړونه يې داډه او په جنګ کولو ورزړور شول. مجاهد وايي چي: الله په خوب کي هغوی ده ته لږ وروليدل او نبي صلی الله عليه وسلم بيا اصحابان ورباندي خبر کړل نو دغه د اصحابانو د ټينګار او ثبات سبب شو ﴿ وَلَوْ أَرَىٰكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ ﴾ او که ښودلي وای (الله) تاته (اې محمده!) دوی ډېر (او تا اصحاب خبر کړي وای) نو خامخا به بې زړه سوي وای تاسي (اې اصحابانو) او له دوی سره په جنګ کولو به نه وای توانېدلي. وګوره د قرآنکريم محاسنو ته چي د بې زړه توب نسبت يې پيغمبر ته ونکړ څکه هغه صلی الله عليه وسلم معصوم دی نو يې وفرمايل: ﴿ لَّفَشِلْتُمْ ﴾ چي اشاره اصحابانو ته وشي ﴿ وَلَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ ﴾ او خامخا نزاع به مو کوله (د دوی د جنګ) په کار کي ﴿ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ سَلَّمَ ﴾ وليکن الله سلامت وساتلی (تاسي له بې زړه توب او نزاع څخه) ﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ بېشکه الله ښه عالم دی په هغو خبرو چي په زړونو کي دي پوهېږي په هغه څه چي احوال بدلوي له زړه ورتيا، بې زړه توبه، صبر او بې صبري څخه ﴿ وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ ٱلْتَقَيْتُمْ فِىٓ أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا وَيُقَلِّلُكُمْ فِىٓ أَعْيُنِهِمْ ﴾ او (ياد کړئ) کله چي وښودل تاسي ته (الله) هغه (ستاسي دښمنان) په هغه وخت کي چي سره مخامخ شوی په سترګو ستاسي کي لږ او لږ ښکاره کړی (الله) تاسي په سترګو د دوی (دښمنانو) کي. دغه ليدل په بيداري کي وو په خوب کي نه وو چي الله د مؤمنانو دښمنان د دوی په سترګو کي لږ وروليدل ترڅو د مسلمانانو جرأت او زړورتيا زياته شي او مؤمنان يې بيا د دښمنانو په سترګو کي لږ وروښتل ترڅو تياری ونيسي او ور باندي را وغورځي. ابن مسعود رضی الله عنه وايي: په تحقيق سره هغوی زموږ په سترګو کي دومره لږ راتلل چي د بدر په ورځ مايو چاته وويل: آيا ته فکر کوې سل تنه به وي؟(۱) او دغه د جنګ له تو د ېدلو او پيل کېدلو د مخه وو خو کله چي جګړه پيل شوه نو الله جل جلاله مسلمانان د کافرانو په سترګو کي زيات کړل او څيني وو ېرېدل د دوی شوکت مات شو او هغه څه يې وليدل چي ګمان يې هم نه کاوو او دغه دسترو الهي معجزاتو څخه پدې جګړه کي يوه معجزه وه ﴿ لِيَقْضِىَ ٱللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا ﴾ لپاره ددې چي وکړي الله هغه کار چي مقرر شوی وو) يعني الله هسي وکړل چي مؤمنان په کافرانو ور زړه ورشي او کافران په مؤمنانو ورزړه ورشي څو جګړه ونښلي او لښکري سره مخامخ شي بيا الله خپل لښکر ته بری ورکړ څو دالله کلمه لوړه شي د هغو کسانو چي کافران دي کلمه يې ښکته وي ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرْجَعُ ٱلْأُمُورُ ﴾ (او خاص الله ته بيرته ټول کارونه ګرزولی شي) يعني د ټولو کارونو مصير الله ته دی څرنګه چي غواړي

---

تاکل شوی وو او ورته څرګند شو ورباندي وپوهېدو، هغه چي موږ وليکل د جلالين غوره ده او دغه آيت يې هم ملاتړ کوي چي فرمايي ﴿ لِّيُنذِرَ مَن كَانَ حَيًّا وَيَحِقَّ ٱلْقَوْلُ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ يس: ۷۰

(۱) الطبري ۱۳/ ۵۷۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هغسي بې کوي هيڅوک دده حکم بدلولای نشي هغه دستر حکمت خاوند دی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمۡ فِئَةٗ فَٱثۡبُتُواْ ﴾ اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی ( اې مؤمنانو ) کله چې مخامخ شئ له کوم پوځ (د دښمن سره نو ثابت قدم اوسئ تاسي ) دغه دبريالیتوب لوري ته يوه لارښوونه او ارشاد دی چې کله له دښمن سره په جنګ کېوزئ نو مه ترې تښتئ ﴿ وَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرٗا لَّعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴾ ( او تاسي د ﷲ ډېر ياد وئ تر څو په مراد ورسېږئ ) يعني تاسو په خوله او زړه د ﷲ ذکر ډېر کوئ چې ﷲ جل جلاله درباندې د نصرت باران وکړي او په دښمنانو بريالي شئ ﴿ وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ ( او حکم ومنئ تاسي د ﷲ او د رسول د دغه ( ﷲ ) په ټولو اقوالو او افعالو ستاسي کي مخالفت يې مه کوئ ﴿ وَلَا تَنَٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ ﴾ او اختلاف مه کوئ په خپلو منځونو کي نو تاسي به بې زړه شئ له جنګ کولو له دښمنانو سره ﴿ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡۖ ﴾ او لاړبه شي باد د شوکت نصرت او قوت ) ستاسي ( او بې زړه توب او کهالي به درته راشي ﴿ وَٱصۡبِرُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ او صبر کوئ (د جنګ په سختيو او مشکلاتو ) بېشکه ﷲ له صابرانو سره دی ( په نصرت او معاونت ) ﴿ وَلَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ خَرَجُواْ مِن دِيَٰرِهِم بَطَرٗا وَرِئَآءَ ٱلنَّاسِ ﴾ ( او مه کېږئ ( اې مؤمنانو ! ) په شان د هغو کسانو چې راووتل له کورونو خپلو د پاره د فخر او ښودني خلکو ته (د دبدبه خپله ) يعني لکه د قريشو کفار غوندي مه کېږئ چې د بدر په ورځ په تکبر او غرور کي د داسي راووتل چې دوي پار( فخر) او ثناهيله يې لرله په آيت شريف کي د ابوجهل هغي وينا ته اشاره ده چې ويل يې: په ﷲ سوګند مونږ به نشو راستانه تر څو بدر ته ورشو او شراب پکي وڅښو او ښان حلال کړو سندرغاړي راته وناځي او سندري وبولي او ټول عرب زمونږ کيسې واوري نو به تل تر تله له مونږ څخه ېرېږي[1] طبري وايي چې: دوی په بدر کي د شراب د جامونو پر ځای د غمونو او د ربړونو جامونه پرسر واړول[2] او پر ځای د دې چې سندرغاړي ورته سندري وبولي د دوی غمجنو ښځو وربانديي په وير او ناوارين وژړل ﴿ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾ او اړوي دوی ( خلک ) له لاري د ﷲ تعالی څخه چې په اسلام کي داخل دلو ته يې نه پرېږدي ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا يَعۡمَلُونَ مُحِيطٞ ﴾ او ﷲ پر هغو کارونو چې کوی يې دوی چاپېردی (په علم او قدرت او ژر به وربانديي سزا ورکړي ﴿ وَإِذۡ زَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَعۡمَٰلَهُمۡ ﴾ ( او ( ياد کړئ ) هغه وخت چې ښايسته کړي وو دغو کفارو ته شيطان عملونه د دوی ) يعني د شرک او بتانو عبادت او همدا راز له رسول ﷲ سره جنګ کول يې ورته ښايسته کړي وو ﴿ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ ٱلۡيَوۡمَ مِنَ ٱلنَّاسِ ﴾ ( او ويې ويل چې: نشته هيڅ غالب پر تاسي نن ورځ له خلکو يعني له سره به محمد او ملګري يې دربانديي بری ونه مومي ﴿ وَإِنِّي جَارٞ لَّكُمۡۖ ﴾ او بېشکه زه ستاسي

---

[1] طبري په خپل روايت کي له ابن عباس رضی ﷲ عنه څخه راوړي چې کله ابوسفيان د قافلې په ژغورلو بريالی شو نو يې قريشو ته يو څوک استازی ولېږل چې بيرته ستانه شي ستاسو قافلې نجات پيدا کړ او تجارت موو ژغورل شو نو ابوجهل لعين بيا هغه وينا وکړه چې قسم دی مونږ به نشو راستانه تر څو بدر ته ورشو او شراب پکي وڅښو او ښان حلال کړو سندرغاړي راته وناځي او سندري وبولي او ټول عرب زمونږ کيسې واوري نو به تل تر تله له مونږ څخه ېرېږي.

[2] الطبري ٣ / ٥٧٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ساتونکی ( اومرستندوی ) یم ﴿ فَلَمَّا تَرَآءَتِ ٱلۡفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَىٰ عَقِبَيۡهِ ﴾ (نوکله چي سره ولیدل (مخامخ شول) دواړه فوځونه ( داسلام اوکفر) بیرته یې منډې کړې په پوندوخپلو ) یعني دشاپه لوریې منډې( هې)کړو ﴿ وَقَالَ إِنِّي بَرِيٓءٞ مِّنكُمۡ ﴾ ( اوویې ویل : بېشکه زه ستاسي( له ساتنې ) څخه بېزاریمه ) اودغه ددوی دښمنېدلو اورسوایې هغه وروستی مرحله ده ﴿ إِنِّيٓ أَرَىٰ مَا لَا تَرَوۡنَ ﴾ بېشکه زه وینم هغه چي تاسي یې نه وینئ) یعني زه دملائکوپوځ وینم چي دمؤمنانو دنصرت لپاره راکوزېږي اوتاسویې نه وینئ. په حدیث شریف کي راغلي چي: شیطان دعرفات تروروځي زیات یووخت هم سپک ، وړوکی په غصه اوشرمېدلی ندی شوی مګر دبدرپه ورځ کله چي یې (حضرت) جبریل علیه السلام ولید ملائکي اوپرښتې یې په کتارونو وېشلې[1] ﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَۚ وَٱللَّهُ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴾ (بېشکه زه له الله وېرېږم او سخت دی عقوبت دالله ) یعني زه وېرېږم له الله څخه چي عذاب یې ډېرسخت دی ؛ ماته به عذاب راکړي. ابن عباس رضی الله عنه وایي چي: دبدرپه ورځ ابلیس دشیطانانو په لښکرکي راغی اوله ده سره بیرغ وو څان یې د( سراقه بن مالک ) په شکل جوړکړی وو نوشیطان مشرکینوته وویل چي: نن هیڅوک پرتاسي بریالی کېدای نشي زه ستاسو ساتونکی یم کله چي خلګوصفونه برابرکړل اورسول الله صلی الله علیه وسلم یوموټی خاورې راواخیستې دمشرکانومخونوته یې وروشیندلې نودوی په شاوتمبېدل اوجبریل علیه السلام ابلیس ته مخامخ شو نوکله چي ابلیس لعین حضرت جبرائیل علیه السلام ولید -لاس یې دمشرکانویو سړی په لاس کي نیولی وو- نویې لاس خیني کښ کړ اوپه منډوشو هغه مشرک ورته وویل: سراقه چېري ځې ! تاویل: زموږساتندوی یې؟ نو ده ورته وویل: زه داسي څه وینم چي تاسویې نه وینئ زه له الله څخه وېرېږم دالله دښمن دروغ وویل بېشکه دی پوه شوچي دده نور ,وس اوتوان نشته څکه پرښتې یې ولیدلې[2] بیا الله فرمایي ﴿ إِذۡ يَقُولُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ یادکړئ ! هغه وخت چي منافقینو (دمدینې) اوهغوکسانوچي ددوی په زړونوکي مرض وو ویل یې یعني هغه منافقین چي ایمان یې ښکاره کاوو او کفریې پټاوه داعتقاددکمزورۍ له امله یې ویل: ﴿ غَرَّ هَٰٓؤُلَآءِ دِينُهُمۡ ﴾ چي مغروره کړي دي دغومؤمنانولره دین ددوی ) نویې خانونه پداسي کارکي وردننه کړل چي دبشپړولوتوان یې نلري. الله ددوی په ځواب کي فرمایي: ﴿ وَمَن يَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴾ (اوهرڅوک چي توکل وکړي په الله (نوغالبېږي څکه چي) بېشکه الله ښه غالب ښه حکمت والادی ) چي دچاساتنه کوي نوڅوک بیاهغه مغلوبولای نشي اوپخپلوکړو وړوکي دحکمت خاونددی ﴿ وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذۡ يَتَوَفَّى ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ اوکه ووینې ته (اې مخاطب او سامعه !) هغه وخت چي قبض دروح کوي دهغوکسانوچي کافران شوي دي پرښتې ) یعني که ددوی حال په بدر کي کله چي ملائک یې ارواحان قبضوي وګورې ! د ﴿ وَلَوۡ ﴾ ځواب حذف شوی دی اودحذف وجه یې هم هیبت دی یعني نوته به ووینې یو ډېرسخت حالت اودروندناورین. ابوحیان وایي چي: د( لو ) دځواب حذف جائزاوبلیغ دی څکه هغه په هولناک اوسترتوب دلالت کوي یعني داسي څه به دي لیدلي ووچي خورافظیع اوتعبیرخیني نشي کېدای ﴿ يَضۡرِبُونَ وُجُوهَهُمۡ وَأَدۡبَٰرَهُمۡ ﴾ پدې حال کي چي وهي به مخونه ددوی اوشاګانې

---

[1] رواه مالک فی الموطأ

[2] مختصر ابن کثیر ۲ / ۱۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ددوی ) يعني ملائکي به دوی په مخو اوشاګانو باندي داوسپني په ګروزانو ( مقامعو ) وهي ﴿ وَذُوقُواْ عَذَابَ ٱلۡحَرِيقِ ﴾ ( وايي به ورته ) وڅکئ ( داور ) سوځونکی عذاب ) يعني دوی ته به وايي اې فجارو دسوځونکي اورعذاب وڅکئ دغه ددوی لپاره دآخرت په عذاب باندي بشارت دی . چابياويلي چي له پرښتوسره به داورتازيني وي په هغوبه يې وهي اوپه زخمونوبه يې اوربلېږي (۱) ﴿ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتۡ أَيۡدِيكُمۡ ﴾ (دغه (تعذيب) په سبب د هغه (بد عمل ) دی چي وړاندي لېږلي دي لاسونو ستاسي ) له کفراوګناهونوڅخه ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيۡسَ بِظَلَّٰمٖ لِّلۡعَبِيدِ ﴾ او بېشکه الله نه دی هيڅ ظلم کونکی په بندګانوخپلو (ترڅويې بې ګناه په عذاب کړي ) د ﴿ بِظَلَّٰمٖ ﴾ صيغه دمبالغې لپاره نه ده بلکه دنسبت لپاره استعمالېږي يعني الله ظلم ته منسوب نه دی نوګواکي اصلاظلم له الله جل جلاله څخه نفی شوبنه پام وکړه ! ﴿ كَدَأۡبِ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ﴾ (لکه حال دتابعانودفرعون ( له موسی سره ) او(لکه حال ) دهغوکسانوچي وو پخواله دوی نه ) يعني ددغوکفارو کړه وړه اوعادت په ګناهونوکي لکه دفرعونيانواوهغوامتونوغوندي دی چي تردوی پخواوو لکه دنوح، عاد، ثمود قومونوچي عناد ، تکذيب اوکفريې غوره کړی وو ﴿ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ بِذُنُوبِهِمۡ ﴾ ( دوی دالله په آيتونو کافران شوی وو نونيولي وو دوی لره الله په ګناهونوددوی ) يعني دوی يې ددوی دکفراوتکذيب له امله هلاک کړل ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيّٞ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴾ ( بېشکه الله زورور دی ډېرسخت دی عذاب دده ) هيڅ غالب په دهٔ زورور کېدای نشي اوهيڅ له ده څخه خلاصېدای نشي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ لَمۡ يَكُ مُغَيِّرٗا نِّعۡمَةً أَنۡعَمَهَا عَلَىٰ قَوۡمٍ ﴾ دغه(تعذيب ) په سبب ددې دی چي په تحقيق الله نه دی بدلونکی د( هغه ) نعمت چي انعام يې په يوقوم باندي کړی دی (مګردګناهونوپه سبب يې بدلوي که نه الله پاک نعمت په عذاب نه بدلوي ) ﴿ حَتَّىٰ يُغَيِّرُواْ مَا بِأَنفُسِهِمۡ ﴾ (ترهغوپوري چي بدل کړي دوی هغه حال چي په نفسونوددوی کي دی ) يعني ترڅودوی دالله نعمت په کفر اوسرغړونه (عصيان ) بدل کړي لکه دقريشوکفارو چي دالله جل جلاله نعمت چي پراخه روزي ،ښېرازه ژوند،په امن اوسوکالي عافيت کي حال يې په کفر ، دمسلمانانوپه جګړه اودالله له لاري په راګرزولوبدل کړ ؛ السدي وايي دالله جل جلاله نعمت په قريشو باندي درسول الله صلی الله عليه وسلم وجودووخودوی ورباندي کافران اودهغه تکذيب يې وکړ نوالله جل جلاله هغه مديني منورې ته ځيني ولېږداوو اوپه مشرکانوباندي دالله جل جلاله عذاب راپرېوت(۲) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴾ اوبېشکه الله ښه اورېدونکی ( ددوی داقوالو ) اوښه پوه دی ، په هغه څه چي دوی يې کوي ﴿ كَدَأۡبِ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمۡ ﴾ (حال ددوی) لکه حال د تابعانو دفرعون دی ( اولکه حال ) دهغوکسانودی چي له دوی نه پخوا وودهغوعادت داچي ؛ نسبت ددروغو يې کړی ووپه آيتونودرب خپل ) تکراريی دزيات شناعت او توبيخ لپاره راوړی يعني ددوی حال لکه دپخوانيو دروغجن بلونکوغوندي دی چي خپل حال يې بدل کړالله خپل نعمت ورباندي بدل کړ ﴿ فَأَهۡلَكۡنَٰهُم بِذُنُوبِهِمۡ ﴾

---

(۱) بيضاوي ص: ۳۱۵

(۲) القرطبي ۸ / ۲۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



نوهلاک کړل موږ دوی په سبب د ګناهونو ددوی ځيني يې په زلزلو هلاک شول ، ځيني په خسف او تندر ، ځيني په کانو او مردکيو وويشتل شول او ځيني يې بيا په درياب کي غرق او ډوب شول څکه يې وفرمايل: ﴿ وَأَغۡرَقۡنَآ ءَالَ فِرۡعَوۡنَۚ ﴾ او ډوب کړل موږ تابعان د فرعون ( له ده سره سره ) ﴿ وَكُلٌّ كَانُواْ ظَٰلِمِينَ ﴾ او دوی ټول ظالمان وو (پخپلو ځانونو په کفر او ګناهونو کولو سره چي ځان يې د الله عذاب ته وتاړه ﴿ إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه بدتر د خوځېدونکو په نزد د الله ) يعني شر د ټولو تلونکو په ځمکه د الله په علم او حکم ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴾ ( هغه کسان دي چي کافران شويدي نو دوی ايمان نه راوړي ) يعني هغه کسان چي په کفر باندي ټينګار کوي او هغه يې په زړونو کي ټينګ شوی دی له دوی څخه د ايمان راوړلو تمه نشي کېدای؛ ابن عباس رضی الله عنه وايي : دغه آيت د بني قريظه د يهودو په هکله را نازل شوی چي هغه کعب ابن اشرف او د هغه ملګري وو له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره يې عهد وکړ چي جګړه به ورسره نه کوي خو وعده يې ماته کړه (۱) ﴿ ٱلَّذِينَ عَٰهَدتَّ مِنۡهُمۡ ﴾ هغه کسان چي معاهده تړلي وه تا له دوی سره (چي دوی به له مشرکانو سره مرسته نه کوي ) ﴿ ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهۡدَهُمۡ فِي كُلِّ مَرَّةٖ ﴾ (بيا ماتوي دوی عهد خپل په هر کرت کي ) يعني دوی هر ځلي خپله وعده ماتوي ﴿ وَهُمۡ لَا يَتَّقُونَ ﴾ او دوی نه وېرېږي ( له عهد ماتولو نه ) مفسرين وايي چي: رسول الله صلی الله عليه وسلم د نبي قريظه له يهودو سره داسي عهد کړی وو چي نه به ورسره جنګ کوي او نه به مشرکانو ته مرسته ورکوي خو دوی د بدر په ورځ هغه وعده ماته کړه او د مکې کفارو ته يې وسلې ورکړې بيا يې ويل : زموږ وعده هېره وه او خطا شو او بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم ورسره عهد وکړ خو بيا يې عهد مات کړ او د خندق د غزا په ورځ يې له کفارو سره مرسته وکړه (۲) ﴿ فَإِمَّا تَثۡقَفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡحَرۡبِ ﴾ نو که ته دوی ومومي ( اې محمده ! ) په جنګ کي ﴿ فَشَرِّدۡ بِهِم مَّنۡ خَلۡفَهُمۡ ﴾ پس تيت کړه او وېروه په سبب د تيتولو (سزا ورکولو ) د دوی هغه کسان چي له دوی وروسته دي ) يعني دوی ووژنه او داسي د عبرت سبق ورکړه چي د دوی په سبب نور کفار او مجرمين هم تيت او پرک شي ﴿ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُونَ ﴾ (لپاره د دې چي دغه وروستني خلک عبرت واخلي ) په هغه څه چي دوی وليدل يعني دوی د نورو لپاره عبرت وګرزوه چي د دوی سره ستا د جنګ کولو توان ببخي نه وي ﴿ وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوۡمٍ خِيَانَةٗ فَٱنۢبِذۡ إِلَيۡهِمۡ عَلَىٰ سَوَآءٍۚ ﴾ او که وېرېږې ! (اې محمده ! ) له کوم قوم څخه (چي وعده يې کړې ده له تا سره ) د خيانت نو وغورځوه دوی ته (دغه عهد ) په (داسي ) ډول چي شئ تاسي او هغوی سره برابر ) يعني اې محمد ! ) صلی الله عليه وسلم که چېري تا ته د دې معاهدينو د خيانت کومي نښې څرګندي شي نو دوی ته د دوی عهد په څرګنده وورو غورځوه . النحاس وايي چي : دا يوه داسي معجز قرآني بيان دی چي په بل کلام کي يې مثال نشته چي د هر کوتاه خو د زياتو معناګانو درلودونکی دی يعني که چېري تا ته د دغو کسانو چي له تا سره يې عهد کړی د خيانت نښې نښانې څرګندي شوې نو بيا د دوی عهد ور واچوه او ورته ووايه چي ما ستاسي عهد در وغورځاوه

(۱) زاد المسير ۳ / ۳۷۱
(۲) الفخر الرازي ۱۵ / ۱۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوزه اوس له تاسي سره جنګ کونکی یم ترڅودوی پدې وپوهېږي اوتاسي اودوی پدې پوهه کي سره برابرشئ اوله دوی سره جګړه مکوه پداسي حال کي چي ستاسوترمینځ عهدموجودوي اودوی پرتاباندي اعتماداوباور لري نودغه بیاغدر اوخیانت دی (۱) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلۡخَآئِنِينَ﴾ بېشکه الله نه خوښوي خیانت کونکی) دغه کلام لکه دعهدورغورځولولپاره چي علت بیان شوی وی یعني الله جل جلاله هغه څوک نه خوښوي چي په عهدوفانکوي. ﴿وَلَا يَحۡسَبَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ سَبَقُوٓاْ﴾ اوګمان دي نکوي هغه کسان چي کافران شوي دي چي دوی به وتښتي (له عذابه اوخلاص به شي) یعني هغه کسان چي کافران اودبدرپه ورځ له وژلوڅخه وژغورل شول داسي ګمان دي نه کوي چي ګواکي موږددوی دهلاکولواو وژلوتوان نلرو بلکه هغوی زموږپه واک کي اوزموږترحکم اوارادې لاندي دي ﴿إِنَّهُمۡ لَا يُعۡجِزُونَ﴾ بېشکه دوی له سره نشي مغلوبولای الله (له خپل تعذیب څخه) دغه کلام ته استیناف وایې یعني دوی خپل رب عاجزولای نشي اوهغه په هره شېبه کي له دوی څخه په کسات اخیستلو قادر دی دځمکي اوآسمان هیڅ اوسېدونکی هغه نشي مغلوبولای ﴿وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن قُوَّةٖ﴾ (او تیاروئ (اې مؤمنانو) لپاره دجنګ (ددښمنانو) څومره چي توانېږي (جمع کولای شئ) تاسي له قوت (اسباب د جنګ څخه) یعني دکفارودجنګ لپاره هرډول قوت هغه که مادي وي اوکه معنوي تیارکړئ. شهاب وایې چي: ددې لپاره یې دلته قوت ذکرکړڅکه چي په بدرکي په بشپړه توګه مؤمنان دتیارسئ په حال کي نه وو نوددې تنبیه ورکول شوه چي بریالیتوب پرته له استعدادڅخه هروخت په لاس نه راځي (۲) ﴿وَمِن رِّبَاطِ ٱلۡخَيۡلِ﴾ (اوله روزل شووساتل شوو آسونو) چي دالله په لارکي ترل کېږي ﴿تُرۡهِبُونَ بِهِۦ عَدُوَّ ٱللَّهِ وَعَدُوَّكُمۡ﴾ چي وېروئ تاسي په (دغه قوت اوتیاري) سره دالله اوستاسودښمنان ﴿وَءَاخَرِينَ مِن دُونِهِمۡ﴾ اونورکسان چي بې له دوی نه؛ ابن زیدوایې چي: دغه منافقان ښیې اومجاهدوایې چي: مراد له دې کسانوڅخه دبني قریظه یهودان دي خو لومړی قول دېرسم دی ﴿لَا تَعۡلَمُونَهُمُ ٱللَّهُ يَعۡلَمُهُمۡ﴾ (چي نه پېژنئ تاسي هغوی الله عالم دی په (عداوت) دهغوی) یعني تاسوته دهغوی دنفاق کچه معلومه نه ده الله ورباندي خبردی ﴿وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيۡءٖ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ (اوهرهغه څه چي لګوئ تاسي له یوه شي په لاره دالله کي) یعني په جهاداو نورودخیرښیګڼو په کارونوکي ﴿يُوَفَّ إِلَيۡكُمۡ﴾ پوره بدل به یې درکړل شي تاسي ته (په قیامت کي) ﴿وَأَنتُمۡ لَا تُظۡلَمُونَ﴾ حال داچي پرتاسي به ظلم نه ونه کړل شي یعني له دغه اجرڅخه به څه کم نشي.

### بلاغت:

۱- د ﴿مِن شَيۡءٖ﴾ په کلمه کي تنکېردتقلیل لپاره دی.

---

(۱) تفسیر القرطبي ۸/۳۲
(۲) محاسن التأویل ۸/۳۰۲۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۲ - په دې جمله کې چې فرمايي: ﴿ عَلَىٰ عَبۡدِنَا ﴾ رسول الله صلى الله عليه وسلم د عبوديت په لفظ ياد کړی او الله جل جلاله ته يې د تکريم او تشريف لپاره اضافت کړی دی.

۳ - ﴿ بِٱلۡعُدۡوَةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ دلته د ﴿ ٱلدُّنۡيَا ﴾ او ﴿ ٱلۡقُصۡوَىٰ ﴾ ترمينځ د طباق صنعت دی.

۴ - په دې کلام کې چې ﴿ لِّيَهۡلِكَ وَيَحۡيَىٰ ﴾ دلته هلاک او حيات له کفر او ايمان څخه استعاره شوی او همدارنګه د (يهلک) او (يحيا) ترمينځ د طباق صنعت شته.

۵ - ﴿ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡ ﴾ دلته ريح له شوکت څخه استعاره شوي او قوت ته وايي.

تنبيه:
الله جل جلاله مونږ ته له دښمنانو سره د جګړې لپاره د قوت د تيارولو امر فرمايلی دی او عام تعبير راغلی چې ﴿ مِّن قُوَّةٖ ﴾ ترڅو چې مادي، روحي او ټولو اسبابو د قوت ته شامل وي او ولې به نه وي دښمن خود اسلامي هيوادونو د لاندې کولو تکل لري او له مونږ سره نه د وسلو جوړولو فابريکې شته او نه هم حربي مهمات بلکه هرڅه له دښمن هيوادونو څخه لاس ته راوړو نو ارو مرو مونږ بايد که غواړو چې د عزت او کرامت ژوند خپل کړو اسلامي تعليماتو ته راوګرځو او د غه الهي فرمان په ځان عملي کړو.

الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلۡمِ فَٱجۡنَحۡ لَهَا وَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴿٦١﴾ وَإِن يُرِيدُوٓا۟ أَن يَخۡدَعُوكَ فَإِنَّ حَسۡبَكَ ٱللَّهُۚ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَيَّدَكَ بِنَصۡرِهِۦ وَبِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٦٢﴾ وَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِهِمۡۚ لَوۡ أَنفَقۡتَ مَا فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا مَّآ أَلَّفۡتَ بَيۡنَ قُلُوبِهِمۡ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ أَلَّفَ بَيۡنَهُمۡۚ إِنَّهُۥ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴿٦٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَسۡبُكَ ٱللَّهُ وَمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٦٤﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ عَلَى ٱلۡقِتَالِۚ إِن يَكُن مِّنكُمۡ عِشۡرُونَ صَٰبِرُونَ يَغۡلِبُوا۟ مِاْئَتَيۡنِۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ يَغۡلِبُوٓا۟ أَلۡفٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَفۡقَهُونَ ﴿٦٥﴾ ٱلۡـَٰٔنَ خَفَّفَ ٱللَّهُ عَنكُمۡ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمۡ ضَعۡفٗاۚ فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ صَابِرَةٞ يَغۡلِبُوا۟ مِاْئَتَيۡنِۚ وَإِن يَكُن مِّنكُمۡ أَلۡفٞ يَغۡلِبُوٓا۟ أَلۡفَيۡنِ بِإِذۡنِ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿٦٦﴾ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسۡرَىٰ حَتَّىٰ يُثۡخِنَ فِي ٱلۡأَرۡضِۚ تُرِيدُونَ عَرَضَ ٱلدُّنۡيَا وَٱللَّهُ يُرِيدُ ٱلۡأٓخِرَةَۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴿٦٧﴾ لَّوۡلَا كِتَٰبٞ مِّنَ ٱللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمۡ فِيمَآ أَخَذۡتُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٞ ﴿٦٨﴾ فَكُلُوا۟ مِمَّا غَنِمۡتُمۡ حَلَٰلٗا طَيِّبٗاۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٦٩﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّمَن فِيٓ أَيۡدِيكُم مِّنَ ٱلۡأَسۡرَىٰٓ إِن يَعۡلَمِ ٱللَّهُ فِي قُلُوبِكُمۡ خَيۡرٗا يُؤۡتِكُمۡ خَيۡرٗا مِّمَّآ أُخِذَ مِنكُمۡ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٧٠﴾ وَإِن يُرِيدُوا۟ خِيَانَتَكَ فَقَدۡ خَانُوا۟

Bawar.net



ٱللَّهَ مِن قَبْلُ فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٧١﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَوا۟ وَّنَصَرُوٓا۟ أُو۟لَٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَلَمْ يُهَاجِرُوا۟ مَا لَكُم مِّن وَلَٰيَتِهِم مِّن شَىْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا۟ ۚ وَإِنِ ٱسْتَنصَرُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ فَعَلَيْكُمُ ٱلنَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَٰقٌ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٧٢﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُن فِتْنَةٌ فِى ٱلْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ ﴿٧٣﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَوا۟ وَّنَصَرُوٓا۟ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٧٤﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنۢ بَعْدُ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ مَعَكُمْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مِنكُمْ ۚ وَأُو۟لُوا۟ ٱلْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِى كِتَٰبِ ٱللَّهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌۢ ﴿٧٥﴾ الأنفال: ٦١ ـ ٧٥

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دکفارو دښمنانودوېرولولپاره مسلمانانوته دوسلو اسبابواو قوت دتیارولو امر وفرمایونودلته یې دسولي اوسلامتیامارېینه وکړه چي دعزت اوکرامت تأمینونکي وي خکه جنګ جګړه دڅوندانه یوداسي ضرورت دی چي ددښمني ددفع کولولپاره یې غوښتنه کېږي ترڅو ادیان آزاد اوخمکه له ظلم اوطغیان څخه پاکه وي بیاآیتونه دبندیانواحکام راآخلي اوپه پای کي سورت دځینو مؤمنانوله نوروسره دمرستي خبره کوي څکه چي دمسلمانانوترمینځ بشپړ ولایت اودوستي شته همداراز دوی یوله بله ایماني ورورګلوي هم لري.

## لغتونه

(جنح) میلان ته وایي لکه راځي ( جنح الرجل الی فلان ) کله چي ورته میلان وکړي اوله دې وجهي (اضلاعو )پښتیوته ( جوانح) وایي ( السلم ) صلح اوسلم ته ویل کېږي زمخشري وایي : چي دغه دخپل ضدپه شکل چي ( حرب) دی مؤنث راځي (حرض) وهڅوه ! دهمت خوځولوته وایي لکه (تحضیض) (یثخن) ډېر ووژني واحدي وایي چي: (اثخان )دهرشي شدت اوقوت ته ویل کېږي اودلته مرادپه قتل اوپرهارونوکي مبالغه اوشدت دی.

## دنزول سبب

أ: - له عمررضی الله عنه څخه روایت دی چي هغه وایي کله چي الله جل جلاله مشرکان دبدرپه ورځ مات کړل اوياتنه یې مړه اویاتنه یې بندیان شول نورسول الله صلیٰ الله علیه وسلم له ابوبکر، عمراوعلي رضی الله عنهم سره مشوره وکړه ابوبکررضی الله عنه ورته وویل : اې دالله نبي ! دغه زامن اوقومي خلګ دي زمارایه داچي فدیې ورڅخه واخلې نوهغه فدیه به موږپه کافرانو برلاسي اوقوت به راپیدا کاندي اوښایي الله جل جلاله دوی ته هدایت وکړي اوزموږ به وزر اومټ شي نورسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : اې آبن الخطاب ته څه فکرکوې ؟ مااوویل: زمادي په الله لوړه وي زمابیاداسي رایه نه ده لکه دابوبکررضی الله عنه لېکن زمادارایه ده چي ماته واک راکړې دفلاني ( چي دده قریب وو ) سرغوڅ کړم اوعلي رضی الله عنه ته واک ورکړې چي دعقیل اورمېږ مات کړي حمزه ته واک ورکړې چي خپل ورور ووژني ترڅوالله جل جلاله ته وښیوچي زموږله مشرکانوسره هیڅ زړه سوی نشته دغه دکفرمشران اومخه ورکسان دي. خورسول الله صلی الله علیه وسلم هغه دحضرت ابوبکررضی الله عنه رایه ومنله زمارایه یې وانه وړېده له دوی څخه یې فدیه واخیستله کله چي سهارشو زه رسول الله صلی الله علیه

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وسلم ته ورغلم چي هغه او ابوبکرصدیق رضی الله عنه ناست وو ، ژړل یې. ماورته وویل: تاوملګری دي څه شی ژړوي ؟ که ماته ژړا راتله زه به هم وژاړم او که نه راتله بیا به ژړغوني شان کښېنم نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: په دې فدیه اخیستلو چې ستاملګرو مشوره راکړه ژاړم ددوی عذاب تردې ونې لا نژدې ماته وښوول شو ) اوونه رسول الله ته نژدې وه ) بیا دا آیت نازل شو: ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (١).

ب: - کله چې عباس رضی الله عنه دبدر په ورځ بندي شو، شل اوقیه زر ورسره وو له ده څخه هغه په فدیه کې ونه منل شو او د اسې ورته وویل شو چې ددوو ورېرونو فدیه دې هم دی ورکړي رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل چې: له عباس څخه دوه ګوني فدیه واخلئ نو اتیا اوقیه سره زرځني واخیستل شول. عباس رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل: نوزه دې دګرد عمرلپاره قریشوته اړکړم چې سوال به کوم. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: هغه سره زرچې له أم الفضل سره دې پرېښوول څه شول ؟) عباس ورته وویل: کوم سره زر؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته زیاته کړه: (هغه سره زرچې تاهغې ته ویل زه نه پوهېږم ماته به څه راپېښېږي که ماته کرمه پېښه راوشوه نودغه مال بیا ستا او ستادزوی لپاره دي ) عباس رضی الله عنه ورته وویل: چې اې وراره دغه چادرته وویل ! ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خواب کې ورته وویل: الله جل جلاله په دغه راز خبرکړم. نو عباس رضی الله عنه وویل: زه شاهدي وایم چې ته رښتیا وایې له نن څخه دمخه مې پدې علم او پوهه نه رسېده چې ته دالله استازی او رسول یې او نورو دوو ورېرونو ته یې هم داسلام دراوړلو امروکړ او مسلمانان شول چې ددوی دواړو په هکله دا آیت نازل شو: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ قُل لِّمَن فِىٓ أَيْدِيكُم مِّنَ ٱلْأَسْرَىٰٓ ﴾ دآیت تر پایه (٢)

## تفسیر:

﴿ وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلْمِ فَٱجْنَحْ لَهَا ﴾ او که میل وکړي کفار روغې ته نو ته هم میل وکړه دې (صلحې ) ته که پکې مصلحت وو ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ﴾ ( او په الله توکل وکړه ) یعني دخپل کار سپارښتنه الله ته وکړه ترڅو ستا مرستندوی شي ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ بېشکه چې دغه ( الله ) هم ښه اوریدونکی ( داقوالو ددوی ) او ښه پوهېدونکی ( په نیتونو ددوی دی ) ﴿ وَإِن يُرِيدُوٓا۟ أَن يَخْدَعُوكَ ﴾ او که دوی اراده لري چې تاته فریب درکړي ﴿ فَإِنَّ حَسْبَكَ ٱللَّهُ ﴾ نو بېشکه الله تاته کافي دی ، او بیا (پدې سوله سره چې خان تیاروي دجنګ لپاره ) ﴿ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِۦ وَبِٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ هم دی هغه ذات دی وروسته الله دخپل نعمت ورته یادونه کوي چې: چې قوت یې درکړ تاته په مرستې خپلې سره او ( ستاملایې وتړله ) په مؤمنانو سره. ابن عباس رضی الله عنه وایي دغه کسان انصار ښیي ﴿ وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ ﴾ ( او الفت (محبت ) یې واچاوو په مینځ د زړونو ددوی ( مؤمنانو کې ) یعني زړونه یې یو کړل چې پخوایې ترمینځ عداوت ، کینه او بغض وو خو بیا وروسته الله جل جلاله کینه په مینه اولیرې والی په نژدې توب وربدل کړ. قرطبي وایې چې: په عربو کې دغه دتألیف القلوب پېښه چې زړونه یې سره نژدې کړل په داسې حال کې چې هغوی خورازیات عصبیت او قوم پرستې پالې درسول الله صلی الله علیه

---

(١) زاد المسیر ٣ / ٣٨٠ دمسلم شریف روایت
(٢) القرطبي ٨ / ٤٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وسلم یوه معجزه وه څکه هلته داسي قوانین نافذ وو که چېري یو سړي بل په چپلاخه وواهونو قوم به یې جګړې ته تیارشو دوی ترتولوزیات دحمیت، ننګ او خپلوي دغیرت لپاره تیار او جوړول خو کله چي اسلام راغلی نو بیا الله جل جلاله یې زړونه په ایمان باندي سره کوشېر کړل آن تردې چې یو مسلمان بیاله خپل پلار او وروړ سره داسلام لپاره وجنګېدل (۱) ﴿لَوۡ أَنفَقۡتَ مَا فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا مَّآ أَلَّفۡتَ بَيۡنَ قُلُوبِهِمۡ﴾ که لګولی وای تا هرڅه چي په ځمکه کي دي ټول نو نه به دي شوا چولی الفت په مینځ دزړونو ددوی کي ﴿وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ أَلَّفَ بَيۡنَهُمۡۚ﴾ (ولېکن الله محبت، الفت واچاوو په مینځ (دزړونو) ددوی کي ) یعني الله جل جلاله په خپل رسېدلي حکمت سره ددوی ترمینځ یووالی اتفاق او وحدت راووست څکه هغه دزړونو مالک دی اړوي یې څرنګه چي یې خوښه شي. ﴿إِنَّهُۥ عَزِيزٌ حَكِيمٞ﴾ ببشکه چي دغه (الله) ښه غالب (پخپل کار) او ښه حکمت والا دی (هرکار په حکمت او مصلحت کوي) ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَسۡبُكَ ٱللَّهُ وَمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾ (اې نبي کافي او بس دی الله ستا او هغه چا لپاره چي متابعت ستا کوي له مؤمنانو څخه ) یعني اې نبي یوازي الله ستا او ستا داتباعو بس دی نو تاسو دالله سره بیا هیچا ته اړاو محتاج نه یاست. حسن بصري رحمه الله بیا وایې چي: معنا یې داده چي ستا لپاره الله او مؤمنان بس او کافي دي (۲) ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ عَلَى ٱلۡقِتَالِۚ﴾ اې نبي تېزکړه (او ترغیب ورکړه) مؤمنانو ته پرجنګ (دکفارو مشرکانو) ﴿إِن يَكُن مِّنكُمۡ عِشۡرُونَ صَٰبِرُونَ يَغۡلِبُواْ مِاْئَتَيۡنِۚ﴾ که وو له تاسي څیني شل تنه صابران (ثابت قدمان) نو غلبه دي وکړي پردوو سوو کافرانو باندي. ابوالسعود وایې چي دغه دالله جل جلاله رښتوني وعده ده چي دمؤمنانو هره ټولی په لس ګونو امثالو بری مومي (۳) معنا دا چي که له تاسو څخه شل تنه ټکړه صبرکونکي دجګړې په مشکلاتو له دښمن سره مخامخ شي نو په دوو سوو باندي دالله جل جلاله په مرسته او تائید غالب کېدونکي او بریالي کېږي. ﴿وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ يَغۡلِبُوٓاْ أَلۡفٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ او که وو له تاسي څخه سل تنه (صابران ثابت قدمان) نو غالب دي شي پرزرو تنو له هغو کسانو چي کافران شوي دي ﴿بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَفۡقَهُونَ﴾ (په سبب ددې چي ببشکه دوی (داسي) قوم دی چي نه پوهېږي ) باء توری دسببیت لپاره راغلی یعني په سبب ددې چي دوی جاهل قوم دی او دالله جل جلاله په حکمت نه پوهېږي او نه هم دبریالیتوب لاره او اسباب پېژني دوی په جګړه کولو کي دثواب نیت نلري او څکه نو مغلوب کېږي. ابن عباس رضی الله عنه وایې : دیو مسلمان ټینګار دلسو په وړاندي فرض وو اوکله چي ورباندي دروند او سخت شو بیا نو دیو سړي ټینګار او ثبات ددوو په وړاندي فرض شو. ﴿ٱلۡـَٰٔنَ خَفَّفَ ٱللَّهُ عَنكُمۡ﴾ اوس آسانتیا وکړه الله پرتاسي (او له سختي تېرشو) ﴿وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمۡ ضَعۡفٗاۚ﴾ او معلومه یې کړه چي ببشکه په تاسي کي ضعف

---

(۱) القرطبي ۸ / ۵۳

(۲) لومړی قول خو دا چي ستا او ستاد اتباعو لپاره الله کافي دی او زمخشري هم دا غوره کړی دی. ابن القیم دزاد المعاد په مقدمه کي هم دې سره ملاتړ بښودلی دی او قناعت ببښونکي دلائل یې ویلي دي دوهم قول هغه دي چي له مجاهد او حسن بصري څخه روایت شوی او سیوطي او محلي رحمهما الله په جلالین کي غوره کړی دی او لومړی قول أرجح دی.

(۳) تفسیر ابو السعود ۲ / ۲۴۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوکمزوري ده ( نوبې دجګړې په هکله پرتاسومهرباني وکړه ﴿ فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّاْئَةٞ صَابِرَةٞ يَغۡلِبُواْ مِاْئَتَيۡنِۚ ﴾ نوکه وو له تاسي څخه سل تنه صابران نوغالب دي شي پر دووسوو ( کافرانو ) ﴿ وَإِن يَكُن مِّنكُمۡ أَلۡفٞ يَغۡلِبُوٓاْ أَلۡفَيۡنِ ﴾ اوکه وو له تاسي څني زرتنه صابران غالب دي شي پر دوو زرو(دښمنانوکفارو) ﴿ بِإِذۡنِ ٱللَّهِۗ ﴾ په حکم دالله سره ( اوآسانتیادهغه )﴿ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ اوالله ملګری دی له صابرانوسره (په نصرت او حفاظت کولو ) پدې کي دصبراو ثبات په هکله ترغیب اوپه نصرت باندي تبشیر دی چي دالله جل جلاله حفظ رعایت اومرسته به ورسره وي اوله چاسره چي داوي هغه به ارو مرو بریالی اوکامیاب وي ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسۡرَىٰ حَتَّىٰ يُثۡخِنَ فِي ٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ نه ښايي نبي لره داچي وي ده لره بندیان ( چي فدیه تري واخلي ) ترهغه وخته چي قوي شي په ځمکه کي ( دکفارودډېرقتل اوجرحي په وجه ) پدې کي رسول الله صلی الله علیه وسلم اودهغه اصحاب کرامورضوان الله علیهم ته چي دفدیې اخیستلوبې رایه ورکړه دعتاب څرګک دی(۱)﴿ تُرِيدُونَ عَرَضَ ٱلدُّنۡيَا ﴾ اراده کوئ تاسي ( اې مؤمنانو ) اسباب ددنیا( دفدیې په اخیستلوسره) هغه دنیااومتاع چي فاني کېدونکي دي﴿ وَٱللَّهُ يُرِيدُ ٱلۡأٓخِرَةَۗ ﴾ اوالله اراده لري (تاسي ته ثواب) دآخرت د کفاروپه وژلواوددین په قوت سره﴿ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴾ اوالله ښه غالب (پخپله پاچهي کي دی ) ښه حکمت والادی چي هرکارپه تدبیراودبندګانو دمصلحت لپاره کوي﴿ لَّوۡلَا كِتَٰبٞ مِّنَ ٱللَّهِ سَبَقَ ﴾ که نه وای ازلي کتاب له جانبه دالله چي رومبی لیکل شوی دی ( په ازل کي هغه داچي داجتهادي خطآء وبال نشته )(۲)﴿ لَمَسَّكُمۡ فِيمَآ أَخَذۡتُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٞ ﴾ نوخامخارسېدلی به وو تاسي ته( په عوض د ) اخیستلودفدیې کي سترعذاب ) او روایت کېږي کله چي دغه آیت نازل شونوعلیه السلام وفرمایل: که چېري عذاب نازل شوی وای نوپرته له عمررضی الله عنه نه به هیڅوک هم نه وو ژغورل شوی(۳)﴿ فَكُلُواْ مِمَّا غَنِمۡتُمۡ حَلَٰلٗا طَيِّبٗاۚ ﴾ نوخورئ تاسي له هغه ماله چي غنیمت اخیستی دی تاسي حلال پاکیزه ) یعني اې مجاهدینو خورئ هغه مال چي له دښمن څخه موپه جګړه کي په غنیمت لاس ته راوړی پداسي حال کي چي ستاسولپاره پاکیزه حلال دی﴿ طَيِّبٗا ﴾ یعني ستاسوله پاکیزه کسب څخه محصول دی چي هغه مقدس جهاد دی اوپه حدیث شریف کي راځي: ( وجعل رزقي تحت ظل رمحي ) ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ ﴾ اووووېرېږئ له الله (په مخالفت دامراونهی دده کي ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشکه الله ښه ښښونکی ( دتوبه ګارانو ) اوښه مهربان دی( چي ددوی لپاره یې غنیمتونه حلال ګرزولي دي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّمَن فِيٓ أَيۡدِيكُم مِّنَ ٱلۡأَسۡرَىٰٓ ﴾

---

(۱) وګوره دنزول سبب یې.
(۲) دغه خبره امام رازي غوره کړې ده اونورو اقوالوکمزوري ښودلي ده چي همداخبره دابن عباس یوقول هم دی وګوره تفسیرالرازي ۲۰۲/۱۵
(۳) دفدیې موضوع تفسیرکبیر.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



( اې نبي ووايه هغه چاته چې ستاسو په لاسونو کې بنديان دي ) مرادو رڅخه دبدر بنديان دي ﴿ إِن يَعۡلَمِ ٱللَّهُ فِي قُلُوبِكُمۡ خَيۡرٗا ﴾ که معلوم کړي الله په زړونو ستاسوي کې کوم خير دايمان او اخلاص ) ﴿ يُؤۡتِكُمۡ خَيۡرٗا مِّمَّآ أُخِذَ مِنكُمۡ ﴾ نو دربه کړي تاسي ته غوره او بهتر له هغه ( مال ) څخه چې اخيستى شوى دى له تاسي نه ( په فديه کې ) ﴿ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ ﴾ اومغفرت به وکړي تاسي ته ( دپخوانيو ګناهونو ) ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ ( او الله ښه بښونکى ډېرمهربان دى ) يعني مغفرت يې پراخ او دهغه چالپاره چې توبه کاږي رحمت يې ستردى. بيضاوي وايي : دغه آيت دحضرت عباس په هکله نازل شويدى کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل : چې دخان اودوه تنه وررونو فديه دي اداکړي هغه عقيل او نوفل نومېدل نو عباس رضى الله عنه وويل : اې محمده ! زه دي خوږونډى يم دقريشوسوال ته اړ ايستلم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل: هغه سره زر دي چې أم الفضل ته ورکړل څه شول ؟ کله چې بهر راوتلې ورته ويل دي زه نه پوهېږم ماته پدې لورې څه راپېښېږي ؟ که ماته کوم پېښه راوشوه دغه مال مې ستا او ستادعيال لپاره درکړى دى نو عباس ورته وويل : ته څه خبريې پيغمبر ورته وويل : ماته الله تعالى خبر راکړنو عباس وويل : زه ګواهي اداکوم چې ته صادق پيغمبريې ( لااله الا الله وانک لرسوله ) زمادې په الله جل جلاله سوګندوي چې پدې باندې هيڅوک هم خبر نه وو اودتورې شپې په تاريکه کې مې نوموړى مال هغې ( أم الفضل ) ته ورکړ عباس وايي چې الله تر هغه غوره او بهترمال راکړچې: هغه زمزم دى زه نه غواړم چې دټولي مکې په مالونو يې وپلورم اوزه له الله څخه مغفرت اوبښنې ته سترګي په لاريم يعني هغه چې الله يې ژمنه ( وعده ) کړي ده فرمايي : ﴿ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ ﴾ يعني اومغفرت به وکړي تاسي ته [1] ﴿ وَإِن يُرِيدُواْ خِيَانَتَكَ ﴾ اوکه اراده وکړي دغه بنديان دخيانت ستاسي (په ظاهري اسلام راوړلو اودعوى کولو ) سره ﴿ فَقَدۡ خَانُواْ ٱللَّهَ مِن قَبۡلُ ﴾ نو په تحقيق خيانت کړى وو دوى له الله سره پخوا له دې نه چې دبدرغزاده ﴿ فَأَمۡكَنَ مِنۡهُمۡۗ ﴾ نو قادر کړې ( الله ته ) پردوى باندې ) يعني الله تا ته پردوى نصرت درکړ ته يې قوي وګرزولې ددوى په اورمېږونو واکمن شوې نو که بيا هم دوى خيانت ته راوګرزي ژرده چې دغه رنګه به دې الله بيا وربانديې قادر او زورورکړي ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ ( او الله ښه عالم پوه ښه حکمت والادى ) يعني الله په ټولو جريانونو عالم او داسي فيصله کوي څرنګه چې يې درسېدلي حکمت غوښتنه وي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړى دى ( په الله اورسول باندې ) او هجرت يې کړى ( خپل کلى اووطن يې دالله او دالله درسول په مينه پرې اينبى دى ) اوجهاديې کړى دى په مالونو خپلو اونفسونو خپلو سره دالله په لارکې ( ترڅو دين قوي شي اودامهاجرين دي ) ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ ﴾ ( او هغه کسان چې ځاى يې ورکړى دى ( دې مهاجرينو ته ) اومدد ګاري يې کړي ده ( له دوى سره ) يعني هغه کسان چې مهاجرينو ته يې پخپل تاتوبي کې پناه ورکړي اودرسول الله صلى الله عليه وسلم يې مرسته کړي ده چې انصاردي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ ﴾ دغه کسان ځيني ددوى دوستان دي دځينو نورو ( په نصرت اوارث ) کې نو څکه رسول الله صلى الله

[1] تفسير البيضاوي ١/ ٣٦٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عليه وسلم ددوی ترمينځ دمواخاة تړون وتاړه چي هر مهاجر بې له يوبل انصاري سره ورور ونوماوو ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يُهَاجِرُواْ ﴾ ( اوهغه کسان چي ايمان بې راوړی دی اوهجرت بې ندی کړی ) مدينې ته اوپه مکه کي پاتي دي ﴿ مَا لَكُم مِّن وَلَٰيَتِهِم مِّن شَيۡءٍ ﴾ ( نشته تاسي ته له ولايت ( نصرت او ارث ) د دوی خيني هيڅ شی ) ترڅو دوی هم دکفر له هيواده هجرت وکړي ﴿ وَإِنِ ٱسۡتَنصَرُوكُمۡ فِي ٱلدِّينِ فَعَلَيۡكُمُ ٱلنَّصۡرُ ﴾ اوکه چېري طلب دنصرت وکړي دغه ( غيرمهاجر مسلمانان دکفارو په جنګ کي ) له تاسي څخه په دين کي نولازمه ده په تاسي مرسته کول ( له دوی سره په دين کي دوی ستاسي ورونه دي ) ﴿ إِلَّا عَلَىٰ قَوۡمِۭ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُم مِّيثَٰقٌ ﴾ مګر ( لازم نه دی ستاسي نصرت او ورتګ پرهغه قوم باندي چي په مينځ ستاسي اومينځ ددوی کي معاهده وي ( نوبيابې مرسته مکوئ ) ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ ( اوالله په هغه کار چي تاسي بې کوئ ښه ليدونکی دی ) نودهغه له امرڅخه مخالفت مکوئ...... الله جل جلاله مؤمنان يادکړل اوپه دريو ډلوبې ووېشل ؛ مهاجرين ، انصار اوهغه کسان چي هجرت بې ندی کړی نولومړی بې دمهاجرينو په هکله چي هغوی داسلام دبنسټ حيثيت لاره وفرمايل: څکه دوی خپل هيواد اوديار دالله جل جلاله دخوښي ترلاسه کولو لپاره ترشا پرې ايښی دی اوبيابې دانصارو ستاينه وکړه چي هغوی له الله اورسول سره مرسته کړي اوپخپل نفس اومال بې جهاد کړی دی نو بې دمهاجرينو او انصاروترمينځ ولايت اونصرت وفرمايل بيابې دهغو مسلمانانو حکم چي هجرت بې نه وي کړی بيان کړچي دوی له ولايت څخه محروم اوبې برخي دي ترڅوچي داسلام په لارکي هجرت وکړي او وروسته له دغو درې ګونو يادونو بې دکفارو حال داسي بيان کړ ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍۚ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شويدي خيني ددوی دوستان دي دخينونورو ، دوی يوملت دي ﴿ إِلَّا تَفۡعَلُوهُ ﴾ که ونکړئ ( تاسي دغه مأموربه چي له مؤمنانوسره موالات اوله کفارو سره مقاطعه ده ) ﴿ تَكُن فِتۡنَةٞ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَفَسَادٞ كَبِيرٞ ﴾ نوپيدابه شي (لويه ) فتنه په مځکه کي او(خپوربه شي ) فسادلوی ) څکه پدې باندي کفار قوت مومي او مسلمانان کمزوري کېږي بيابيوځل په مهاجرينواو انصارو باندي دثنااوستايني پېرزوينه کوي فرمايي: ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان بې راوړی دی اوهجرت بې کړی او جهاد بې کړی دی په لاره د الله کي ( چي هغوی ړومبني مسلمانان دي ) ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ ﴾ اوهغه کسان چي ځای بې ورکړی دی (مهاجرينوته ) اومرسته بې کړي ده له دوی سره ( چي دغه انصار دايثارخاوندان دي ) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ ﴾ دغه يادشوي کسان هم دوی په حقه مؤمنان دي يعني دوی په بشپړه توګه مؤمنان او داحسان مراتب پکې دي ﴿ لَّهُم مَّغۡفِرَةٞ وَرِزۡقٞ كَرِيمٞ ﴾ دوی لره دی مغفرت اوروزي نېکه دعزت ( په جنت کي ) مفسرين کرام وايي: پدې آيتونوکي تکرارنشته څکه په ړومبنيو دسرآيتونوکي دمؤمنانو ترمينځ دنصرت او ولايت ماربينه وه اوپدې کي ستاينه اوثناده چي ددوی مغفرت اودهستوګني وروستني ځای به جنت اودهغه د عزت نعمتونه اوروزي وي. ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنۢ بَعۡدُ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ مَعَكُمۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ مِنكُمۡۚ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان بې راوړ او وروسته ( له دغه لومړني هجرته ) اوهجرت بې وکړ اوجهادبې وکړه په ملګرتياستاسي نودغه ( ستايل شوی پدې صفاتو ) له

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تاسي څخه دي ,يعني ددوی ثواب اواجرلکه دپخوانيو مؤمنانو غوندي دی ﴿ وَأُوْلُواْ ٱلْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ اوخاوندان دخپلوي څيني ددوی غوره دي ( په ميراث ورلو سره ) په څينو نورو باندي په حکم دالله کي اودشريعت په امر علمای کرام وايي: چي دغه آيت دهغه ميراث ناسخ دی کوم چي دوی ميراث په حلف (لوړه) اوورورګلوي بللو وور ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمُۢ ﴾ اوبېشکه الله په هرشي باندي ښه عالم دی يعني علم يې په ټولوشيانو احاطه کړي اوهرڅه چي الله شريعت تاکلی هغه حکمت اوصواب دی ( لمن کان له قلب اوالقى السمع وهوشهيد ) اودغه دسورت پای او په خوراښه براعت سره راغلی دی.

**بلاغت:**

۱- ﴿ وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا مَّآ أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ ﴾ دغه اسلوبوته اطناب وايي اوفائده يې داچي مؤمنانواورسول الله صلى الله عليه وسلم ته دسترو نعمتونواواحسانونوورپه يادول کوي

۲- ﴿ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَٰبِرُونَ يَغْلِبُواْ مِاْئَتَيْنِ ﴾ په البحر المحيط کي وايي چي: ددغه سپېڅلي کلام فصاحت ته وګوره چي په لومړنی شرطيه کي يې دصبرقيدوفرمايو اوپه دوهمه کي يې حذف کړ اوپه دوهمه کي يې داوفرمايل چي دوی به کفاروي اوپه لومړی شرطيه کي يې حذف کړل اوڅرنګه چي صبرته زياته اړتياوه په دواړود تخفيف جملوکي يې راوور اوبيايې آيتونه پدي کلماتوپای ته ورسول چي: ﴿ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ دصبرپه مطلوب والي باندي ترخونوره مبالغه وشي اودغه ول ته دبديع په علم کي د( احتباک ) صنعت وايي. الله جل جلاله ته پاکي اوثناده چي څرنګه يې تنزيل په خوږ کامل فصاحت اوښيرازه بشپړ بلاغت راوړی دی.

دالله په حمد اوثنا دالانفال سورت تفسيربشپړشو.

* * *

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



# (۹) دالتوبة سورت مدني او يوسل نه ويشت آيتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دغه سورت كريمه چي له مدني سورتونوڅخه دی دتشريع لوري ته پاملرنه کوي اوله هغو وروستنيو سورتونوڅخه دی چي په رسول الله صلی الله عليه وسلم رانازل شوی دی. امام بخاري له براء بن عاذب څخه روايت راوړی چي وروستنی سورت چي په رسول الله صلی الله عليه وسلم نازل شوهغه دبرائت سورت وو(۱) حافظ ابن کثير روايت کوي چي ددغه سورت لومړنی برخه هغه وخت په رسول الله صلی الله عليه وسلم رانازل شوه کله چي دتبوک له غزاڅخه راستون شو اوحضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه يې په دې کال دحج اميروټاکل ترڅوخلګوته مناسک وروښيي کله چي هغه ولاړ ورپسي يې حضرت علي کرم الله وجهه واستاوه چي درسول الله صلی الله عليه وسلم له لوري داحکامو مبلغ وي(۲) دغه سورت دهجرت په نهم کال نازل شوکوم چي پدغه کال کي رسول الله صلی الله عليه وسلم دروم غزاته ووت اودنبوي غزواتو په لړکي دغي غزاته دتبوک نوم ورکول شوی دی چي سخته ګرمي اوخوراوږد سفر وو هغه مهال مېوې پخې شوې وې اوخلګو دژوند انه نعمتونوته ځان چمتو کړی وو نو دغه دمؤمنانو يو ايماني ازموينښت اوابتلآء وه چي ددوی رښتنولي اواخلاص يې دالله ددين په لارکي ازمويل اوترڅو چي پخپله دوی اومنافقين سره بېل شي.

ددغه سورت دوه اساسي هدفونه وو چي له نوروا حکاموسره يوځای يې درلودل .

لومړی: دمشرکينو اواهل کتابوسره دمعاملې په هکله اسلامي قانون.

دوهم : کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی دروم غزاته راوبلل دهغه څه ځرګندول چي نفسونوغوښتل.

● هغه چي دلومړي هدف اوموخي نسبت وو نوسورت دمشرکينو دوعدو اوعهدونو لپاره يوحدوټاکل اومشرکان يې دبيت الله له حج کولو څخه منع کړل ددوی اومسلمانانو ترمينځ يې ولايت وشکول اوغوڅ يې کړاود اهل کتابولپاره يې په عربي جزيره کي دپرېښودلولپاره تادوکښېښوداوله دوی سره راکړه ورکړه (تعامل) يې روا وګڼل ځرنګه چي دنبي عليه السلام اومشرکانو ترمينځ ټينګ عهدونه اومواثيق موجود وولکه چي درسول الله اواهل کتابو ترمينځ هم وو لېکن مشرکانو عهدونه مات کړل اوله يهودانوسره يوځای يې دمسلمانانودجنګ لپاره دوکې اوبهانې ولټولې اوديهودانودغه ټولګيولکه (بني النضير) (بني قريظه ) او( بني قينقاع) ټولو درسول الله دوعدو خيانت څوځله وکړ نودحکمت غوښتنه دانه وه چي نوردي هم مسلمانان په خپلو وعدو ټينګ ولاړ اودښمنان دي وعده ماته کړي نودغه سورت نازل شو چي هغه وعدې ماتي وښيي اوپه ډانګ پېيلي دوی ته ځرګند کړي چي وعدې نوري دچلندوړ نه دي ځکه وعده ماتوونکي له خيانت څخه لاس نه آخلي هروخت چي يې لاس برشي اووخت وموومي په وعده نه درېږي ځکه نوالله تعالی هغه پيوندونه چي دمسلمانانو اومشرکانو ترمينځ وو پرې کړي اعلان کړل چي نه وعده شته اونه عهد نه سوله شته اونه امان او دا وروسته له دې چي دوی ته يې دڅلور مياشتو مودې پوره فرصت ورکړ چي په امن اوبېغمي په ځمکه کي سياحت وکړي اودخپلو چاروپه هکله سوچ اوفکر وکړي بياهغه څه غوره کړي چي ددوی پکي مصلحت وي اوپدې باب دسورت پيل آيتونه نازل شوي چي فرمايي: ﴿بَرَآءَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ إِلَى ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾ ترپايه.

---

(۱) البخاري ۸ / ۲۳۷
(۲) مختصر ابن کثير

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



* وروسته بيا آيتونو دهغه چاپه باب چي اهل کتاب دي او عهدونه يې مات کړي د جګړې کولو امر کوي چي: ﴿ قَٰتِلُوا۟ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ﴾ د دوی له ناولی اعمالو څخه نژدې شل آيتونه پرده پورته کوي او د دوی ( اهل کتابو ) هغه پليتي او فريبونه او د اسلام او مسلمانانو په باره کي حقد او کينه يې بربنډوي.

* د سورت دوهم هدف هغه چي د مسلمانانو نفسيات څېړي کله چي دوی رسول الله صلی الله عليه وسلم د روميانو غزاته رابولي او آيتونه دلته د سست عزمو ، متخلفينو او تکاسل کونکو څخه خبري کوي لکه چي د منافقينو له فتنو څخه برغولی (سرپوښ) اخلي هغه چي تل ترتله اسلام او مسلمانانو ته خطر پېښوي د دوی د نفاق چل اوول رسواکوي هغه چي دوی د مسلمانانو سپکاوی او تذليل کاوو د مسلمانانو دراز پردې يې پورته کولي کافرانو ته يې د مؤمنانو پټ پلانونه وربښودل او بيا له دغه لوڅولو او رسواکولو وروسته د مسلمانانو لاس نژدې وو چي پردوی پورته شوی وای د هر د سورت آيتونه هم له دوی څخه غږېږي چي د الله تعالی له دې قول څخه پيل کېږي: ﴿ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّٱتَّبَعُوكَ ﴾ تر دې قول د الله تعالی چي فرمايي: ﴿ لَا يَزَالُ بُنْيَٰنُهُمُ ٱلَّذِى بَنَوْا۟ رِيبَةً فِى قُلُوبِهِمْ إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ (١) څکه نو ځينو اصحابانو رضی الله عنهم دغه سورت ته رسواکونکی ( الفضاحة ) نوم ورکړيدی پدې چي د منافقينو رازونه يې راسپړلي او دوی يې رسواکړي دي سعيد بن جبير رضی الله عنه وايي: ما د برائت د سورت په هکله له ابن عباس رضی الله عنه څخه وپوښتل هغه راته وويل دغه ( سورة الفضاحة ) ده تل چي تر څو را نازلېدو نو به يې څرګندول چي ځيني د دوی ، ځيني د دوی آن تر دې چي موږ وويرېدو له دوی څخه به هيڅوک هم نه پرېږدي (٢)

له حذيفه بن يمان څخه روايت دی چي ويل يې: تاسو خوبې سورت بولئ مګر دغه سورت عذاب دی په الله قسم چي هيڅ يو منافق يې پرې ايښی نه دی مګر چي حال يې څرګند کړی دی (٣) او هم دغه راز (سر) دی چي پيل کي يې ﴿ بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ نده ليکل شوي څکه چي ﴿ بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ امان او سلامتيا ده او سورة برائت په توره نازل شوی امان پکي نشته. سفيان بن عيينه وايي چي ددې لپاره ( بسم الله ) يې په سرکښي ندی ليکل شوي څکه چي تسميه رحمت او رحمت امان دی او دغه سورت د منافقينو په هکله او په توره ( سيف ) نازل شوی او د دغو منافقينو لپاره امان نشته (٤)

* لنده دا چي پدې سورت کي يو پنځم په مخفي توګه نتوتلی ټولګی هغه چي د مسلمانانو په ليکو کي يې د ځان لپاره ځای پرانستلی په ګوته کېږي چي منافقين دي او د دوی زيان او خطر تر مشرکانو لا هم زيات وو نو د دوی يې رسوا او اسرار يې رابرسېره کړل او همداسي پرله پسې يې په سکروټو وويشتل تر څو چي هيڅ هستوګنځی يې پاتي نشو او د دوی پخپلو دو کو چي د اسلام او مسلمانانو لپاره يې په کارولې له مساجدو څخه هم کار واخيست او هلته يې د فساد ځالي جوړي کړې تر څو د مسلمانانو په مينځ کي فتنې خپرې کړي او د مسجد په نامه يې يو مرکز پرانست چي هغه په مسجد ضرار سره وپېژندل شو او په همدې سورت کي د دغه مسجد په هکله څلور آيتونه نازل

---

(١) الآيات من ٤٢ – الی ١١٠ او داسي معلومېږي چي د ټول سورت فضا د نفاق او منافقينو ګرد او غبار اخيستي ده.
(٢) القرطبي ٨ / ٦١
(٣) الکشاف ٢ / ٢٤١
(٤) القرطبي ٨ / ٦٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شول چي: ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مَسۡجِدٗا ضِرَارٗا وَكُفۡرٗا وَتَفۡرِيقَۢا بَيۡنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَإِرۡصَادٗا لِّمَنۡ حَارَبَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ مِن قَبۡلُۚ وَلَيَحۡلِفُنَّ إِنۡ أَرَدۡنَآ إِلَّا ٱلۡحُسۡنَىٰۖ وَٱللَّهُ يَشۡهَدُ إِنَّهُمۡ لَكَٰذِبُونَ ﴾ دآيتونو ترپايه.

هو الهي وحی درانازلېدلو په حال کي وه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابانو رضوان الله علیهم ته وویل: (ولاړشئ دغه دظالمانو مسجد ونړوئ اوهغه وسوځوئ) نوبې هغه ونړول او اسلام اومسلمانان بې له شرڅخه وژغورل شول اوددوی پليتي اودوکې له مينځه لاړې اوترقيامته پوري بې رسوايي اوړده شوه.

## تسميه اونومول يې:

دغه سورت په مختلفو نومونو نومول شوی چي ځيني مفسرينو خوددغه سورت پنځلس نومونه ښودلي دي علامه زمخشري وايي چي ددغه سورت څونومونه دي (برائت، التوبة ، المقشقشة ، المبعثرة ، المشردة ، المخزية ، الفاضحة ، المثيرة ، الحافرة ، المنكلة ، المدمدمة اوسورت العذاب يې هم بولي دتسميې وجه يې داده چي توبه ددې لپاره چي دمؤمنانو توبه پکې وه اوتقشقش له نفاق څخه بېزاري ته وايي اومبعثره داچي دمنافقانو اسرار خوروي اوحافره يې پدې بولي چي ددوی رازونه کيندي اوددوی رسواکوي مشرده داچي دوی شړي اومخزيه يعني سپکوي يې فاضحه رسواکوي يې اومثيره يعني پارونکی نکال عبرتناک عذاب ته وايي اودمدمة هم دعذاب په معناده[۱]

## الله تعالی فرمايي:

﴿ بَرَآءَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ إِلَى ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ۝١ فَسِيحُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَرۡبَعَةَ أَشۡهُرٖ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّكُمۡ غَيۡرُ مُعۡجِزِي ٱللَّهِ وَأَنَّ ٱللَّهَ مُخۡزِي ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝٢ وَأَذَٰنٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ إِلَى ٱلنَّاسِ يَوۡمَ ٱلۡحَجِّ ٱلۡأَكۡبَرِ أَنَّ ٱللَّهَ بَرِيٓءٞ مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ وَرَسُولُهُۥۚ فَإِن تُبۡتُمۡ فَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ وَإِن تَوَلَّيۡتُمۡ فَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّكُمۡ غَيۡرُ مُعۡجِزِي ٱللَّهِۗ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝٣ إِلَّا ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ثُمَّ لَمۡ يَنقُصُوكُمۡ شَيۡـٔٗا وَلَمۡ يُظَٰهِرُواْ عَلَيۡكُمۡ أَحَدٗا فَأَتِمُّوٓاْ إِلَيۡهِمۡ عَهۡدَهُمۡ إِلَىٰ مُدَّتِهِمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُتَّقِينَ ۝٤ فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلۡأَشۡهُرُ ٱلۡحُرُمُ فَٱقۡتُلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ حَيۡثُ وَجَدتُّمُوهُمۡ وَخُذُوهُمۡ وَٱحۡصُرُوهُمۡ وَٱقۡعُدُواْ لَهُمۡ كُلَّ مَرۡصَدٖۚ فَإِن تَابُواْ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ فَخَلُّواْ سَبِيلَهُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ۝٥ وَإِنۡ أَحَدٞ مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ٱسۡتَجَارَكَ فَأَجِرۡهُ حَتَّىٰ يَسۡمَعَ كَلَٰمَ ٱللَّهِ ثُمَّ أَبۡلِغۡهُ مَأۡمَنَهُۥۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَعۡلَمُونَ ۝٦ كَيۡفَ يَكُونُ لِلۡمُشۡرِكِينَ عَهۡدٌ عِندَ ٱللَّهِ وَعِندَ رَسُولِهِۦٓ إِلَّا ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّمۡ عِندَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِۖ فَمَا ٱسۡتَقَٰمُواْ لَكُمۡ فَٱسۡتَقِيمُواْ لَهُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُتَّقِينَ ۝٧ كَيۡفَ وَإِن يَظۡهَرُواْ عَلَيۡكُمۡ لَا يَرۡقُبُواْ فِيكُمۡ إِلّٗا وَلَا ذِمَّةٗۚ يُرۡضُونَكُم بِأَفۡوَٰهِهِمۡ وَتَأۡبَىٰ قُلُوبُهُمۡ وَأَكۡثَرُهُمۡ فَٰسِقُونَ ۝٨ ٱشۡتَرَوۡاْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ثَمَنٗا قَلِيلٗا فَصَدُّواْ عَن سَبِيلِهِۦٓۚ إِنَّهُمۡ سَآءَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ۝٩ لَا يَرۡقُبُونَ فِي مُؤۡمِنٍ إِلّٗا وَلَا ذِمَّةٗۚ

[۱] الکشاف ۲/ ۲۴۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُعْتَدُونَ ﴿١٠﴾ فَإِن تَابُوا۟ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ فَإِخْوَٰنُكُمْ فِى ٱلدِّينِ ۗ وَنُفَصِّلُ
ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١١﴾ وَإِن نَّكَثُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُم مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا۟ فِى دِينِكُمْ فَقَٰتِلُوٓا۟ أَئِمَّةَ ٱلْكُفْرِ ۙ
إِنَّهُمْ لَآ أَيْمَٰنَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنتَهُونَ ﴿١٢﴾ أَلَا تُقَٰتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُمْ وَهَمُّوا۟ بِإِخْرَاجِ ٱلرَّسُولِ
وَهُم بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ أَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٣﴾ قَٰتِلُوهُمْ
يُعَذِّبْهُمُ ٱللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾ وَيُذْهِبْ غَيْظَ
قُلُوبِهِمْ ۗ وَيَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٥﴾ أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تُتْرَكُوا۟ وَلَمَّا يَعْلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُوا۟
مِنكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَا رَسُولِهِۦ وَلَا ٱلْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۚ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾ مَا كَانَ
لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا۟ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم بِٱلْكُفْرِ ۚ أُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ وَفِى ٱلنَّارِ هُمْ
خَٰلِدُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَلَمْ
يَخْشَ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ فَعَسَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ أَن يَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾ ۞ أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ ٱلْحَآجِّ وَعِمَارَةَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ
كَمَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَجَٰهَدَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ لَا يَسْتَوُۥنَ عِندَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٩﴾ ٱلَّذِينَ
ءَامَنُوا۟ وَهَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿٢٠﴾ يُبَشِّرُهُمْ
رَبُّهُم بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَٰنٍ وَجَنَّٰتٍ لَّهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُّقِيمٌ ﴿٢١﴾ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ
﴿٢٢﴾ ﴾ التوبة: ١ - ٢٢

## لغتونه:

(براءة) له يوشي شخه خان بېلول اوقطع علاقه كولوته وايې زجاج ليكي چي (برئت من الرجل براءة) يعني له سړي شخه په بېزاري سره بېزاره شوى وم او (برئت من المرض برؤا) له ناروغي شخه په روغتيا روغ شوى وم[1] (فسيحوا) نوولاړشى اسياحت په ځمكه كي دسوداګري، عبادت اويا بل څه لپاره ګرزېدلوته وايې (اذان) خبرتياته وايې اوله دې شخه دلمانځه اذان هم راغلى دى (مرصد) ددښمن دڅارني ځاى شاعروايې (ان المنية للفتى بالمرصد) بلادزلمي لپاره كمين نيولى دى[2] (الا) (إل) عهد اوقرابت ته ويل كېږي (نكثوا) نكث اونقض يوشي ته ويل كېږي اوهغه داوبدلي څېزسپخول دي (وليجة) دبطانې په معناده اوأبو عبيده وايې چي هرشى چي په بل كي ګډ كړي اوله هغه شخه نه وي ورته وليجه وايې اوله ولوج شخه اخيستل شوى دي نوهغه څوك چي په

---

[1] زاد المسير ٣ / ٣٩٢
[2] القرطبي ٨ / ٧٣

Bawar.net



یو قوم کي د ننه شي او له هغوی څخه نه وي ( ولیجه ) ګڼل کېږي او فراء وایي چي ولیجه د مشرکانو ( بطانة ) ته ویل کېږي چي رازونه ورته لو څوي او حال احوال ورته رسوي

## د نزول سبب:

روایت کېږي چي د قریشو سرداران یوه ټولۍ خلګ په بدرکي بندیان شول او په دوی کي عباس بن عبد المطلب هم وو نو ځیني اصحابانو رضوان الله علیهم هغه ته د شرک پېغور ورکړ او حضرت علي کرم الله وجهه بیا هغه ته د رسول الله سره په جنګ کولو توبیخ ورکړ او ورته ویې ویل چي صله رحمي نه کوې عباس ورته وویل: تاسي ولي زموږ بدي بیانوئ او ښکي موپټوئ نو په ځواب یې ورته وویل: آیا تاسو ښکي هم لرئ؟ عباس وویل موږ مسجد حرام جوړوو د کعبې چوپړ وهو حجاجو ته اوبه ورکوو بندیان آزادوو نو دغه آیت نازل شو چي

﴿ مَا كَانَ لِلۡمُشۡرِكِينَ أَن يَعۡمُرُواْ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم بِٱلۡكُفۡرِۚ ﴾ د آیت تر پایه. [1]

## تفسیر:

﴿ بَرَآءَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ إِلَى ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ بېزاري ده له طرفه د الله او ( له طرفه ) د رسول د ده هغو کسانو ته چي عهد ورسره کړی دی تاسي له مشرکانو . مفسرین وایي چي عربو خپلي وعدې چي له رسول الله سره یې کړي وې ماتولې نو الله جل جلاله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته امر وکړ چي د دوی وعدې هم ور وغورځوي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حج امیر وټاکه چي خلګو ته مناسک وروښیي او پرې ادا یې کړي او حضرت علي کرم الله وجهه یې ورپسي واستاوو چي خلګو ته د برائت خبر ورسوي نو حضرت علي کرم الله وجهه و درېدو او د دې څلورو ټکو اعلان یې وکړ : ۱ - له سږ کال نه وروسته دي بیت الله شریفي ته مشرک نه رانژدې کېږي ۲ - په کعبه دي بربنډ طواف ونکړل شي ۳ - جنت ته به له مسلمانانو پرته بل څوک نه داخلېږي ۴ - او د چا چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کومه موده ټاکلې وي تر هغې مودې پوري

﴿ فَسِيحُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَرۡبَعَةَ أَشۡهُرٖ ﴾ ( نو ګرځئ یې وخت شته نو ر نو الله او د هغه رسول له مشرکانو څخه بېزاره دي ﴿ فَسِيحُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَرۡبَعَةَ أَشۡهُرٖ ﴾ تاسي په ( دغه ) ځمکه کي څلور میاشتي دا چي زموږ له خوا به هیڅ زیان نه دررسېږي د لته امر د رواوالي او جواز حکم لري او په ترڅ کي یې تهدید دی ﴿ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّكُمۡ غَيۡرُ مُعۡجِزِي ٱللَّهِ ﴾ او پوه شئ اې مشرکانو پدې چي بېشکه تاسي نه یئ عاجز کونکي د الله ( د عذاب که څه هم چي مهلت یې درکړ ) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ مُخۡزِي ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ او پدې پوه شئ ) چي بېشکه الله د کافرانو رسوا کونکی دی یعني په دنیا کي به یې په بند او قتل ذلیل کوي او په آخرت کي په سخت عذاب ﴿ وَأَذَٰنٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ إِلَى ٱلنَّاسِ ﴾ ( او خبرول دی له ( طرفه ) د الله او رسول د ( الله ) تو لو خلګو ته ) یعني ټولو خلګو ته دا خبر تیا ورکول کېږي چي الله او رسول الله له مشرکانو څخه بېزاره دي ﴿ يَوۡمَ ٱلۡحَجِّ ٱلۡأَكۡبَرِ ﴾ په ورځ د حج اکبر کي یعني د لوی اختر په ورځ هغه چي تر ټولو ور ځو د مناسکو غوره ورځ یوم

---

[1] زاد المسیر ۳ / ۴۰۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

النحر ده. زمخشري وايي چي: حج يې لوى پدې وباله چي عمره هم حج بلل كېږي مگرهغه حج اصغر دى (١) ﴿ أَنَّ ٱللَّهَ بَرِيٓءٌ مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُۥ ﴾ چي بېشكه الله بېزاره دى له مشركانو ( اوددوى له عهده ) اورسول ددغه الله ) هم بېزاره دى ﴿ فَإِن تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ (نوكه تاسي له شركه توبه وايسته نوداغوره بهتره دى تاسي ته ) يعني كه له كفره وگرځېدلئ اودالله توحيدموغوره كړدغه ستاسولپاره تركمراهي بهتره دى ﴿ وَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِى ٱللَّهِ ﴾ اوكه مخ واړاوو تاسي ( له توبې په شرك كولوسره ) نوپوه شئ چي بېشكه تاسي دالله عاجز كونكي نه يئ ) چي عذاب دي درنكړي اوياخني وتنبتېداى شئ ﴿ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ اوزېرى وركړه هغو كسانوته چي كافران شويدي په دردناك عذاب سره . ابوحيان وايي چي انذار ته يې بشارت ووايو داستهزاء په ډول اوپدې كي ددوى لپاره ستروعيددى (٢) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ مگرهغه كسان چي عهدكړى دى تاسي (له دوى سره ) له مشركانو اودوى وعدې نه دي ماتي كړي نوله دوى سره متقابل چلند وكړئ وعدې ورسره بشپړي كړئ . په كشاف تفسيركي وايي چي: دغه استثناء داستدراك په معناده يعني هغه څوك چي وعدې يې ماتي كړي نه دي خپله وعده ورسره ترسره كړئ اودنوموړو عهد ماتونكوپه ډله كي يې مه دروئ اوخيانت كونكي لكه وفادار غوندي يوشان مه گڼئ ﴿ ثُمَّ لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْـًٔا ﴾ بيايې نقصان ندى كړى له تاسي سره هيڅ شى ( دوعدې په شرطونوكي ) ﴿ وَلَمْ يُظَٰهِرُواْ عَلَيْكُمْ أَحَدًا ﴾ اونه يې ستاسي په مقابل كي له هيچاسره مرسته كړيده (چي ستاسي دښمنان وي ) ﴿ فَأَتِمُّوٓاْ إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ ﴾ نوپوره كړئ ( اې مؤمنانو ! ) له دغو (مشركانو ) سره عهد ددوى تر( تمامېدلودمقررې ) وعدې ددوى ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ بېشكه الله متقيان خوښوي ( هغه چي خپلي وعدې پرځاى كوي. بيضاوي وايي چي: دغه تعليل اوپدې باندي تنبيه ده چي دوعدې بشپړول دتقوى څخه دى (٣) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي: د(كنانة) له يوكلي څخه دمودې نه مياشتي پاتي وې نورسول الله صلى الله عليه وسلم هغه دعهدموده ورسره بشپړه كړه ﴿ فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلْأَشْهُرُ ٱلْحُرُمُ ﴾ نوكله چي تېرې شوې (څلور ) حرامي مياشتي (هغه چي جگړه كول پكي حرام دى ﴿ فَٱقْتُلُواْ ٱلْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ ﴾ ( نووژنئ ( اې مؤمنانو ! ( عهدماتونكي ) مشركان په هرځاى كي چي تاسي موندل ) يعني كه په حل كي و اوكه په حرم كي ابن عباس وايي: په حل اوپه حرم اوپه اشهرحرم كي مراددى ﴿ وَخُذُوهُمْ ﴾ بنديان كړئ دوى ﴿ وَٱحْصُرُوهُمْ ﴾ او حصاريې كړئ په كلاگانو كي. ابن عباس وايي: كله چي موونيول نويې په كلاگانوكي راايسار كړئ ترڅو دمسلمانانودقتل څخه يې لاس لنډشي ﴿ وَٱقْعُدُواْ لَهُمْ

---

(١) الكشاف ٢/ ٢٤٢

(٢) البحر ٥/ ٨

(٣) ...

Bawar.net



﴿ كُلَّ مَرۡصَدٖ ﴾ اوکښېنئ دوی ته (منتظر) په هرځای دخارلو او تېرېدلو کي. په البحر المحيط کي وايي چي: دلته مقصود دوی ته زيان رسول دی په هرډول چي وي که دمخامخ جنګ وي اوکه دکمين نيولو(۱) ﴿ فَإِن تَابُواْ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ فَخَلُّواْ سَبِيلَهُمۡۚ ﴾ نوکه توبه وايسته دوی (له کفره) اوقائم کړدوی لمونځ اوزکات يې ورکړ نو تاسي ددوی لاره خوشي کړئ يعني څه مه ورته وايا ست ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشکه الله ښه ښښونکی د هرمهربان دی دهغه چالپاره چي توبه وکاږي اوسمي لاري ته راوګرزي ﴿ وَإِنۡ أَحَدٞ مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ٱسۡتَجَارَكَ فَأَجِرۡهُ ﴾ اوکه يوتن له مشرکانو پناه وغواړي له تانو پناه ورکړه تـه هغه ته ﴿ حَتَّىٰ يَسۡمَعَ كَلَٰمَ ٱللَّهِ ﴾ څوچي واوري دالله کلام (اوپکي سوچ وکړي) زمخشري وايي: معناداچي کله ددغومياشتو له تېرېدلو وروسته يوڅوک له مشرکانوتاته راشي چي ستا اوددوی ترمينځ عهدنه وي اودرڅخه پناه وغواړي ترڅوله تاڅخه دعوت اوبلنه دتوحيد اوقرآن واوري نوپناه ورکړه چي دالله کلام واوري سوچ پکي وکړي اوپه واقعيت خبرشي(۲) زه وايم چي دغه نوبېخي دښې معاملې اوسترو اخلاقو څرګندويه ده څکه مقصد دکافرانو له مينځه وړل نه بلکه دهغوی لارښوونه اودوی ته قناعت ورکول دي چي حق وپېژني اوپيروي يې وکړي اوهغوی دضلالت لاري چاري پرېږدي ﴿ ثُمَّ أَبۡلِغۡهُ مَأۡمَنَهُۥۚ ﴾ (بيا ته دی دامن ځای ته ورسوه) يعني که وروسته يې ايمان نه راووړنوخپل وطن ته يې چي دده دقوم تاتوبئ ورسوه هلته چي دده مال اونفس په امن دي او له خيانت اوغدرڅخه يې خوندي لره ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَعۡلَمُونَ ﴾ دغه پناه ورکول مشرکانوته په سبب ددې دی چي بېشکه دوی (داسي) قوم دی چي نه پوهېږي؛ داسلامي دين په حقيقت باندي نوار ومرو بايددوی سره داسي چلندوشي ترڅوالهی کلام واوري اوپکي سوچ وکړي؛ وروسته بيا الله تعالی دبرائت حکمت داسي بيانوي چي: ﴿ كَيۡفَ يَكُونُ لِلۡمُشۡرِكِينَ عَهۡدٌ عِندَ ٱللَّهِ وَعِندَ رَسُولِهِۦٓ ﴾ څرنګه به وي مشرکانوته عهدپه نزد دالله اوپه نزددرسول ددغه (الله) استفهام دانکاراو استبعادلپاره دی يعني څرنګه به ددوی لپاره داعتبار ورعهد وي اوبيااستدراک کوي چي: ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّمۡ عِندَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِۖ ﴾ مګرهغه کسان چي عهدکړي دی تاسو (له دوی سره) په نزد دمسجدحرام کي (اوبيايې ندی مات کړی) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: دغه دمکي خلک دي اوابن اسحاق بياوايي چي: دغه د(بني بکر) قبائل دي چي دحديبيې په وخت کي په هغه موده کي چي درســول الله صلی الله عليه وسلم اوقريشو ترمينځ وه داخل شول نودعهد دبشپړولو په هکله يې دهغه چالپاره چي وعده يې ماته کړي نه وه امروشو(۳) ﴿ فَمَا ٱسۡتَقَٰمُواْ لَكُمۡ فَٱسۡتَقِيمُواْ لَهُمۡۚ ﴾ نوڅوچي برابرولاړ اوسي دوی تاسي ته (په عهدخپل) نوبرابرولاړ اوسئ تاسي هم (په عهدخپل) (۴) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ بېشکه چي

---

(۱) البحر المحيط ۵ / ۱۰

(۲) الکشاف ۲ / ۲۴۸

(۳) البحر المحيط ۵ / ۱۲

(۴) الطبري ۱ / ۸۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله متقيان خوښوي هغه چې په وعده وفاکوي اوله غدراو خيانت څخه ځان ساتي ﴿ كَيْفَ وَإِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ ﴾ څرنګه به وي ؟ ( دوی ته عهداو پردوی څه اعتبار دی ) حال داکه لاس يې برشي پرتاسودلته داستبعاد تکرار دی يعني څرنګه به دوی پخپله وعده ودرېږي حال داچي که پرتاسوباندي وس پيداکړي نو: ﴿ لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ﴾ نه ګوري دوی ستاسي په باب قرابت اوعهدته ؛ ځکه دوی هغه څوک دي چې امان اوعهد نلري ابوحيان وايي چې: دغه ټول تاکيد اواستبعاد دی چي ددوی زړونه دي په عهدتينګ وي (۱) ﴿ يُرْضُونَكُم بِأَفْوَاهِهِمْ ﴾ راضي کوي دوی تاسي په(تشوخبرو ) دخولودوی يعني کله چي تاسي ورباندي برلاسي ياست دوی پستي خبري درته کوي ﴿ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ ﴾ اومنع کوي زړونه ددوی ( دوعدې له وفاء څخه ) په همدې څرګندولوسره طبري وايي چي: دوی تاته په خوله هغه څه وايي چي: په زړه کي يې دهغه په خلاف دښمني اوکينه خوندي وي زړونه يې نه غواړي چي دغه څرګندوني تصديق کړي (۲) ﴿ وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ ﴾ اوزياتره ددوی فاسقان دي يعني دهرددغووعدې ماتونکودالله له طاعت څخه متجاوزين اووتلي دي ﴿ ٱشْتَرَوْا بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ اخيستی دی دوی په آيتونو(احکامو ) دالله قيمت لږ يعني دوی په قرآنکريم باندي ددنيا خسيس متاع پېرودلی بدله کړي ده ﴿ فَصَدُّوا عَن سَبِيلِهِۦٓ ﴾ (نومنع کوي دوی (خلګ ) له لاري دالله نه ) يعني داسلام له راوړلويې منع کوي ﴿ إِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ بېشکه بدکاردی هغه چي دوی به کاوو ﴿ لَا يَرْقُبُونَ فِى مُؤْمِنٍ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ﴾ نه ګوري (لحاظ نه ساتي دغه عهدماتونکي په حق ) دهيڅ مؤمن کي دقرابت اوعهد ؛ کله چي يې دمؤمن په وژلو لاس برشي ﴿ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُعْتَدُونَ ﴾ (اودغه کسان هم دوی دي تېرېدونکي (له حده ) يعني دغه کسان چي نوموړي بداوصاف لري دظلم اوبغي له حده تېردي ﴿ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ اوکه توبه وايسته دوی ( له کفره ) اولمونځ يې قائم کړ اودوی زکات ورکړ ﴿ فَإِخْوَٰنُكُمْ فِى ٱلدِّينِ ﴾ نووروڼه ستاسي دي په دين کي يعني دوی لره هم هغه حقوق دي چي تاسولره دي اوپردوی هم هغه واجبات دي کوم چي پرتاسودي ﴿ وَنُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ (اوپه تفصيل بيانوو موږ آيتونه لپاره دهغه قوم چي پوهېږي ) يعني موږ داهل علم اوفهم لپاره دلائل اوبراهين بيانوودغه جمله اعتراضيه ددې لپاره راغلي چي دسوچ اوتدبرکولوته خلګ وهڅوي ﴿ وَإِن نَّكَثُوٓا أَيْمَٰنَهُم مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ ﴾ اوکه مات کړل دغو (مشرکانو ) قسمونه خپل وروسته له عهدتړلو ددوی ( له تاسي سره ) يعني که دوی هغه وعدې چي په قسمونو يې تينګي کړي وې ماتي کړې ﴿ وَطَعَنُوا فِى دِينِكُمْ ﴾ اوپېغورونه يې درکړل په دين ستاسي کي يعني داسلام

---

(۱) البحر ۵ / ۱۳

(۲) الطبري ۱۰ / ۸۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بې عیب اوبدي ویله ﴿ فَقَٰتِلُوٓاْ أَئِمَّةَ ٱلۡكُفۡرِ ﴾ نو وجنګیږئ تاسي له(دغو) مشرانو دکفر سره ﴿ إِنَّهُمۡ لَآ أَيۡمَٰنَ لَهُمۡ ﴾ بېشکه دوی لره نشته قسمونه ددوی (یعني قسم یې په قسم نه دی معنی دوی پخپلو وعدو وفا نکوي ﴿ لَعَلَّهُمۡ يَنتَهُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی واوړي له ګناه کولو او سلام ته له پېغور ورکولو نه. بیضاوي وایې چي: معنا دا چي ستاسو دي ددوی په وژلو کي غرض داوي چي دوی له خپل جرم څخه راوګرزي نه دا چي دوی ته دزیان رسونکو په شان زیان رسول وي [1] ﴿ أَلَا تُقَٰتِلُونَ قَوۡمٗا نَّكَثُوٓاْ أَيۡمَٰنَهُمۡ ﴾ آیا نه جنګیږئ تاسي (اې مؤمنانو بلکه ضرور وجنګیږئ) له داسي قوم سره چي مات کړي دي دوی قسمونه خپل) دغه ددوی په قتال باندي تحریض دی یعني له داسي قوم سره چي وعدې یې ماتي کړي او ستاسي په دین یې پېغور لګولی وجنګیږئ ! ﴿ وَهَمُّواْ بِإِخۡرَاجِ ٱلرَّسُولِ ﴾ او قصد کړی دوی په ایستلو د رسول الله صلی الله علیه وسلم له مکې نه کله چي یې په دارالندوة کي غونډه وکړه چي پېغمبر ستاسي له مینځه وباسي ﴿ وَهُم بَدَءُوكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾ حال دا چي هم دوی شروع کړی دی (جنګ) له تاسي سره اول کرت کله چي ستاسو متعهدین او حلفاء (خزاعة) قوم سره وجنګېدل او لومړنی پیل کونکی خوزیات ظالم وي نو ولي ورسره نه جنګیږئ ؟ ﴿ أَتَخۡشَوۡنَهُمۡۚ فَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخۡشَوۡهُ ﴾ (آیا تاسو له دوی نه وېرېږئ ؟ نو الله ښه لائق پدې دی چي تاسي څني ووېرېږئ) له عذابه دده څخه کله چي یې امر ونه منئ ﴿ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ که یې تاسي مؤمنان یعني باورکونکي په عذاب او ثواب د الله جل جلاله باندي. زمخشري وایې: دصحیح ایمان غوښتنه او تقاضا داده چي مؤمن پرته له خپله ربه له هیچا ونه وېرېږي او دبل هیچا پروا ونکړي [2] بیا وروسته له دغي هڅوني په صریح دول ددوی دوژلو امر کوي چي: ﴿ قَٰتِلُوهُمۡ يُعَذِّبۡهُمُ ٱللَّهُ بِأَيۡدِيكُمۡ ﴾ (وجنګیږئ تاسي له دغو(کفارو سره) (اې مؤمنانو) چي په عذاب کړي دوی الله په لاسونو ستاسي) یعني اې مؤمنانو له دوی سره وجنګیږئ ستاسو جګړه له دوی سره داولیاء الله په لاس جګړه او ددوی عذاب دي او ودا جهاد دی له هغه چاسره چي جګړه کونکی وي ﴿ وَيُخۡزِهِمۡ ﴾ او رسوا کړي دوی په ذلت، بندي توب او ناکامي سره ﴿ وَيَنصُرۡكُمۡ عَلَيۡهِمۡ ﴾ او مرسته درکړي تاسي ته پر دغو(کفارو) باندي ﴿ وَيَشۡفِ صُدُورَ قَوۡمٖ مُّؤۡمِنِينَ ﴾ او شفا ورکړي (زخمي) سینو د مؤمنانو ته ددین په اعتلاء او دکفارو په تعذیب او ناکامي رسوایې باندي. ابن عباس رضی الله عنه وایې چي: دیمن یو قوم مکې ته راغلی وو، اسلام یې راوړی وو او دمکې له خلګو څخه یې ډېر خور او تکلیف ګاللی وو نو رسول الله ﷺ ته یې شکایت وکړ هغه صلی الله علیه وسلم ورته وویل: زېری درکوم چي خلاصون نژدې دی [3] ﴿ وَيُذۡهِبۡ غَيۡظَ قُلُوبِهِمۡۗ ﴾ او بوزي (لیري کړي) خفګان دزړونو ددوئ (مؤمنانو) دغه لکه دشفاء الصدور تاکید غوندي دی او فائده یې ددوی دخوښي په هکله مبالغه ده چي دوی ته به الله جل جلاله ددوی ددښمنانو تعذیب ورو ویني. امام رازي وایې: امر وکړ الله مؤمنانو ته ددغو(کفارو) دقتال او پنځه ډوله ګټي

---

(1) البیضاوي ۲۶۹
(2) الکشاف ۲/۲۵۲
(3) ابو السعود ۲/۲۵۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

اوفائدې یې پکې وښودلې چې هره یوه یې پخپل ځای چې ګوښې وې هم ستره ده خو کله چې سره یو ځای شي ولې به ستري نه وي (۱) ﴿ وَيَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ﴾ اورجوع کوي الله په رحمت سره دهغه چې اراده وفرمايي د(هدايت يې ) دغه بيا د کلام استئناف دی یعني الله په هغه چااحسان کوي توبه يې مني اوپه اسلام کې يې داخلوي چې چاته یې اراده وشي لکه ابوسفيان ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ اوالله ښه عالم ښه حکمت والادی یعني په رازونو او اسرارو خبردار دی هيڅ ورڅخه پټ نه دي دحکمت خاوند دی هغه کارچې پکې مصلحت اوحکمت نه وي نه يې کوي. ابوالسعودوايي: الله پاک تولي هغه وعدې چې کړي يې وې په ښه توګه ترسره کړې نودرسول الله صلی الله عليه وسلم اخبارپخواترپيښيدلوددغو پيښو يوه ستره معجزه ده (۲) ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تُتْرَكُوا۟ ﴾ اياګمان کوئ تاسي ( اې مؤمنانو ) داسي چې (همداسي) به پرېښودی شئ. ) (أم) توري ته منقطعه وايي اود(بل) توري په معنادی چې ترجمه يې داسي کيدای شي چې اياتاسي ګمان کوئ چې بې له امتحان اوابتلاء به پرېښودی شئ چې رښتوني اودروغجن په دين کي مويوله بله ونه پېژندل شي ؟ ﴿ وَلَمَّا يَعْلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُوا۟ مِنكُمْ ﴾ (حال داچې له سره نه دی معلوم کړی الله (په علم ظهورسره ) هغه کسان چې جهاد يې کړی له تاسي څخه ) دلته مراد له علم نه علم ظهورڅکه دی چې په علم خفاء سره خوالله علم لري هغه عالم الغيب دی نود(مَاعَلِمَ) اظهار اوڅرګندونه ددې لپاره ده چې جزاورباندي مرتب شي ﴿ وَلَمْ يَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَا رَسُولِهِۦ وَلَا ٱلْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ﴾ اوچي نه وي نيولی دوی پرته له الله اوپرته له رسوله ددغه (الله) اوپرته له (مؤمنانو) ديتو خبرو دوست) یعني چې جهاد يې کړی وي دالله په لارکي اوله مشرکانو څخه یې بطانه اودوستان نه وي نيولي چې هغوی ته دمؤمنانو پټ رازونه لوڅوي اوله مسلمانانو پرته خواخوږي اودوستي ورسره پالي . له آيت شريف څخه غرض دادی چې الله پاک خلګ هم داسي نه پرېږدي ترڅوچې پاک اوناپاک سره بېل نکړي ﴿ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ اوالله ښه خبرداردی په هغو کارونوچې تاسي يې ( له نېکي اوبدي څخه) کوئ ﴿ مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا۟ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ ﴾ ( نشته مشرکانوته داچې ودان کړي دالله مسجدونه ) يعني د مشرکانو لپاره روانه دي ،نه ښائېږي اونه ورسره لائق دي چې يومسجد دي ودان کړي ﴿ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم بِٱلْكُفْرِ ﴾ (حال داچې شاهدان وي دوی پرخپلو نفسونو په کفرسره) يعني دوی هغه څوک دي چې په خپلو اقوالو ، افعالوسره دالله په شرک اقرار کوي څکه دوی به کله چې تلبيه لوستله نوبه يې ويل: ( لبيک لاشريک لک الاشريکا هولک، تملکه ومالک) چې پدې سره به ددوی قصد دبتانو وو ، بتان يې له کعبې بهر درولي وو بربند اولوڅ لغړ به يې په کعبه طواف کاوو اوچي طواف به يې هروار(چکر) اداکړ نوبتانوته به يې سجدې لګولې (۳) مقصددادی چې د دوی لپاره سمه نه ده چې ددووڅيزونويوځای کول وکړي چې هغه يوله بله بېخي ګوښې اولېري دي دالله د مساجدو تعمير آبادول اوپه الله اوعبادت باندي يې کافرکېدل ؟ (۱) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ ﴾ دغه مشرکان

(۱) الفخر الرازي ۱۲/ ۲
(۲) ابوالسعود۲ / ۲۵۸
(۳) الصاوي على الجلالين ۲ / ۱۴۲

Bawar.net
Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ابته دي عملونه ددوی (خکه چي مشرکان دي ایمان نلري) ﴿ وَفِي ٱلنَّارِ هُمۡ خَٰلِدُونَ ﴾ اوهمیشه به په اورکي دي ﴿ إِنَّمَا يَعۡمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنۡ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ بېشکه هم داخبره ده چي ودانوي مسجدونه دالله هغه څوک چي ایمان یې په الله راوړی وي اوپه ورځي آخري (چي دقیامت ورځ ده) ﴿ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ اودروي لمونځ (سم) اداکوي سره له ټولو حقوقو) او ورکوي زکات ﴿ وَلَمۡ يَخۡشَ إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ اونه وېرېږي له (هیڅا) مګرله الله څخه ﴿ فَعَسَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ أَن يَكُونُواْ مِنَ ٱلۡمُهۡتَدِينَ ﴾ امیدی دی چي دغه کسان به وي له لاري موندونکو څخه (په قیامت) ابن عباس رضی الله عنه وایې چي هره د(عسی) کلمه چي په قرآن کریم کی راشی دوجوب معنالري الله جل جلاله خپل نبي ته فرمایې: ﴿ عَسَىٰٓ أَن يَبۡعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامٗا مَّحۡمُودٗا ﴾ الاسراء: ۷۹ یعني ژرده چي ستارب به تامقام محمودته راپاڅوي چي هغه شفاعت دی (۱) ابوحیان وایې چي (عسی) دالله په کلام کي واجب وي اوپدې سره تعبیرکول دمشرکانو طمع غوڅول دي چي دوی به هیڅکله هم هدایت ونه مومي څکه هرڅوک چي دغه څلور خویونه په ځان کي راولي نوحال ته یې دهدایت کېدلوامید پیداکېږي نوهغه به څرنګه هدایت وموميچي دغه خویونه پکي نه وي اوبل داچي پدې کي له امید سره وېره هم موجوده ده ترڅوچي په نېکو اعمالو یوڅوک غره او تېرنه وزي (۲) ﴿ أَجَعَلۡتُمۡ سِقَايَةَ ٱلۡحَآجِّ وَعِمَارَةَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ كَمَنۡ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَجَٰهَدَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾ (آیاګڼلی (ګرزولی) دی تاسي اوبه ورکول حاجیانوته او ودانول دمسجد حرام په مثل (دایمان) دهغه چاچي ایمان لري په الله او (په) ورځي آخري (دقیامت) اوجهادیې کړی وي په لاره دالله کي) خطاب دمشرکانولپاره (۳) اواستفهام دانکاراوتوبیخ لپاره دی یعني ای مشرکانو ا حجاجوته اوبو رسول اودبیت الله شریفي خدمت اومشرتوب کول لکه دمؤمنانوایمان اوفی سبیل الله جهاد غوندي بولئ ؟! دغه په عباس باندي رد دی چي هغه ویل: که تاسوترموږ له مخه په اسلام مشرف شوي اوهجرت موکړی خوموږ بیامسجد حرام ودان کړی حجاجوته مو اوبه رسولي نودغه آیت نازل شو. طبري وایې: دغه دالله جل جلاله له لوری هغه قوم ته توبیخ دی چي دمسجد حرام ودانول اودبیت الله واکداري یې خپل فخرګڼلو نوالله جل جلاله دوی پوهول چي دویاړ (فخر) سبب په الله اوپه ورځ دقیامت باندي ایمان اوفی سبیل الله جهاد دی (۴) ﴿ لَا يَسۡتَوُۥنَ عِندَ ٱللَّهِۗ ﴾ (نه دي برابردوی په نزدد الله ) یعني مؤمنان اومشرکان سره برابرنه دي اونه ددوی کړه وړه له هغوی سره پرتله کېږي نه یې درجاتي سره برابري دي ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوالله نه ښیي سمه صافه لارقوم ظالمانوته دغه کلام لکه تعلیل غوندي دی یعني الله ظالمانوته دحق دپېژندني توفیق نه ورکوي. په البحرکي وایې چي: ددې معنا انکاردی چي مشرکان دي له مؤمنانوسره مشابه اویادي ددوی خراب اوخوساعملونه دهغوی له سمو سپېڅلواعمالوسره یورنګ وبلل شي اوکله چي مساوات نفی شونودایې څرګنده کړه چي په الله کافران همدوی ظالمان دي چي پخپلو ځانونویې دایمان په نه راوړلو ظلم کړی اوپه مسجدحرام یې ظلم کړی چي

---

(۱) الطبري ۱۰/۹۴
(۲) البحر المحیط ۵/۲۰
(۳) سبب النزول
(۴) الطبري ۱۰/۹۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دبتانو هستو ګنځی یې ګرزولی ؛ اومؤمنانو ته یې په تېرشوي آیت کي هدایت ثابت اودلته یې له مشرکانو څخه نفی کړچي ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (۱) اوالله نه بنیي سمه صافه لار ظالمانو ته بیاالله تعالی فرمایي:

﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ أَعۡظَمُ دَرَجَةً عِندَ ٱللَّهِۚ ﴾ هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي (په ټولو مؤمن به شیانو) اوهجرت یې کړی دی اوجهادیې کړی دی په لاره دالله کي (ددین دترقي لپاره) په مالونو خپلو اوځانونو خپلو ډېرلوی دي (له نورونه) له جهته (ددرجې په نزددالله) دغه زیاته توضیح اودااهل ایمان اوجهادبیان دی معنایې داچي هغه کسان چي ځانونه یې دشرک له خیروپاک کړي اوپه هجرت باندي یې پسوللي ځانونه اومالونه یې دالله جل جلاله په لارکي جهادته سپارلي نودغه کسان چي هسې صفتونه لري اجرې خوراسترااویادیې ډېرلوړ دی له هغه چاچي حاجیان اوبوي اویاهم مسجدحرام ودانوي اودوی مشرکان وي ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَآئِزُونَ ﴾ اوهمدغه (ستایل شوی کسان) همدوی په مرادرسېدونکي دي ( په جنتونوکي )

﴿ يُبَشِّرُهُمۡ رَبُّهُم بِرَحۡمَةٖ مِّنۡهُ وَرِضۡوَٰنٖ ﴾ زېری کوي پردوی رب ددوی په رحمت سره له جانبه خپله اوپه رضامندي (لویه) سره (دلوی رب له لوري) ﴿ وَجَنَّٰتٖ لَّهُمۡ فِيهَا نَعِيمٞ مُّقِيمٌ ﴾ (اوپه جنتونو سره چي وي به دوی ته په دغو (جنتونو) کي نعمتونه همېشه) یعني دوی به په لوړو جنتونوکي وي چي مېوې یې رسېدلي اوهلته به تل ترتله نعمتونه چي زوال به نلری ورکولی شي ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًاۚ ﴾ حال داچي همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو) کي تل ترتله ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجۡرٌ عَظِيمٞ ﴾ (بېشکه له الله سره دی اجرډېرلوی) یعني ددوی ثواب دالله په نزدډېر لوی دی چي عقل یې اندازه نشي لګولای. ابوحیان وایي: کله چي الله جل جلاله مؤمنانو په دریو صفتونو وستایل چي هغه ایمان، هجرت اوجهادپه نفس اومال دی نو ددوی په مقابل کي یې ددریو نعمتونو زېری ورکړل چي هغه رحمت، رضوان اوجنت دی لومړی یې رحمت راوورچي هغه ترټولونعمتونو عام اود ایمان په مقابل کي یې ودراوو اوبیایې رضامندي راوړه هغه چي داحسان منتهاده اودغه دجهادفی سبیل الله په مقابل کي دریم یې جنت راووړ اوهغه بیادهیواد پرېښودلو اوهجرت په مقابل کي (۲) الوسي وایي: داڅه پټه خبره نه ده چي دجنت صفت پدې باندي چي هلته تل ترتله نعمتونه دي دغه خورا له لطافت اوباریکي څخه ډکه خبره ده ځکه چي په هجرت کي سفراوهغه دعذاب یوه ټوټه وي (۳)

**بلاغت:**

۱ - ﴿ بَرَآءَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦٓ ﴾ دلته تنوین دتفخیم لپاره اوداچي دالله اورسول له لوري ده دغه (تفخیم دزیاتوالي اوهیبت لپاره دی.

۲ - پدې کلام کي چي الله فرمایي: ﴿ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ دغه اسلوب ته (تهکمي اسلوب) وایي ځکه په عذاب باندي زېری ورکول داستهزاء اوتهکم لپاره دی.

---

(۱) البحر المحيط ۵/۲۰
(۲) البحر ۵/۳۱
(۳) روح المعاني ۱۰/۷۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



٣ - ﴿ فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلْأَشْهُرُ ٱلْحُرُمُ ﴾ - دلته يې دمياشتو تېرېدل دحيوان له څرمني څخه وتلو سره تشبيه کړي او استعاره ګڼل کېږي

٤ - پدې جمله کي چي ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ دالله جل جلاله نوم يې ظاهر دضمير پرخاى راوړ چي په زړه کي هيبت او وېرونه وروزي.

٥ - ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴾ دغه جمله دحصرافاده کوي يعني يوازي دوى په مراد رسېدُنکي دي نه نور څوک

٦ - کله چي الله فرمايې: ﴿ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ دلمانځه اوزکات په خانګړي توګه يادونه ددې لپاره ده چي دشان تفخيم اوسترتوب يې وشي اوخلګ ورته څېرشي.

٧ - ﴿ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَٰنٍ ﴾ درحمت تنکير اوهمداراز درضوان تنکير دتفخيم اوتعظيم لپاره دى يعني هسي رحمت اورضوان چي بل څوک يې کولاى نشي.

**فائده:**

دمساجدو ودانودل دوه ډوله دي يويې حسي اوبل معنوي کوم چي حسي ودانول دي هغه يې جوړول ، آبادول اوښايسته کول دي اومعنوي يې بيا په لمانځه او ذکرسره ودانول راځي اوبېشکه الله پاک ودانول او ايمان سره تړلي دي اوپه حديث شريف کي راځي (چي لنده معنايې داده ) که مويوڅوک وليد چي له مسجد سره يې سرو کار اوعادت وونود هغه لپاره دايمان ګواهي ورکړئ ځکه چي الله فرمايې : ﴿ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ﴾ (١) نوحقيقي وداني يې په لمانځه اودالله په ذکرده.

**لطيفه:**

قرطبي وايې چي : يواعرابي مدېنې منورې ته راغى اوويې ويل : څوک به ماته هغه څه ولولي چي په محمد رانازل شوي نويوتن ورته سورت برائت ولوست آن تردې چي دغه آيت يې ولوست ﴿ أَنَّ ٱللَّهَ بَرِىٓءٌ مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ وَرَسُولِهِۦ ﴾ هغه يې په زېرسره ولوستل چي ( ورسوله ) أعرابي وويل چي زه هم له رسول دده څني بېزاره يم خلګو ته دغه خبره ستوخه ښکاره شوه اوحضرت عمررضى الله عنه ته خبره ورسېده هغه ورته وويل: چي آياته له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه بېزاره يې ؟ هغه وويل اې اميرالمؤمنين ازه مدېنې ته راغلم يوچادبرائت سورت راته ولوست نوماوويل کله چي الله له رسول څخه يې بېزاره وي نوزه هم بېزاره يم حضرت عمروويل: اې اعرابي آيت دغسي نه دى ورته ويل يې: څنګه دى ؟ اې اميرالمؤمنينه ! نوهغه ورته ولوستل او( رسولهُ) يې تلاوت کړ اعرابي وويل اوزه هم په الله قسم چي له هغه چاڅخه بېزاره يم له چاڅخه چي الله اورسول الله بېزاره دي نوعمررضى الله عنه امروکړچي خلګوته دي پرته له هغه چاچي دعربي په لغت پوه وي بل څوک قرائت نه لولي. (٢)

(١) رواه الترمذي
(٢) القرطبي ١/ ٢٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## الله تعالى فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمۡ وَإِخۡوَٰنَكُمۡ أَوۡلِيَآءَ إِنِ ٱسۡتَحَبُّواْ ٱلۡكُفۡرَ عَلَى ٱلۡإِيمَٰنِۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٣﴾ قُلۡ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمۡ وَأَبۡنَآؤُكُمۡ وَإِخۡوَٰنُكُمۡ وَأَزۡوَٰجُكُمۡ وَعَشِيرَتُكُمۡ وَأَمۡوَٰلٌ ٱقۡتَرَفۡتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٞ تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَآ أَحَبَّ إِلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٖ فِي سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ بِأَمۡرِهِۦۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴿٢٤﴾ لَقَدۡ نَصَرَكُمُ ٱللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٖ وَيَوۡمَ حُنَيۡنٍ إِذۡ أَعۡجَبَتۡكُمۡ كَثۡرَتُكُمۡ فَلَمۡ تُغۡنِ عَنكُمۡ شَيۡـٔٗا وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ثُمَّ وَلَّيۡتُم مُّدۡبِرِينَ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ أَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَعَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَأَنزَلَ جُنُودٗا لَّمۡ تَرَوۡهَا وَعَذَّبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْۚ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ يَتُوبُ ٱللَّهُ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَآءُۗ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٢٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡمُشۡرِكُونَ نَجَسٞ فَلَا يَقۡرَبُواْ ٱلۡمَسۡجِدَ ٱلۡحَرَامَ بَعۡدَ عَامِهِمۡ هَٰذَاۚ وَإِنۡ خِفۡتُمۡ عَيۡلَةٗ فَسَوۡفَ يُغۡنِيكُمُ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦٓ إِن شَآءَۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴿٢٨﴾ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ ٱلۡحَقِّ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعۡطُواْ ٱلۡجِزۡيَةَ عَن يَدٖ وَهُمۡ صَٰغِرُونَ ﴿٢٩﴾ وَقَالَتِ ٱلۡيَهُودُ عُزَيۡرٌ ٱبۡنُ ٱللَّهِ وَقَالَتِ ٱلنَّصَٰرَى ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ ٱللَّهِۖ ذَٰلِكَ قَوۡلُهُم بِأَفۡوَٰهِهِمۡۖ يُضَٰهِـُٔونَ قَوۡلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَبۡلُۚ قَٰتَلَهُمُ ٱللَّهُۖ أَنَّىٰ يُؤۡفَكُونَ ﴿٣٠﴾ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُوٓاْ إِلَٰهٗا وَٰحِدٗاۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۚ سُبۡحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴿٣١﴾ يُرِيدُونَ أَن يُطۡفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفۡوَٰهِهِمۡ وَيَأۡبَى ٱللَّهُ إِلَّآ أَن يُتِمَّ نُورَهُۥ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴿٣٢﴾ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ ﴿٣٣﴾ ﴾ التوبة: ٢٣ - ٣٣

## مناسبت اوتړاو:

كله چي الله تعالى دمشركانو بدي (قبائح) وشمېرل اودمهاجرينو مؤمنانو صفتونه يې هغه چي خپل هستوګنځی اوټاټوبی يې دالله اورسول په مينه كي ترشاكړي وو بيان كړل دلته يې دكفارو له دوستي څخه تحذير وفرمايو اودايادونه يې وكړه چي دخپلو پلرونو اوخپلوانو كله چي كافران وي مقاطعه يې واجب ده اوبيايې مؤمنانو ته وربه يادكړو چي په ډېرو ځايونو كي الله مرسته دركړي ځو چي دوی پخپل دين افتخار وكړي له هغه وروسته بيا دااهل كتابو قبائح راوړي اوله دوستي څخه يې مؤمنان وېروي اوداچي هغوی هم لكه مشركان غوندي زيار باسي چي دالله نور ووژني.

Bawar.net



## دنزول سبب:

کلبي وايي: کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم مدينې منورې ته دهجرت کولو امروکړنو يوسړي به خپل پلار ورور او مېرمنې ته ويل چي موږ ته دهجرت کولو امرشوی دی ځينو به په ورين تندي دغه خبره ومنله او خوند به يې ورکړ او ځيني هغه ووچي مېرمن اولادونو به يې پسي خانونه ټينګ کړل ورته ويل به يې موږ چاته پرېږدي موږ به تباه شونو دده به هم زړه نرى او ورسره پاته به شوهجرت به يې پرېښود چي دغه آيت شريف نازل او دوی يې وترټل: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾ دآيت ترپايه[1]

## لغتونه:

**(اولیآء) دولي جمع اوکومکي مرستندوی ته وايي هغه چي دبل چاچاري سمبالوي او ورسره مرسته کوي (عشيرتکم) عشيرة ټولی ته وايي هغه چي انسان هغه ته پناه وروړي. واحدي وايي چي: عشيرة دسړي نژدې خپلوانو ته وايي اوله عشرة څخه اخيستل شوي چي دملګرتياپه معناده اودخپلوانوترمينځ هم دغه عشرت تل موجودوي (کسادها) ناچلېدل دهغه چي نه خرڅېږي، وروست وي (عيلة) فقراوناداري ويل کېږي: ( عال الرجل يعيل) کله چي ناوسه اوفقيرشي.(الجزية) هغه مال چي له ذميانوڅخه اخيستل کېږي ځکه يې جزيه بولي چي دوی نوموړی مال دهغه امن په جزاکي مسلمانانوته سپاري چي هغوی دوی ته ورکړی وي (يضاهئون) مشابهت او مماثلت ته وايي (يؤفكون) ګرزي له حق څخه (افک ) اصلا اوښتلوته وايي اودلته له حق څخه اوښتونکي مراد دي**

## تفسير:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾ اې هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (اې مؤمنانو) مه نيسئ تاسي پلرونه خپل او ورونه خپل دوستان ! دايمان په لفظ سره نداد تکريم لپاره ده اودوی دهمتونو تحريک اوخوخول کوي ترڅو ژرترژره دالله جل جلاله د اوامرو امتثال وکړي. ابن مسعود رضی الله عنه وايي: کله چي دي له الله څخه واورېدل ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ نوغوږ ورته کښېږده ځکه دخير امر درته کوي اويادي له شرڅخه ژغوري يعني تاسو خپل کفارپلرونه او ورونه مرستندوی مه نيسئ چي دوستي ورسره پالئ اومينه ورسره کوئ ﴿ إِنِ ٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْكُفْرَ عَلَى ٱلْإِيمَـٰنِ ﴾ (که دوی کفرترايمان محبوب ګڼله ) او اصرار يې ورباندي کاوو ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ ﴾ اوهرچاچي دوستي وکړه له (دغو کفارو ) سره له تاسي نه نو دغه کسان هم دوی ظالمان دي. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دی هم دهغوپه شان مشرک دی[2] ځکه څوک چي په شرک راضي وی هغه مشرک دی[3] ﴿ قُلْ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ

---

[1] اسباب النزول للواحدي ص: ۱۴۰
[2] البحر المحيط ۵/ ۴
[3] القرطبي/ ۹۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَإِخۡوَٰنُكُمۡ وَأَزۡوَٰجُكُمۡ ﴾ وروايه (اې محمده ! عذر ويونكو ته دهجرت له نه كولو څخه) كه وي پلرونه ستاسي اوزامن ستاسي او ورونه ستاسي اوښځي ستاسي ﴿ وَعَشِيرَتُكُمۡ ﴾ اوخپلوان ستاسي هغه چي تاسو دمرستي ترلاسه كولولپاره دوى رابولئ ﴿ وَأَمۡوَٰلٌ ٱقۡتَرَفۡتُمُوهَا ﴾ اوهغه مالونه چي تاسوګټلي دي ﴿ وَتِجَٰرَةٞ تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا ﴾ اوهغه سوداګري چي تاسو يې په ناچلېدلو وېرېږئ ﴿ وَمَسَٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَآ ﴾ اوهغه دهستوګنځي ځايونه چي تاسويې خوښوئ (د اوسېدلولپاره) ﴿ أَحَبَّ إِلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ ډېرمحبوب تاسي ته له الله اورسول دالله نه ؛ دغه د (كان) خواب دى يعني كه دغه شيان تاسي ته ترهجرت لورى د الله اورسول ته غوره اوخورا محبوب وي ﴿ وَجِهَادٖ فِي سَبِيلِهِۦ ﴾ اوله جهاده په لاردالله كي (ددين دنصرت لپاره) ﴿ فَتَرَبَّصُواْ ﴾ نو انتظار كوئ تاسي (ترهغو) دغه شديد وعيداوتهديد دى ﴿ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ بِأَمۡرِهِۦ ﴾ چي راولېږي راولي الله امر(حكم دعذاب) خپل سمدستي ياوروسته ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ او الله نه ښيي سمه صافه لاره فاسقانو ته يعني هغه چي دالله له طاعت څخه وتلي دنېكمرغى. لاره الله نه ورښيي دهغه چالپاره هدايت نشته چي خپل مال ، اهل او هيواد يې په هجرت اوجهاد غوره كړى وي بيا الله تعالى په دښمنانو دبرياليتوب يادونه كوي ﴿ لَقَدۡ نَصَرَكُمُ ٱللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٖ ﴾ خامخاپه تحقيق مدد كړى دى له تاسي سره الله په ډېروځايونوكي (اوډېروجنګونوكي) ﴿ وَيَوۡمَ حُنَيۡنٍ ﴾ او(خصوصا) دحنين په ورځ كي) وروسته له هغه چي تاسي په خپل ډېر والي غره كړئ اوفخر موكاوو مغلوب شوى نوالله بېرته نصرت دركړ ﴿ إِذۡ أَعۡجَبَتۡكُمۡ كَثۡرَتُكُمۡ فَلَمۡ تُغۡنِ عَنكُمۡ شَيۡـٔٗا ﴾ كله چي په تعجب كي واچولى ډېروالي ستاسي نودفع نه كړ(ډېروالي) له تاسي څني هيڅ شى (له حملې ددښمن نه) يعني كله چي تاسي خپل ډېروالي متعجب كړى اوومو ويل: چي نن به له سره موږ دلږوالي په سبب مغلوب نه شوتاسو دولس زره تنه او دښمن موڅلورزره كسه وو خوستاسي دغه ډېروالي له تاسوڅخه هيڅ شى دفع نكړاى شو ﴿ وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ﴾ اوځمكه درباندي (له سختي وېرې) تنګه شوه سره دهغې له ارتوالي ﴿ ثُمَّ وَلَّيۡتُم مُّدۡبِرِينَ ﴾ بياشاكړه تاسي (دښمن ته) حال داچي شاګرځونكي وى (په تېښته) . طبري وايي : الله جل جلاله دوى ته اخباركوي چي نصرت دالله په لاس اووده له لورى ده اوهغه دافرادو په ډېروالي نه دى اوالله چي وغواړي لږتولګى په سترتولګي غالبوي اوله لږو لښكرو سره مرسته كوي چي ډېري لښكري ماتي اوكوندي كېږشي براء بن عازب رضى الله عنه ته وويل شوآياتاسوله رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دحنين په ورځ وتښتېدلى ؟ براء رضى الله ورته وويل : زه شاهدي وايم چي رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دى تښتېدلى اوبېشكه چي ماهغه وليد په سپين قچرسپور او ابوسفيان يې ملوني نيولي روان كړى وو كله چي مشركانوهغه را ايساراوپټ كړ نوراښكته شو اوويل يې : (أن النبي لاكذب * أناابن عبد المطلب) يعني بېشكه زه په رښتياسره رسول اودعبدالمطلب له اولادې څخه يم اوبيايې يوموټى خاوري را واخيستلې اودمشركانومخونوته يې ور وشيندلې اوويل يې (شاهت الوجوه) نودوى وتښتېدل اوهيڅوك پاتي نشول چي په

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



سترګوکي يې هغه شکې اوخاري لوېدلي نه وي اوهغه به يې نه موندلې (١) براء بن عازب رضى الله عنه وايې: چي کله به جنګ تود شونوموږبه له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره نږدې درېدلو زموږترټولو زړه ورهغه څوک ووچي رسول الله سره به برابرودرېدو ﴿ ثُمَّ أَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَعَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ بيا راولېږه الله تسکين خپل پررسول او پرمؤمنانو) يعني الله وروسته له هزيمت څخه مؤمنانو ته امن او اطمينان راولېږه چي نفوس يې تسکين ومومي. ابوالسعودوايې: معناداچي الله دوى ته رحمت رانازل کړچي زړونه يې ورباندي تسکين او اطمينان پيدا کړي (٢) ﴿ وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمۡ تَرَوۡهَا ﴾ اوراويې لېږلي (الله) لښکري چي نه وې ليدلي تاسي دالښکري. ابن عباس رضى الله عنه وايې: چي دغه ملائکي اوپرښتي وې ﴿ وَعَذَّبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ اوپه عذاب يې کړل هغه کسان چي کافران شوي وو په قتل، بنديتوب اودښځو او زوذات په بندي نيولوسره ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ او همدا (تعذيب) دکافرانوجزاده. ﴿ ثُمَّ يَتُوبُ ٱللَّهُ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَآءُۗ ﴾ (اوبيارجوع وکړى الله (د توبې په قبول) پس له دې پر هغه چاچي اراده وفرمايې) يعني الله يې توبه قبوله اودااسلام راوړلو توفيق ورپه برخه کړى اوپدې کي دهوازن قبيلې اسلام راوړلوته اشاره ده ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ اوالله دېربښونکی د (خطيئاتو) ښه رحم والادى يعني دالله مغفرت لوى اورحمت يې پراخ دى

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡمُشۡرِكُونَ نَجَسٞ ﴾ اې هغوکسانو چي ايمان يې راوړى دى (اې مؤمنانو) بېشکه هم داخبره ده چي مشرکان پليت دي) څکه دوى باطني خبث لري. ابن عباس رضى الله عنه وايې چي: مشرکان نجس العين اولکه سپيان اوخنزيران غوندي دي او حسن رحمه الله وايې: څوک چي له مشرک سره لاس ورکړي (مصافحه وکړي) نواودس دي له سره تازه کړي (٣) او جمهورعلماء داسي رايه لري چي دغه پليتي يومشابهت دى يعني دوى دنجس په منزلت اويانجس دي څکه چي باطن يې پليت دى اوعقيده نلري، په الله جل جلاله کافران دي نودوى هسي وګرځېدل لکه چي په خپله دوى نجس وي اومثال يې داسي دى لکه چي څوک ووايې: علي زمرى دى يعني لکه زمرى غوندي دى ﴿ فَلَا يَقۡرَبُواْ ٱلۡمَسۡجِدَ ٱلۡحَرَامَ بَعۡدَ عَامِهِمۡ هَٰذَاۚ ﴾ نونه دي نږدې کېږي دوى مسجدحرام ته وروسته ددوى له دغه کاله (چي دهجرت نهم کال دى) دلته يې مسجد حرام ذکر کړاومراد څني ټول حرم دى. ابوالسعودوايې چي: مقصد د دوى منع کول له حج اوعمرې څخه دى چي دوى دي له دغه کاله وروسته چي دهجرت نهم کال وو حج او عمرې ته نه راځي اوددغه قول تائيد په حديث کي راغلى چي: اوحج دي نکوي له سږکاله وروسته مشرکان (٤) وداهغه کال وو چي سورة برائت پکي رانازل شو اوحضرت علي کرم الله وجهه دغه خبرتيا دحج په موسم کي ورکړه ﴿ وَإِنۡ خِفۡتُمۡ عَيۡلَةٗ فَسَوۡفَ يُغۡنِيكُمُ ٱللَّهُ مِن

---

(١) الطبري ١٠ / ١٠٣

(٢) ابو السعود ٢ / ٣٢٣

(٣) القرطبي ٨ / ١٠٣ اوداهغه قول دى چي له ابن عباس رضى الله عنهما وحسن بصري څخه رانقل شوى اوامام فخررازي هم ترجيح ورکړي اوهمداراز دالوسي نظراوآيت شريف له ظاهرڅخه هم دغسي معلومېږي خوجمهورعلماء بيا وايې چي دغه دتشبيه په دول دى

(٤) ابو السعود ٢ / ٣٢٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ فَضۡلِهِۦٓ ﴾ ( اوکه وېرېږئ تاسي له فقره نوژربه الله تاسي غنيان کړي له خپله فضله څخه ) يعني اې مؤمنانو که تاسي ددوی په منع کولو له حج اوحرم څخه پدې وېرېږئ چي فقر به درته ورسېږي نو سبحانه وتعالی به تاسي له بلي لاري اوپخپل فضل اوعطاء غنيان کړي . مفسرين وايي کله چي مسلمانان له دې څخه منع شول چي مشرکانوته دحرم دننوتلو اجازه ورکړي چي هغوی به ددوی لپاره په موسم کي خوراکونه اونورتجارتي اموال واردول نو ددوی په زړونوکي شيطان خفګان ورواچاوو چي تاسوبه اوس څه خورئ ؟ اوځرنګه به ژوند تېروئ چي روزي اواسباب يې درڅخه قطع شول نو الله جل جلاله دوی ته له فقر او نېستي څخه ډاډ ورکړ اوبېغمه يې کړل چي غنيمتونه اوولجي يې ورکړې ﴿ إِن شَآءَ ﴾ که اراده وفرمايي (د غنا ستاسو) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ بېشکه الله ښه عالم ښه حکمت والادی . ابن عباس وايي چي: ښه عالم دی پدې چي ستاسو مصلحت په څه کي دی اود حکمت خاوندی په هغه حکم کي چي د مشرکانو په هکله يې صادرکړی ؛ کله چي د مشرکانو د حکم يادونه وشوه ورپسې د اهل کتابو حکم داسي بيانوي: ﴿ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ (وجنګېږئ تاسي له هغو کسانو سره چي نه راوړي ايمان پر الله اوپه ورځي آخري باندي ) يعني له هغو کسانو سره وجنګېږئ چي په الله اوآخرت باندي سم صحيح ايمان نه راوړي که څه هم دوی خودايمان ګمان کوي څکه چي يهودان وايي : عزير دالله زوی دی (العياذبالله) اونصاری بياپه تثليث عقيده لري اودمسيح په الوهيت ايمان لري ﴿ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ﴾ ( اوحرام نه ګڼي هغه څه چي الله اوپيغمبر حرام کړي وي) يعني دوی هغه چي الله پخپل کتاب اورسول په حديثونوکي حرام بللي حرام نه ګڼي بلکه هغه څه ته عقيده لري چي ددوی احبار اورهبان يې ورته شريعت بولي څکه نو دوی شراب اوخنزيراو داسي نورشيان حلال بولي ﴿ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ ٱلۡحَقِّ ﴾ اونه قبلوي دوی حق دين (چي اسلام دی ) ﴿ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ (دغه) له هغو کسانو څخه دی چي کتاب ورکول شويدی يعني دغه مذکورين له هغو منحرفينو يهودانو اونصرانيانو څخه دي چي تورات او انجيل ورته رانازل شويدی ﴿ حَتَّىٰ يُعۡطُواْ ٱلۡجِزۡيَةَ عَن يَدٖ وَهُمۡ صَٰغِرُونَ ﴾ (جنګ ورسره کوئ) ترهغه پوري چي دوی جزيه ورکړی له (خپله ) لاسه حال داچي دوی ذليل وي (مستسلمين اوغاړه اېښودونکي وي) ﴿ وَهُمۡ صَٰغِرُونَ ﴾ يعني دوی داسلام په زوراوقوت کي حقيراو مقهور وي بيا الله جل جلاله ددوی دقباځحو يوه بېلګه راوړي چي: ﴿ وَقَالَتِ ٱلۡيَهُودُ عُزَيۡرٌ ٱبۡنُ ٱللَّهِ ﴾ اووايي يهودان چي عزيردالله زوی دی يعني دغه ملعونان الله ته دولدنسبت کوي اوالله خو واحد ، فرد ، اوصمدذات دی . بيضاوي وايي: دوی چي دغه خبره کوله دليل يې داچي دبخت نصر څخه وروسته په دوی کي داسي څوک پاتي نشو چي تورات يې په يادوي اوکله چي الله جل جلاله عزير عليه السلام وروسته له سلوکالو راژوندی کړ اودوی ته يې تورات له ياده ولوستل نودوی تعجب وکړ اوويې ويل همدا دالله زوی دی اوله دې پرته بل څه نشي کېدای [١] ﴿ وَقَالَتِ ٱلنَّصَٰرَى ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ ٱللَّهِۖ ﴾ اووايي نصرانيان چي مسيح دالله زوی دی څکه چي بې پلاره زېږېدلی اودا امکان نلري چي څوک دي بې پلاره وزېږي نواکه پکه به دغه دالله زوی وي الله ددوی په ردکي فرمايي:

---

[١] البيضاوي ص:٢٣٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ذَٰلِكَ قَوْلُهُم بِأَفْوَٰهِهِمْ﴾ دغه ددوى چتي ويناده په خولوخپلوسره يعني دغه يوازي ددوى دخولې خبره ده چي هيڅ دليل اوبرهان يې هم نشته په التسهيل كي وايې چي دغه دوې معناوي افاده كوي يويې د دوى الزام پدې خبره اوتاكيد پدې كي اودوهم داچي دوى هيڅ دليل نلري بلكه يوازي دعوى ده لكه چي ته يوچاته ووايې داستاپه ژبه خبره ده[1] ﴿يُضَٰهِـُٔونَ قَوْلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَبْلُ﴾ (مشابه ده (خبره ددوى) له خبرو دهغو كسانوسره چي كافران شوي دي) يعني ددوى دغه بده خبره دمشركانوله خبروسره ورته والى لري چي ويل يې: پرښتې دالله لوڼې دي (تشابهت قلوبهم) ﴿قَٰتَلَهُمُ ٱللَّهُ ۚ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ﴾ الله دي دوى هلاك كړي څرنګه ګرځول شوي دي؟ (له سمي لارې څخه) وروسته له دې چي دلائل ورته راغلل بياهم دوى دالله لپاره دزوى نسبت كوي. امام رازي وايې چي صيغه دتعجب لپاره ده اودعربوله دود اودستورسره سم خلګوته راجع ده اوالله جل جلاله خپل نبي ته تعجب وركوي چي څرنګه دغوكسانوحق پرې ايښى اوپه باطل باندي ټينګاركوي

﴿ٱتَّخَذُوٓا۟ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ نيولي دي دوى عالمان اوعابدان خپل (خدايان) بې له الله يعني دغويهودانوخپل عالمان اونصرانيانوخپل عابدان دشيانوپه تحليل اوتحريم كي خدايان بللي دي لكه چي ددوى معبودان وي معنايې داچي داسې اطاعت اومننه يې كوي لكه چي څوك دالله اطاعت كوي كه څه هم عبادت يې نه كوي اودغه هغه مأثور تفسيرله رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه راغلى. عدي بن حاتم وايې: چي زه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلم اوپه غاړه كي مي دزروصليب غړوندى وو رسول الله راته وويل: اې عدي له ځانه دغه بت وغورځوه. عدي وايې چي ماواورېدل چي دبرائت سورت داآيت يې لوستل ﴿ٱتَّخَذُوٓا۟ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ نوما ورته وويل: اې دالله رسوله! دوى خويې عبادت نه كاوو! عليه السلام راته وويل: چي آيا نه وو چي حرامول به يې هغه څه چي الله حلال كړي وو اوحلالول به يې هغه څه چي الله حرام كړي وو اودوى به حلال پېژندل ماورته وويل هو نوراته يې وويل: همدغه دهغوى عبادت دى[2] ﴿وَٱلْمَسِيحَ ٱبْنَ مَرْيَمَ﴾ اومسيح دمريمې زوى (نصارا رب او معبودګڼي ﴿وَمَآ أُمِرُوٓا۟ إِلَّا لِيَعْبُدُوٓا۟ إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾ (حال دا چي امرنه دى شوى دوى ته مګر ددې چي ديوه معبود عبادت وكړي، دبل څه حكم نه دى شوى ﴿لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ چي نشته هيڅ برحق معبود مګرخوهم دى دى پاكي الله لره ده له هغه شي څخه چي دوى يې شريكوي (له الله سره)

﴿يُرِيدُونَ أَن يُطْفِـُٔوا۟ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ﴾ اراده لري (دوى) داچي مړكړي نوردالله (چي شريعت دى) په خولوخپلو) يعني دغه مشركين اواهل كتاب ددې اراده لري چي اسلامي رڼا اودمحمدي شريعت خلا پخپلوسپكو او حقيرو خولومړه كړي چي يوازي بحث، جدال اوافتراګاني كوي اوداهغه رڼاده چي الله دخپل مخلوق لپاره بل كړي اوخلولي ده لكه چي يوڅوك دلمر ورانګي يادسپوږمۍ رڼا دخولې په پوكولوباندي وژني ﴿وَيَأْبَى ٱللَّهُ إِلَّآ أَن يُتِمَّ نُورَهُۥ﴾ (اونه خوښوي الله مګرداچي پوره اوبشپړه كړي رڼا خوددې هډوامكان نشته

---

(١) التسهيل ٢/ ٧٤

(٢) الرازي ١٢/ ٣٦

(٣) الوسي ١٠/ ٨٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خپله ) يعني لوړه يې کړي اوشان يې پوره کړي ﴿ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ اګرکه بدګڼي (داکار) کافران ﴿ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ ﴾ الله هغه ذات دی چې لېږلی يې دی رسول خپل (محمدصلی الله عليه وسلم) په هدايت سره (چې بشپړدين اسلام دی) ﴿ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ ﴾ لپاره ددې چي غالب کړي دغه (دين ) پرنوروټولودينونوباندي ﴿ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ ﴾ اګر که بدګڼي داکارمشرکان ؛ ځواب يې محذوف اوهغه داچي غلبه دهغه ده.

## بلاغت:

١- ﴿ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ بِأَمۡرِهِۦ ﴾ دلته صيغه دامراوحقيقت يې وعيددی لکه داقول چي: ﴿ ٱعۡمَلُواْ مَا شِئۡتُمۡ ﴾ فصلت: ٤٠

٢ – پدې کلام کي چي الله فرمايي: ﴿ وَيَوۡمَ حُنَيۡنٍ ﴾ دلته عطف دخاص په عام راغلی چي پدې باندي اشعار ورکړي چي نصرت وروسته له نا اميدي اوخوښي وروسته له غمه راغله اودغه نوددې غزا دشأن لوړوالی ښيې.

٣ – کله چي فرمايي: ﴿ وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ﴾ ددوی هغه دمشکل اوناکامي حال يې دهغه چاله حال سره مشابه کړچي دومره خواشينی وي څمکه ورته تنګه ايسي اوپدې کي استعاره راغلي ده.

٤ - ﴿ إِنَّمَا ٱلۡمُشۡرِكُونَ نَجَسٌ ﴾ دلته صيغه دحصر دافادې لپاره اوبليغه تشبيه پکي راغلي اوپه اصل کي داچي دوی لکه نجس غوندي دي دتشبيه ادات حذف شوی اوددوی باطني اواعتقادي پليتي له نجس سره مشابه کړي ده اوهمداراز پکې دي چي: ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ يعني لکه خدايان غوندي په حکم منلو اودهغوی دتحريم اوتحليل په اطاعت کي دلته بيابليغه تشبيه ده.

٥ - ﴿ فَلَا يَقۡرَبُواْ ٱلۡمَسۡجِدَ ﴾ دلته له ننوتلو څخه په نژدې والي تعبيرشوی دی.

٦ – کله چي الله فرمايي: ﴿ أَن يُطۡفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ ﴾ دلته مرادله نورالله څخه داسلام نوردی څکه اسلام په خپلو ړانګو اوقاطعو دلائلوله روښنانه لمرسره مشابه شوی اودغه هم له باريکو استعاراتوڅخه يوه استعاره ده.

## لطيفه:

علامه قرطبي وايې چي دالله جل جلاله داقول چي ﴿ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمۡ وَإِخۡوَٰنَكُمۡ أَوۡلِيَآءَ ﴾ پدې دلالت کوي چي نژدې والی اوقرابت داديانو معتبردی نه دابدانو اوپدې کي يې دغه بيتونه ليکلي دي:

يقولون لي دارالاحبة قددنت * وأنت كئيب ان ذا لعجيب * فقلت وماتغني ديارقريبة * اذالم يكن بين القلوب قريب.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ماته یې ویل چې ددوستانو کورنژدې شو * نوته چې غمجن یې دغه عجیبه خبره ده !؟ ماورته ویل چې دکورونو نژدې والی گټه نلري * کله چې دزړونو په مېنځ کې نژدېوالی نه وي.

الله تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْأَحْبَارِ وَٱلرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلْبَٰطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۗ وَٱلَّذِينَ يَكْنِزُونَ ٱلذَّهَبَ وَٱلْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٤﴾ يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِى نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ ۖ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُواْ مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ ﴿٣٥﴾ إِنَّ عِدَّةَ ٱلشُّهُورِ عِندَ ٱللَّهِ ٱثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِى كِتَٰبِ ٱللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ مِنْهَآ أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ۚ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلْقَيِّمُ ۚ فَلَا تَظْلِمُواْ فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ ۚ وَقَٰتِلُواْ ٱلْمُشْرِكِينَ كَآفَّةً كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمْ كَآفَّةً ۚ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴿٣٦﴾ إِنَّمَا ٱلنَّسِىٓءُ زِيَادَةٌ فِى ٱلْكُفْرِ ۖ يُضَلُّ بِهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُحِلُّونَهُۥ عَامًا وَيُحَرِّمُونَهُۥ عَامًا لِّيُوَاطِـُٔواْ عِدَّةَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ فَيُحِلُّواْ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ ۚ زُيِّنَ لَهُمْ سُوٓءُ أَعْمَٰلِهِمْ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٣٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ٱنفِرُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱثَّاقَلْتُمْ إِلَى ٱلْأَرْضِ ۚ أَرَضِيتُم بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا مِنَ ٱلْءَاخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا فِى ٱلْءَاخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٣٨﴾ إِلَّا تَنفِرُواْ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْـًٔا ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ ٱللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ثَانِىَ ٱثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِى ٱلْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحْزَنْ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَنَا ۖ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُۥ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلسُّفْلَىٰ ۗ وَكَلِمَةُ ٱللَّهِ هِىَ ٱلْعُلْيَا ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٤٠﴾ ٱنفِرُواْ خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَٰهِدُواْ بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّٱتَّبَعُوكَ وَلَٰكِنۢ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ ٱلشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ لَوِ ٱسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴿٤٢﴾ عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَتَعْلَمَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴿٤٣﴾ لَا يَسْتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلْمُتَّقِينَ ﴿٤٤﴾ إِنَّمَا يَسْتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَٱرْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِى رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴿٤٥﴾ ﴾ التوبة: ۳۴ ـ ۴۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## مناسبت او تړاو:

کله چې الله دیهودانو او نصرانیانو د مشرانو او رئیسانو حال بیان کړچې تکبر او تجربې درلود دربوبیت دعوی یې کړې وه نو وروسته یې د لته دهغوی طمع حرص او دخلکو دمالونو دخوړلو حال بیان کړچې ددوی تحقیر وښيې او ناپوهي یې څرګنده کړي څکه دوی دین دځپلو هیلو او دنیاوي ارزوګانو لپاره په کارول او دغه نهایته سپک او ذلیل کاردی بیا الله ددوی او مشرکینو قبائح یادوي او دعمومي پاڅون بلنه کوي او دمنافقینو هغه له جهاد څخه دپاتې کېدلو موقف او دریز بیانوي.

## لغتونه:

(الاحبار) دیهودانو علماء ( الرهبان) دنصاراوو علماء عبد الله ابن مبارک رحمه الله وایي:

وهل افسد الدين الاالملوک * واحبار سوء ورهبانها[١]

یعني آیادین پرته له پاچهانو او چتي بېکاره رهبانیانو او عالمانو څخه بل چاهم خراب کړیدی ؟! بلکه نه یې دی خراب کړی او نوموړي کسان دین فاسدوي. (یکنزون) کنزجمع اوتړلو لوته وایي او په حدیث کې راځي (الا اخبرکم مایکنز المرء المرأة الصالحة) یعني زه ترتولو غوره څېزچې خلګ یې دځان لپاره خوندي کوي دروښیم ؟ هغه نېکه او صالحه مېرمن ده وروسته بیایې استعمال په خزانو کي راځي هغه چې سره او سپین زر پکي خښ اوپټ وي. طبري وایي: کنز هرشي ته چې یو له بله اوډلي او مجموع وي هغه که سربېره په ځمکه وي او که دځمکي په تل کي ویل کېږي[٢] (تکوی) کئ داغ ته ویل کېږي او هغه دکوم فلزي څېز چې خورا ګرم وي په کوم غړي اېښودلو ته چې پتوکی وسوزي ویل کېږي او په متلونو کي راځي چې: (آخر الدواء الکی) یعني وروستی علاج داغ اېښودل دي (النسئ) تأخیرته وایي په حدیث شریف کي راځي ( وينساله فى أثره ) یعني په اجل کي یې تأخیر راځي. زمخشري وایي چې (نسئ) دیوې میاشتي حرمت تربلې پورې ته وایي (لیواطئوا) مواطاة موافقت ته وایي ویل کېږي چې (تواطأ القوم ) کله چې دیوپټ کارپه کولو کي موافقې ته ورسېږي (انفروا) نفرپه بېړه سره وتلوته وایي لکه چې په آیت کي راځي: ( ولواعلى ادبارهم نفورا) (اثاقلتم ) اصل یې (تثاقلتم) وو یعني درانه شوی تاسي او بېړه مونه کوله (عرضا) هغه دنیوي منافع چې انسان ته وړاندې کېږي او دوام نه مومي او په حدیث شریف کي راځي: ( الدنیاعرض حاضر يأكل منه البر والفاجر ) یعني ددنیامنافع حاضردي او هرصالح او طالح سړی یې څني خوري (الشقة) اوږده اولیرې مسافه ( واټن ) چې په مشقت سړی وررسېږي. جوهري وایي چې د(مشقة) معنالیرې سفردی[٣] ګواکي له مشقت څخه اخیستل شوی دی.

## دنزول سبب:

کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له طائف او دحنین له غزا څخه راستون شو خلګو ته یې دروميانو سره دغزاکولو امروکړاو دا په سخت وخت کي وو چې دکاختي کلونه ، موسم خورا ګرمي او دخلګو اړتیاوي زښته

---

(١) القرطبي ٨/ ١٢٠
(٢) الطبري ١/ ١٣١
(٣) القرطبي ٨/ ١٥٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



زياتي وې خرماوي پخې وې په خلګوباندي درومیانوغزاډېره سخته وه غوښتل يې پخپلومالونو تولولو او کورونوکي سيوري ته و اوسي جګړې ته وتل ورته سخت ښکاريدل چي الله دغه آيتونه نازل کړل: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَا لَكُمۡ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ٱنفِرُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱثَّاقَلۡتُمۡ إِلَى ٱلۡأَرۡضِ ﴾ دآيت ترپايه[۱]

تفسير:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلۡأَحۡبَارِ وَٱلرُّهۡبَانِ لَيَأۡكُلُونَ أَمۡوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡبَـٰطِلِ ﴾ اې هغوكسانوچي ايمان يې راوړی دی ( اې مؤمنانو ) بېشكه ډېرله عالمانو د(يهودو ) اوعابدانو د(نصرانيانو ) خامخاخوري دوی مالونه دخلګوپه باطل سره ( حرام رشوت ) ﴿ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ اومنع كوي (خلګ ) دالله له لارې (چي په اسلام کي داخل شي ) ابن كثيروايي چي په آيت شريف له علماء السوء اوګمراه عبادت كارانوڅخه تحذير دی ابن عيينيه وايي: كه زموږعلماء فاسدشي نولكه ديهودانواحبار اوكه زموږ عبادت كاران فاسدشي لكه دنصرانيانورهبان غوندي دي[۲] ﴿ وَٱلَّذِينَ يَكۡنِزُونَ ٱلذَّهَبَ وَٱلۡفِضَّةَ ﴾ (اوهغه كسان چي خزانه كوي سره زراوسپين زر ) يعني مالونه اوثروتونه جمع كوي ﴿ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ ( اونه (يې ) لګوي په لاره دالله كي ) يعني زكات يې نه باسي دخير ښېګني په كارونو كي يې نه لګوي. ابن عمررضى الله عنه وايي: كنز ترهغومال ته وايې چي زكات يې نه وي وركړی اوكله چي يې زكات ورځني وركړي بياكنزنه بلل كېږي ﴿ فَبَشِّرۡهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ (نوزېری وركړه دوی ته په عذاب دردناك سره ) دغه زېری وركول تهكم (استهزاء) ده چي دوی ته په دوزخ كي ددردناك عذاب زېری واوروه. زمخشري وايې چي بېشكه خبره همداده چي ديهودو نصاراوو اودغه (كانزين ) يې سره نژدې راوړل چي پردې دلالت وكړي چي څوك په ناحقه مالونه خوري او څوك چي دخپل مال زكات نه وركوي په عذاب كي يوډول مستحق دي اودا تغليظ هم دی[۳] ﴿ يَوۡمَ يُحۡمَىٰ عَلَيۡهَا فِى نَارِ جَهَنَّمَ ﴾ (په هغې ورځي چي سختي سرې به كړی شي دغه خزانې ددوزخ په اوركي ) يعني په غرغندو د دوزخ په اوركي به داسې سرې شي چي داغونه به وربانداي لګول كېږي ﴿ فَتُكۡوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمۡ وَجُنُوبُهُمۡ وَظُهُورُهُمۡ ﴾ نوداغلی به شي په هغه سره تندي (وچولي) ددوی او اړخونه ددوی اوشاګاني ددوی. ابن مسعود رضى الله عنه وايې: قسم په هغه ذات چي له هغه څخه بل برحق معبود نشته داسي نه كېږي چي يو بنده دي پخپل كنز داغول كېږي او دينار په دينار دپاسه يادرهم په بل درهم دپاسه به داغونه وربانداي ايږدي بلكه څرمن به يې دومره پراخه شي چي هردينار او درهم به جلاجلا وربانداي ايښودل كېږي[۴] اود نوموړوځايونو ځانګړتيا په داغونوسره ددې لپاره دی چي هربخيل كله چي فقيرمخامخ راتلونكی ويني نوتندی (وچولی)

---

([۱]) اسباب النزول للواحدي
([۲]) القرطبي ۸ / ۱۵۴
([۳]) الكشاف ۲ / ۲۲۲
([۴]) الطبري ۱۰ / ۱۲۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تر بو کړي کله چي ورته راشي اړخ ور وګرځوي او چي څه ځني وغواړي نو شا وروګرځوي. قرطبي وايي: چي داغ په مخ کي ډېر مشهور او بد دی او په اړخ کي بیا دردونکی او همدا راز په شا باندي سوځېدونکی دی نو ځکه له ټولو غړو څخه دغه اندامونه ځانګړي یاد شول (۱) ﴿ هَٰذَا مَا كَنَزۡتُمۡ لِأَنفُسِكُمۡ فَذُوقُواْ مَا كُنتُمۡ تَكۡنِزُونَ ﴾ (او ورته به وویل شي ) دا هغه شی دی چي خزانه کړي وو تاسي لپاره د ځانونو خپلو نو وڅکئ تاسي (خوند د سزا) د هغه مال چي وی تاسي خزانه کاوو به مو ) یعني دغه به د تقریع او تبکیت په ډول ورته وویل شي. په صحیح مسلم کي راځي: چي هر څوک چي د خپل مال زکات نه ورکوي هغه ته به د قیامت په ورځ داور تختې جوړې شي او اړخ، تندی او شا به یې ورباندي تر هغو داغل کېږي تر څو چي الله د بندګانو ترمینځ فیصله کوي هغه ورځ چي پنځوس زره کاله به یې اندازه وي ( او ) بیا به خپله لاره ور وښودله شي یا جنت ته او یا هم اور ته ﴿ إِنَّ عِدَّةَ ٱلشُّهُورِ عِندَ ٱللَّهِ ٱثۡنَا عَشَرَ شَهۡرًا ﴾ (بېشکه چي شمار د میاشتو په نزد د الله کي دوولس میاشتي دی) یعني د میاشتو معتبر شمېر د الله په نزد په شریعت او حکم کي دوولس دی او دا هم د سپوږمۍ په منازلو کي ځکه شرعي احکام په سپوږمېزو میاشتو پوري اړه لري ﴿ فِي كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ په لوح محفوظ کي ﴿ يَوۡمَ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ ﴾ هغه ورځ چي پیدا کړي یې دي آسمانونه او ځمکه ابن عباس رضی الله عنه وايي: چي الله په هغه امام کتاب کي چي په نزد دده دي په هغه ورځ چي آسمانونه او ځمکه یې پنځولي لیکلي دي ﴿ مِنۡهَآ أَرۡبَعَةٌ حُرُمٞ ﴾ د هغو (له جملې ) ځني څلور میاشتي محرمي دي ؛ چي ذی القعدة، ذیحجة، محرم او رجب دي او محرمي ځکه وبلل شوې چي محترمي او د عظمت خاوندي دي ثواب پکي زیاتېږي او قتال پکي حرام دی ﴿ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلۡقَيِّمُ ﴾ دغه سم دین دی یعني مستقیم شریعت دی ﴿ فَلَا تَظۡلِمُواْ فِيهِنَّ أَنفُسَكُمۡ ﴾ نو ظلم مه کوئ په دغو کي په ځانونو خپلو باندي یعني د دغو محرمو میاشتو د حرمت هتک مه کوئ او ګناهونه یاد محرماتو ارتکاب پرېږدئ ﴿ وَقَٰتِلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ كَآفَّةٗ كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمۡ كَآفَّةٗ ﴾ او جنګونه کوئ (ې مؤمنانو) له مشرکانو سره ټول لکه چي دوی له تاسي سره جنګونه کوي ټول ﴿ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ او پوه شئ بېشکه الله له پرهېزګارانو سره دی ( په نصرت او تائید سره ) او پدې کي د متقیانو لپاره زېری او ضمانت نغښتی دی ﴿ إِنَّمَا ٱلنَّسِيٓءُ زِيَادَةٞ فِي ٱلۡكُفۡرِ ﴾ بېشکه دغه تأخیر (د حرمت د یوې میاشتي بلي میاشتي ته ) په کفر کي ډېر والی دی (ځکه دغه تحریم د حلالو او تحلیل د حرامو دی دغه په کفر د پاسه بل کفر دی مفسرین وايي: عرب د جنګونو او تاړاکونو اهل وو او پردوی باندي په دغو محرمو میاشتو کي قتال حرام وو نو کله چي به حرامه میاشت په دوی را دبره شوه او دوی به په جګړه اخته ول پر ښودلای یې نشوای نو به یې د هغې پرځای بله میاشت حرامه وټاکله او دغه به یې د جګړې لپاره حلاله اعلان کړه لکه چي دوی به د میاشتو حرمت له یوې څخه بلي ته وړېږي کاوو ډېر خله به یې محرم حلال ګڼلی او صفر المظفر به یې حرامه کړي وه تر څو په کال کي څلور محرمي میاشتي پیدا کړي ﴿ يُضَلُّ بِهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ چي ګمراه کاوه شي پدې (عمل ) سره هغه کسان چي کافران شویدي (په ضلالت سربېره به بل ضلالت ور کاوه شي ) ﴿ يُحِلُّونَهُۥ عَامٗا وَيُحَرِّمُونَهُۥ عَامٗا ﴾ حلالوي دوی دغه

(۱) القرطبي ۸ / ۱۲۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(میاشت حرامه) یو کال (پکې جنگ کوي) اوحراموي دوی (پرېږدي په حرمت سره) دغه (حرامه میاشت بل کال

﴿ لِّيُوَاطِـُٔواْ عِدَّةَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ ﴾ لپاره ددې چې پوره کړي دوی شمېر دهغو میاشتو چې الله حرامې کړي دي

﴿ فَيُحِلُّواْ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُۚ ﴾ نوحلالوي (په زعم خپل سره) هغه میاشتې چې الله حرامې کړي دي. مجاهد وایي

چې: دبني کنانة له قوم څخه یوتن وو هرکال به دحج موسم ته په خره سپورراتو اوداسې اعلان به یې وکړ:

ایها الناس اني لاأعاب وأجاب ولامرد لما أقول: اې خلکو زما عیب نه کېدل کېږي اونه څوک راسره خواب ویلای شي

نه زما په خبره کې تردېدشته یعني زما خبره بدلېدونکې نه ده موږ دمحرم میاشت حرامه کړي اوصفر المظفر مو

وروسته کړي بیابه راتلونکي کال راغی اعلان به یې وکړ چې موږ صفر میاشت حرام کړی اومحرم مو وروسته

کړي نودغه دالله جل جلاله قول دی چې فرمایي: ﴿ لِّيُوَاطِـُٔواْ عِدَّةَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ ﴾ [1] ﴿ زُيِّنَ لَهُمۡ سُوٓءُ

أَعۡمَٰلِهِمۡۗ ﴾ (ښایسته کړی شویدي دوی ته ناکاره عملونه ددوی) یعني شیطان دوی ته ددوی بد اعمال ښایسته

کړي چې دوی یې ښه گڼي ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ اوالله نه ښیي سمه صافه لار (د نېکمرغی)

دکافرانو قوم ته ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَا لَكُمۡ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ٱنفِرُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱثَّاقَلۡتُمۡ إِلَى ٱلۡأَرۡضِۚ ﴾

اې هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (اې مؤمنانو) څه باعث دی په تاسې کله چې وویل شي تاسو ته چې ووزئ

په لاره دالله کې (غزاته) درانه (اومائل کېږئ) ځمکې ته استفهام دتقریع اوتوبیخ لپاره دی اودغه د جهاد په

پرېښودلو اوداراز دهغه چالپاره عتاب دی څوک چې دتبوک له غزا څخه پاتې شوی وو معنایې داده اې مؤمنانو

څه سبب دی کله چې درته وویل شي جهاد ته ووزئ نو تاسې درانه کوئ درانه شئ دنیا ته میلان کوئ او شهوت مو په

مخه واخلي دسفر ربړونه اوتکالیف نه خوښوئ؟! ﴿ أَرَضِيتُم بِٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِۚ ﴾ آیا راضي

شوي یې تاسې پدې دنیوي ژوند له (نعمتونو) دآخرت نه یعني د فاني دنیامتاع مود باقي دنیاله نعمتونو څخه

غوره کړې دی؟ ﴿ فَمَا مَتَٰعُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا فِي ٱلۡأٓخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴾ اونه دی نفع اخیستل د دې دنیوي

ژوند په (مقابل دنعمتونو) دآخرت کې مگرلږ (حقیر) دی اوبیایې د جهاد په پرېښودلو ورته وعید واورول چې:

﴿ إِلَّا تَنفِرُواْ يُعَذِّبۡكُمۡ عَذَابًا أَلِيمٗا ﴾ که ونه وزئ تاسې (غزاته اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره

ولاړنشی) نوپه دردناک عذاب سره به الله تاسې معذب کړي) چې په دنیاکې به دښمن درباندې غالب اوپه آخرت

کې به سوځونکی اوردرکړي. ابن عباس رضی الله عنه وایي چې: دنیوي عذاب دغه دباران نه اورېدل پردوی دی

﴿ وَيَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَيۡرَكُمۡ ﴾ اوبدل به راولي (بل) قوم چې غیرله تاسې دی یعني ترتاسوبه بهتراوغوره وي او

درسول الله خبره به ښه اوري اومني ﴿ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيۡـٔٗاۗ ﴾ (اونه به رسوئ تاسې ضرر دغه الله (یارسول الله)

ته دهیڅ شي یعني تاسوبه په دغه له جهاد څخه درونډوالي باندې ضرر ونه رسوئ، الله پاک له عالم څخه غني

اوبې پروادی ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴾ (اوالله په هرشي (چې اراده یې وفرمایي) ښه قادردی) چې

له دې څخه په دښمنانو باندې دبرې موندل پرته له تاسو دی. امام رازي وایي چې پدې کې دسخت زجر تنبیه ده چې

---

[1] الطبري ۱۳۴/۱۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله قادردی عجز وربانديي نه راځي اوپه کوم عذاب چي داخته کولووعده ورکړي هغسي کوي(١) ﴿ إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدۡ نَصَرَهُ ٱللَّهُ ﴾ که تاسي مرسته ونکړئ له دغه (رسول الله صلى الله عليه وسلم ) سره نو په تحقيق مرسته فرمايلي ده الله دهغه (رسول الله ) سره دشرط ځواب محذوف اوهغه داچي که تاسو ورسره مرسته ونکړئ نوژردی چي الله ورسره مرسته وکړي اوپدې باندي دغه توري اوکلماتي چي فرمايي: ﴿ فَقَدۡ نَصَرَهُ ٱللَّهُ ﴾ دلالت کوي يعني که تاسو ورسره مرسته ونکړئ ژردی چي هغه الله تعالی بې مرسته وکړي کوم چي هغه وخت يې مرسته وکړه چي دی دوهم ددوو وو نه ورسره انصاراونه هم څوک اعوان وو ﴿ إِذۡ أَخۡرَجَهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ کله چي راويوست دی له مکې نه هغو کسانوچي کافران شوي وو يعني له مکې نه مديني منورې ته په هجرت اړکړای شو دايستلونسبت يې خکه کفاروته وکړچي هغوی دی دغه دهيواد پرېښودلوته اړکړ اوددهد وژلونو توطئې يې کولې ﴿ ثَانِيَ ٱثۡنَيۡنِ ﴾ (حال داچي دی دوهم ددوو وو ) يعني دريم ورسره څوک نه وو يوازي محمدصلى الله عليه و سلم اوابوبکر صديق رضى الله عنه وو ﴿ إِذۡ هُمَا فِي ٱلۡغَارِ ﴾ کله چي دوی دواړه په غارکي وو ( په جبل ثور) کي ﴿ إِذۡ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحۡزَنۡ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَنَا ﴾ ( کله چي ويل (محمدصلى الله عليه وسلم) ملگري خپل (ابوبکرالصديق رضى الله عنه ) ته مه خفه کېږه بېشکه الله له موږسره دی ( په معاونت اونصرت سره ) يعني دابوبکرالصديق رضى الله عنه دزړه د خوشحالولو اوداډيني لپاره يې ورته ويل چي غم مکوه الله له موږ سره په نصرت اوکومک کولوکي دی. له انس رضى الله عنه څخه روايت کېږي فرمايي: چي ابوبکر الصديق رضى الله عنه وويل : کله چي زه له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دننه په غارکي وم اودمشرکانو پښې زموږ په سرد پاسه وې نوماوويل : اې رسول الله که ددوی څوک له خپلو پښولاندي وگوري موږبه ووينې ! رسول الله صلى الله ﷺ بيا داسې راته وفرمايل: ( ماظنک باثنين الله ثالثهما) ته په هغو( دووتنوڅه گمان کوې چي الله يې دريم وي؟ (٢) اودابوبکر الصديق رضى الله عنه دخواشيني سبب درسول الله صلى الله عليه وسلم په هکله وو نورسول الله ﷺ دهغه دزړه دتسکين لپاره له خفگان کولوڅخه منع کړ ﴿ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَيۡهِ ﴾ نونازل کړالله تسکين خپل پردغه (رسول خپل باندي) ﴿ وَأَيَّدَهُۥ بِجُنُودٖ لَّمۡ تَرَوۡهَا ﴾ اوتائيد وفرمايه ( الله ) درسول الله (پداسي لښکرو سره چي نه ليدلی تاسوهغوی)چي په غارکي يې ددوی حراست اوڅارنه کوله ﴿ وَجَعَلَ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلسُّفۡلَىٰ ﴾ اووگرځوله الله کلمه دهغوکسانوچي کافران شوي دي (دمشرکانو) ښکته ﴿ وَكَلِمَةُ ٱللَّهِ هِيَ ٱلۡعُلۡيَا ﴾ ( اوکلمه دالله (دتوحيد چي لااله الاالله دی ) همدغه لوړه غالبه ) يعني دهغې په سبب يې مسلمانان عزتمن کړل اواشرار اومشرکين يې ذليل وگرزول ﴿ وَٱللَّهُ

---

(١) الرازي ١٢/ ٦١
(٢) الطبري ١٠/ ١٣۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ او الله ښه غالب ښه حکمت والا دی (هسي کوم کار نه کوي تر څو چي پکي حکمت او مصلحت نه وي) ﴿ٱنفِرُواْ خِفَافًا وَثِقَالًا﴾ (څئ) غزا ته) حال دا چي سپک اوسئ او درانه) يعني اې د مؤمنانو ټولی غزا ته ووزئ ځوانان او بوډاګان ، پياده او سپاره په خوښي او غم ، په زحمت او راحت يعني په ټولو حالاتو او ظروفو کي ﴿وَجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۚ﴾ او جهاد کوئ تاسي په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره د الله کي (لپاره د اعلاء د کلمې) ﴿ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ﴾ (دغه (تګ غزا ته) بهتر دی تاسي ته که يې تاسي چي پوهېږئ) يعني دغه نفير او جهاد تر تثاقل او مخکي ته ميلان کولو چي په لږ دنيوي متاع باندي راضي کېږي غوره دی که تاسو پدې پوهېږئ. په البحر کي وايې چي په دنيا کي يې بهتري دا ده چي په دښمن غلبه مومي د ځمکي وراثت در ته رسېږي ، په آخرت کي د الله جل جلاله رضا او ستر ثواب در کول کېږي([1]) بيا الله تعالی د هغه چا احوال بيانوي چي د تبوک له غزا څخه يې تخلف کړی وو او همدا راز د منافقينو دريز څرګندوي ﴿لَوۡ كَانَ عَرَضٗا قَرِيبٗا وَسَفَرٗا قَاصِدٗا لَّٱتَّبَعُوكَ﴾ (که وي مال نژدې او سفر آسان نو خامخا متابعت به کړی وو دوی ستا) يعني که چېري هغه څه چي دوی ته يې بلنه ورکوې دولجې آسانه لاس ته راتلونکی مال وای او منځنی سفر وای چي ليري نه وي خامخا به دوی له تاسي د دغي ولجې ترلاسه کولو لپاره وتلي وای نه د الله لپاره ﴿وَلَٰكِنۢ بَعُدَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلشُّقَّةُۚ﴾ ليکن ليري شوي ده پر دوی باندي مسافه (ځکه نو دوی د وتلو په هکله خپل عذر وړاندي کوي د دوی په زړونو کي نفاق دی ﴿وَسَيَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ لَوِ ٱسۡتَطَعۡنَا لَخَرَجۡنَا مَعَكُمۡ﴾ (او ژر به قسمونه وکړي منافقان پر الله که زموږ طاقت وای نو خامخا به موږ له تاسره وتلي وای) يعني دوی به په دروغو قسمونه خوري عذر به وايې([2]) چي که چېري زموږ توان وای خامخا به درسره وتلي وو او که چېري زموږ مالي توان او يا بدني طاقت وای له وتلو څخه به وروسته شوي نه وو الله جل جلاله د دوی په رد او تکذيب کي فرمايې :

﴿يُهۡلِكُونَ أَنفُسَهُمۡ﴾ دوی خپل نفسونه هلاکوي (په دروغو قسمونو سره) ﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِنَّهُمۡ لَكَٰذِبُونَ﴾ او الله پوهېږي چي بېشکه دوی هرومرو دروغجنان دي (پدې دعوی کي ) ځکه دوی د وتلو توان در لود خوو نه وتل ﴿عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمۡ﴾ (عفوه وکړه الله له تا نه د څه لپاره (اذن) ورکړ تا دوی ته) د لته رسول الله صلی الله عليه وسلم ته په عتاب کولو کي تلطف راغلی او د ده صلی الله عليه وسلم د اکرام لپاره يې عفوه تر عتاب د مخه راوړي او معنا دا چي: الله وبښلې (سامحک الله) اې محمده دغو منافقينو ته دي ولي په يوازي عذر ويلو د پاتي کېدلو اجازه ورکړه ؟! ﴿حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَتَعۡلَمَ ٱلۡكَٰذِبِينَ﴾ او (ولي دي پرې نه ښودل ) تر هغو چي ښکاره شوي وي تا ته هغه کسان چي رښتوني دي (په دغه عذر کي) او معلوم کړي وي تا دروغجنان. مجاهد وايې چي دغه د منافقينو په هکله نازل شوي دي ځني د دوی وويل له رسول الله څخه د پاتي

---

([1]) الطبري ۱۴۲/۱۱

([2]) دغه اخبار بالغيب دی يعني کله چي ته د تبوک له غزا نه راستون شې نو دوی به په دروغو لوړي کوي عذرونه به وړاندي کوي او همداسي وشول او دغه د قرآن له ځرګندو معجزاتو څخه يو ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کېدلو اجازه وغواړئ که يې اجازه درکړه نو به راوګرزئ او که يې اجازه نه درکوله نو به پخپله خوښه کرار کېنئ(١) نو دوی د دې ترون کړی و چي غزاته به نه ځي که څه هم رسول الله د پاتي کېدلو اجازه ورنکړي ځکه الله اخبار ورته کوي چي مؤمنان له ده څخه استيذان نه کوي ويې فرمايل: ﴿ لَا يَسۡتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ نه غواړي اجازه له تا نه هغه کسان چي په الله او په ورځ د قيامت يې ايمان وي ﴿ أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡۗ ﴾ (چي جهاد وکړي دوی پخپلو مالونو او ځانونو سره) يعني دوی د جهاد په نفس او مال سره د کړکې او نفرت کولو په سبب د پاتي کېدلو اجازه نه غواړي ځکه دوی هغه اجرونه او ثوابونه پېژني چي الله پاک د نېکانو مجاهدينو لپاره تيار کړي نو څرنګه به دوی له جهادنه پاتي شي ؟! ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ او الله ښه عالم دی په پرهېزګارانو) ځکه دوی په خپل ايمان کي اخلاص اوله رحمن ذات څخه وېرېدونکي متقيان دي ﴿ إِنَّمَا يَسۡتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چي اجازه غواړي له تا نه (اې محمده د تخلف) هغه کسان چي ايمان نه لري په الله او ورځي د آخرت (چي قيامت دی) يعني اې محمده له تا څخه يوازي منافقين د پاتي کېدلو اجازه غواړي چي ايمان يې په زړونو کي ځای نه دی نيولی ﴿ وَٱرۡتَابَتۡ قُلُوبُهُمۡ فَهُمۡ فِي رَيۡبِهِمۡ يَتَرَدَّدُونَ ﴾ او شکمن دي زړونه د دوی د الله او ثواب په هکله يې) نو دوی په خپل شک کي سرګردانه دي ,نه پوهېږي چي څه وکړي.

## بلاغت:

١ - ﴿ يُحِلُّونَهُۥ عَامٗا وَيُحَرِّمُونَهُۥ عَامٗا ﴾ د(يحرمون) او(يحلون) ترمينځ د طباق صنعت دی چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

٢ - په دې کلام چي فرمايي: ﴿ أَرَضِيتُم بِٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِۚ ﴾ دلته اېجاز بالحذف راغلی يعني آيا تاسو د دنيا په نعمتونو او لذتونو د آخرت تر نعمتونو او لذتونو خوښ او راضي ياست ؟!.

٣ - ﴿ مَا لَكُمۡ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ﴾ دا هسي استفهام دی چي انکار او توبيخ پکې دی.

٤ - دلته چي الله جل جلاله وايي: ﴿ فَمَا مَتَٰعُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ د ضمير پر ځای يې اسم ظاهر غوره کړی چي په نسبت د آخرت د دنيا سپکاوی او حقارت څرګند کړي.

٥ - ﴿ يُعَذِّبۡكُمۡ عَذَابًا ﴾ په دغه کلام کي اشتقاقي جناس پروت دی.

---

(١) مفسرين کرام وايي چي له دغه ايت شريف څخه د رسول الله صلی الله عليه وسلم مقام او ستره مرتبه اولوړتيا څرګندېږي لومړی يې د عفوې او ښښني زېری ورکړ او بيا يې د ګناه خبرتيا ورکړه او که څېري يې د عتاب په ډول اول خل ورته فرمايلي وای چي ﴿ لِمَ أَذِنتَ لَهُمۡ ﴾ نو د دې وېره وه چي زړه يې له غمه چودلی وای (عون) وايي: آيا تر دې ښه ترتنه مو اورېدلي ده ؟ تر پېخوا له ګناه يې د عفوې ورته نارې کړي زه وايم چي زمخشري دلته څه ويلي د رسول الله له مقام سره بې ادبي ښکاري.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



٦-کله چي فرمايي: ﴿ وَجَعَلَ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلسُّفۡلَىٰۗ ﴾ دکافرانو کلمه له شرک څخه استعاره ده لکه چي دالله کلمه له ايمان اوتوحيد څخه استعاره راوړل شوي ده.

٧-د﴿ خِفَافٗا ﴾ او﴿ وَثِقَالٗا ﴾ ترمينځ دطباق صنعت دی.

٨- پدې کلام کي چي ﴿ بَعُدَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلشُّقَّةُۚ ﴾ دلته يې مشقت له اوږده اوليري سفرڅخه استعاره راوړی کوم چي په نفس باندي ربړ اومشقت باروي (اوګواکي يوله بله سبب اومسبب دي).

٩- ﴿ عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ ﴾ دغه خبر ددې لپاره دی چي خوښي په خفګان له مخه کړي اوهغه چاډېرښه ويلي دي چي الله په خپل نبي يودا لطف کړی چي عفوه يې ترعتاب له مخه ورته ښودلي ده

**فائده:** روايت کاوه شي چي يواعرابي ابن عمررضی الله عنهماته وويل: ماته ددې قول دالله چي فرمايي:

﴿ وَٱلَّذِينَ يَكۡنِزُونَ ٱلذَّهَبَ وَٱلۡفِضَّةَ ﴾ معلومات راکړه نوابن عمر رضی الله عنه ورته وويل چي څوک مالونه راغونډ وي اوزکات يې نه ورکوي داپخوا ترديوچي دزکات حکم نازل شي اوکله چي زکات فرض شونود مالونو دپاکوالي سبب وګرزېدو . ابن عمروويل: که زه لکه داحدغر غوندي سره زرولرم زکات يې ورکوم اودالله جل جلاله په طاعت اولارکي يې لګوم زه يې پروانکوم (اوعيب يې نه بولم )!!([1])

**تنبيه:**

دغه آيت شريف چي فرمايي: ﴿ إِذۡ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحۡزَنۡ ﴾ دحضرت صديق په سترقدراولوی فضيلت دلالت کوي چي الله جل جلاله درسول الله صلى الله عليه وسلم سره په غارکي ملګری وتاکه اوپه هجرت کي يې رفيق کړ؛ نوعلماء وايې که چېري څوک دابوبکر له صحبت څخه انکاروکړي کافردی ځکه دالله کتاب يې ونه مانو!

**لطيفه:**

حيان بن زيدوايي موږله صفوان بن عمرسره جهادته تلوچي ددمشق يوبودا لوېدلی سپين ږيری مووليد وروخي يې په سترګوراپرتې وې په خپل سورلي سپوروو چي ورسره مخامخ شوم ورته ويل مي کاکاته خوالله ﷻ معذورګڼلی يې نوهغه پداسي حال کي چي وروخي يې له سترګوپورته کړې راته ويل يې: اې وراره الله پاک موږ (خفافا وثقالا) رابللي يوڅوک چي دالله خوښ وي ابتلاء ورکوي اوبيايي راستون کړي اوژوندی پاتي شي الله ﷻ دشکر، ذکر اوصبر انسانان چي له الله پرته دبل هيچاعبادت نه کوي دابتلاء لپاره غوره کوي([2])

زه وايم چي الله دي په داسي پاکوسپيڅلونفسونورحم وکړي چي خپل ارواح يې دالله دخوښي اورضاپه بدل کي پلورلي دي .

---

([1]) رواه ابن ماجه

([2]) الطبري ١٣٨١٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ ﴿٤٦﴾ لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٤٧﴾ لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِن قَبْلُ وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ حَتَّىٰ جَاءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَارِهُونَ ﴿٤٨﴾ وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ ائْذَن لِّي وَلَا تَفْتِنِّي ۚ أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا ۗ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ﴿٤٩﴾ إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۖ وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِن قَبْلُ وَيَتَوَلَّوا وَّهُمْ فَرِحُونَ ﴿٥٠﴾ قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا هُوَ مَوْلَانَا ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿٥١﴾ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ۖ وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَن يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِندِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا ۖ فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُم مُّتَرَبِّصُونَ ﴿٥٢﴾ قُلْ أَنفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَّن يُتَقَبَّلَ مِنكُمْ ۖ إِنَّكُمْ كُنتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ ﴿٥٣﴾ وَمَا مَنَعَهُمْ أَن تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَىٰ وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ ﴿٥٤﴾ فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿٥٥﴾ وَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ وَمَا هُم مِّنكُمْ وَلَٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ ﴿٥٦﴾ لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَأً أَوْ مَغَارَاتٍ أَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ ﴿٥٧﴾ وَمِنْهُم مَّن يَلْمِزُكَ فِي الصَّدَقَاتِ فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا وَإِن لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَا إِذَا هُمْ يَسْخَطُونَ ﴿٥٨﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ سَيُؤْتِينَا اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَرَسُولُهُ إِنَّا إِلَى اللَّهِ رَاغِبُونَ ﴿٥٩﴾ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ ۖ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٦٠﴾ ﴾ التوبة: ٤٦ - ٦٠

## مناسبت او تړاو:

كله چې الله تعالى د منافقانو يادونه وكړه او جهادته د تللو لپاره يې د هغوى سستي وښودله دلته يې د دوى ځيني بد اعمال لكه مكر، دوكه، تېرايستل او د مسلمانانو په مينځ كې د اختلاف او فتنې اوربلول او د مسلمانانو په ربړونو او تكاليفو خوشحاله كېدل راوړل او دا يې بيان كړل كه دوى جهادته ووزي هم د مسلمانانو لښكروته به پرته له پرشاتګ او كمزوري بل څه ورونه بښي د مسلمانانو لښكر به تيت او پرك او د صف يو والى به يې لوټې لوټې كړي او نور د دوى د پربد جرمونه او افعال يې راوړل.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## لغتونه

(انبعاثهم ) په یو کارکي راپورته کېدل (فثبطهم) (تثبط ) دانسان له یو کاره څخه چي قصديې دکولو کړی وي بيرته راګرزېدلو ته وايي (خبالا) خبال شراوفسادته وايي اومخبول هم چي معتوه ته وايي له دغه څخه اخيستل شوی دی چي عقل يې فاسدوي (ولاوضعوا) ايضاع دتګ اوچت والي اوسرعت ته ويل کېږي (يجمحون ) (جمح)په تلوارسره منډي وهونکي ته وايي اوويل کېږي چي: ( فرس جموح) يعني هغه آس چي ملوني يې راګرزولی نشي (يلمزک) ( لمز) عيب ته وايي ويل کېږي چي ( لمزه فلان) يعني فلاني يې عيب ووايو جوهري وايي چي: په اصل کي دسترګواشارې کولوته وايي اوکله چي وويل شي ( رجل لماز) معنايې داچي عيب ويونکی سړی[1]) (الغارمين)پوروړی (غارم) مديون اوپوروړي ته وايي په اصل کي (غرم) ديومشکل دلزوم لپاره راځي غرام لازم عذاب ته ويل کېږي او چي عشق ته غرام وويل شوڅکه هغه يومشکل اولازم امردی اودين ته هم چي غرام وويل شوڅکه چي په نفسونو باندي شاق وي.

## دنزول سبب يې:

کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم دتبوک غزاته دتللو اراده وفرمايله نو(جدبن قيس ) منافق ته يې وويل: ته دبني الاصفرپه جهادکي څه وايې ؟ يعني درومیانوسره دغزاکولو په هکله.... نوهغه وويل: اې رسول الله زماقوم پدې پوهېږي چي زه ښځي ډېري خوښوم نوکه مي درومیانوښځي وليدې پدې وېرېږم چي په فتنه کي به ولوېږم صبربه ونلرم نوماپه فتنه کي مه اچوه اودپاتي کېدلواجازه راکړه زه به مالي کومک درسره وکړم نورسول الله يې دماله اخيستلوڅخه اعراض وفرمايه اوورته يې وويل: زماله خوادرته دپاتي کېدلواجازه ده نودا آيت نازل شو﴿ وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ ٱئْذَن لِّي وَلَا تَفْتِنِّيٓ ﴾([2]) دآيت ترپايه

## تفسير:

﴿ وَلَوْ أَرَادُوا۟ ٱلْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا۟ لَهُۥ عُدَّةً ﴾ (اوکه اراده وای ددوی دوتلوغزاته له تاسره) نوهرومرو تيار کړی به وو دوی دپاره دوتلوغزاته څه اسباب دتياري ) يعني که دغومنافقينو له تاسره غزاته دوتلو څه اراده نيت درلودای نوبه يې دوسلې اوتوښې څه بندو بست کړی وای خودوی هسې ونکړل دغه ددوی دنه تللو په اراده دلالت کوي ﴿ وَلَٰكِن كَرِهَ ٱللَّهُ ٱنۢبِعَاثَهُمْ ﴾ (ليکن نه ووغوره کړی الله پورته کېدل ددوی غزاته ) يعني ددوی وتل يې درسره نه خوښول ﴿ فَثَبَّطَهُمْ ﴾ نو(الله) دوی سست کړل ( په زړونوکي يې سستي ورواچوله) ﴿ وَقِيلَ ٱقْعُدُوا۟ مَعَ ٱلْقَٰعِدِينَ ﴾ اوويل شودوی ته چي کښېنئ تاسي له (کوړ) کښېناستونکو سره ( چي ماشومان ، ښځي اومعذوره کسان دي دغه ددوی دپاتي کېدلو ذم اوبدي ده اوپه آيت شريف کي دعليه السلام لپاره داډينه ده چي دمنافقينو په وتلوکي هيڅ فائده اومصلحت نشته بلکه زيان او ضرر دی چي ويې فرمايل:

---

([1]) الصحاح للجوهري

([2]) اسباب النزول ص: ۱۴۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ لَوۡ خَرَجُواْ فِيكُم مَّا زَادُوكُمۡ إِلَّا خَبَالٗا ﴾ نوکه وتلي وی دغه (منافقان) په (لښکرد) تاسي کي نونه به وو زيات کړی دوی تاسي ته (هيڅ) شی مګرشر، خرابي اوچغلي ﴿ وَلَأَوۡضَعُواْ خِلَٰلَكُمۡ ﴾ او خامخاچابکي به کړي وه دوی په مينځ ستاسي کي په چغلی کولو ﴿ يَبۡغُونَكُمُ ٱلۡفِتۡنَةَ ﴾ حال دا چي دوی به تاسي ته فتنه غوښتله (چي ستاسي ترمينځ دښمني پيدا کړي) ﴿ وَفِيكُمۡ سَمَّٰعُونَ لَهُمۡۗ ﴾ او په تاسي کي (دکمزوري زړونو خلګ) شته چي ددوی خبره مني اوغوږ ورته نيسي (١) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوالله ښه عالم دی په (ظاهر اوباطن دمنافقينو) ظالمانو ﴿ لَقَدِ ٱبۡتَغَوُاْ ٱلۡفِتۡنَةَ مِن قَبۡلُ ﴾ خامخاپه تحقيق دوی پخوالالتولي وه فتنه چي اصحاب تيت اوپرک کړي ،لکه چي ابن سلول له اُحد څخه خپل ملګري راستانه کړل ﴿ وَقَلَّبُواْ لَكَ ٱلۡأُمُورَ ﴾ (اواړولي يې وو تاته ټول کارونه) يعني چلونه او دوکې يې درته لټولې چي ستاددين مخنيوی وکړي ﴿ حَتَّىٰ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَظَهَرَ أَمۡرُ ٱللَّهِ ﴾ (ترهغه پوري چي راغی حق اوښکاره غالب شو حکم د الله) يعني دالله نصرت راغی اودين يې په نورو اديانو بری وموند ﴿ وَهُمۡ كَٰرِهُونَ ﴾ حال داچي دوی بد ګڼونکي وو (دنفاق له مخي يې ايمان راووړ) ﴿ وَمِنۡهُم مَّن يَقُولُ ٱئۡذَن لِّي وَلَا تَفۡتِنِّيٓۚ ﴾ اوځيني له دغو (منافقانو) څخه هغه څوک دي چي وايې اجازه راکړه ماته (دپاتي کېدلو) اوماپه فتنه کي مه اچوه ! (چي درسره ولاړشم) ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي: دغه آيت د (جدبن قيس) په هکله نازل شويدی کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه دتبوک دغزاپاره راوباله ده ورته ويل: اې رسول الله ماته دپاتي کېدلواجازه راکړه او د روميانودښځوپه فتنه کي مي مه اچوه (٢) ﴿ أَلَا فِي ٱلۡفِتۡنَةِ سَقَطُواْۗ ﴾ الله وفرمايل چي: خبردار په فتنه کي (لاپخوا) لوېدلی وو) چي له کومي فتنې څخه يې فرار کاوو پکي ولوېدل چي هغه بلکه ترهغه لويه فتنه همداله جهاد څخه تخلف اوددوی دکفراونفاق څرګندتياده. ابوالسعودوايې چي: له افتنان څخه په فتنه کي دغورځېدلوتعبيردديې لپاره دی چي هغه يې لکه ژوره کنده غوندي څرګنده کړه چي ددې ښکارندوی دی چي دوی به داسفل سافلين په درکاتوکي لوېږي (٣) ﴿ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةُۢ بِٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ (اوبېشکه چي دوزخ هرومروپه کافرانوچاپېرکېدونکی دی) يعني دوی ورڅخه دتېښتي لاره نلري لکه لاس وندی چي په لاس چاپېروي هغسي به وربانديي راګرزېدلی وي اوپدې کي سخت وعيددی ﴿ إِن تُصِبۡكَ حَسَنَةٞ تَسُؤۡهُمۡۖ ﴾ (که ورسېږي تاته کومه ښېګڼه نودوی خفه کېږي) يعني که په ځيني غزاګانو کي تاته برياليتوب اوغنيمت ورسېږي دوی وربانديي خفه کېږي ﴿ وَإِن تُصِبۡكَ مُصِيبَةٞ يَقُولُواْ قَدۡ أَخَذۡنَآ أَمۡرَنَا مِن قَبۡلُ ﴾ اوکه ورسېږي تاته کومه سختي نووايې دوی په

---

(١) مجاهدوايې چي معنايې داچي په تاسي کي ددوی لپاره جاسوسان شته چي خبري اوري دوی ته يې رسوي خولومړی معناڅرګنده اومشهوره ده اوقتاده ويلي ابن کثيرغوره کړي ده.

(٢) سبب النزول

(٣) ابوالسعود ٢/ ٢٧٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تحقيق نيولى وو موږكار (داحتياط ) خپل يعني كه چېري تاته زخم، مرگ ، ژوبله اوناكامي ورسېږي نودوى خوشحاله شي اووايي موږ احتياط كاوو اودجهادډگرته مو ونه دانګل چي له بلاوژغورل شو ﴿ وَيَتَوَلَّواْ وَّهُمۡ فَرِحُونَ ﴾ (اوشا گرځوي دوى حال داچي دوى خوشحاله وي([1])يعني دوى ستاسي له مجلسه خي شا اړوي اوستاسي په مصيبت خوشحاله وي ﴿ قُل لَّن يُصِيبَنَآ إِلَّا مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَنَا ﴾ (ووايه (اي محمده دوى ته !) له سره به ونه رسېږي موږته مگرهمغه چي الله ليكلي وي زموږلپاره ) يعني موږته به خيراوشر وبره ،اميد، سوكالي اوربړونه هيڅكله هم ونه رسېږي مگرهغه دتقدير ليكلي به راته رسېږي ﴿ هُوَ مَوۡلَىٰنَاۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ (همدغه (الله ) دى كارجوړونكى زموږ اوخاص پرهمدغه الله باندي دي نوتوكل كوي مؤمنان) يعني همدغه الله زموږحافظ او ناصردى اومؤمنان دي خپل ټول امورهم ده ته وسپاري اوله ده پرته دي په بل هيڅا توكل اواعتمادنه كوي ﴿ قُلۡ هَلۡ تَرَبَّصُونَ بِنَآ إِلَّآ إِحۡدَى ٱلۡحُسۡنَيَيۡنِۖ ﴾ ووايه (اي محمده ! دغومنافقانو ته چي آياانتظاركوى موږ ته مگر ديوله دوونېكيو څخه (چي شهادت ، يانصرت دى) ﴿ وَنَحۡنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمۡ أَن يُصِيبَكُمُ ٱللَّهُ بِعَذَابٖ مِّنۡ عِندِهِۦٓ أَوۡ بِأَيۡدِينَا ﴾ (اوموږ انتظاركوو تاسي ته (ديوې له دووبديوڅخه) چي ورسوي الله تاسي ته كوم عذاب له خپلي خوا ، يازموږپه لاسونو ) يعني موږ ستاسولپاره دووسختوعذابونو سترگي په لاريوياداچي الله پاک موپخپل عذاب باندي هلاک اوپوپناكړي اويامو زموږپه لاسونووژني ﴿ فَتَرَبَّصُوٓاْ إِنَّا مَعَكُم مُّتَرَبِّصُونَ ﴾ (نوانتظار كوئ تاسي بېشكه موږهم له تاسوسره انتظاركونكي يو ) يعني تاسودهغه څه انتظاركوئ چي موږ ته رسېږي او موږ به تاسوته ددرسېدلوانتظار باسو اوپدې كي وعيداو تهديدنغښتى دى ﴿ قُلۡ أَنفِقُواْ طَوۡعًا أَوۡ كَرۡهٗا لَّن يُتَقَبَّلَ مِنكُمۡ ﴾ ووايه ( اي محمده ! منافقانو ته ) چي لگوئ (خپل مالونه په هرشان يې چي لگوئ ) په رضا ، ياپه زور( داسلام) له سره به قبول نكړى شي له تاسي څخه طبري وايې : چي دغه كه څه هم امردى خومعنايې اخباردى لكه چي بل ځاى الله فرمايې : ﴿ ٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ أَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ ﴾ (التوبه ۸۰) يعني له دوى څخه به دغه دمالونولگول هيڅ كله ونه منل شي ([2]) ﴿ إِنَّكُمۡ كُنتُمۡ قَوۡمٗا فَٰسِقِينَ ﴾ (تاسي يې يوقوم فاسقان) دغه ددوى دانفاق دنه منل كېدلوعلت دى يعني تاسودالله له طاعت څخه سرغړونكي داسلام له دائرې وتونكي ياست اوبيادغي خبري تاكيديې پدې آيت شريف كي وفرمايل چي: ﴿ وَمَا مَنَعَهُمۡ أَن تُقۡبَلَ مِنۡهُمۡ نَفَقَٰتُهُمۡ إِلَّآ أَنَّهُمۡ كَفَرُواْ بِٱللَّهِ وَبِرَسُولِهِۦ ﴾ اوندى منع كړى دوى له دې چي قبول كړى شي له دوى نفقې ( وركړې) ددوى مگر هم دې خبري چي بېشكه دوى كافران شوي دي په الله اورسول ددغه (الله ) ﴿ وَلَا يَأۡتُونَ ٱلصَّلَوٰةَ إِلَّا وَهُمۡ كُسَالَىٰ وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمۡ كَٰرِهُونَ ﴾ اونه راځي دوى لمانځه ته مگرپدې حال چي دوى سست وي اونه لگوى (په لاره دالله كى هيڅ مال )مگر په دى حال كى چي دوى ناخوښه وى په البحر كى ليكى چي الله تعالى ددوى دنفقاتو دنه قبلولو سبب ددوى كفر ذكركړ وروسى

---

([1]) قرطبي وايې چي دوى له ايمانه مخ اړوي اودغه خوند وركوي ورباندي خوشحاله وي.
([2]) الطبري ۱۰/ ۱۵۲

Bawar.net



هغه څه راوړل چې ددې مستلزم وو هغه ددوی راتلل لمانځه ته په سستی سره اوداچې دوی هغه نفقې (کرهاً) ورکوي هغه پدې چې دوی يې دثواب تمه نلري اونه له عذابه وېرېږي دنبکي له کارونو څخه يې دغه دوه چې يوپې نفقه لګول اوبل لمونځ دی راوړل ددې لپاره چې دادواړه خوراسترا عمال دي لمونځ دبدني اعمالو ترټولو خوراستر عمل دی اوفي سبيل الله نفقه ورکول دمالي اعمالو خوراغوره عمل دی([1]) ﴿ فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ (نو تا دې په تعجب کې نه اچوي (دهر) مالونه ددوی اونه (دهر) اولاد ددوی (څکه چې دغه ټول استدراج دی) بېشکه همدا خبره ده چې اراده لري الله ددې چې عذاب ورکړي دوی ته په سبب دهغو(شيانو) پدې دنيوي ژوندکې ) يعني اې اورېدونکې دغه ددوی ډېرمالونه اولادېنه مه ګڼه اومه ورباندې تېروزه څکه چې ظاهراً نعمت بلل کېږي خوپه واقعيت کې عذاب دی الله پاک دوی ته پدغه استدراج سره په دنياکې عذاب ورکوي. بيضاوي وايي: ددوی عذاب داچې ددې مالونو په راټولولوکې دوی ډېرمره تکاليف اوربړونه ګالي اوپه ساتنه کې يې ډېرمره مشکلات په غاړه اخلي او پدې هکله له ډېرمره زياتو کړاوونو اومصيبتونو سره لاس اوګرېوان دي([2]) ﴿ وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَٰفِرُونَ ﴾ (اوپه سختي اوغم ) راووزي ساوي ددوی حال داچې دوی کافران دي ) يعني دوی هسې ومري چې کافران اوددنياپه زينت اوتمتع لګيادي آخرت ته يې فکرنه وي چې هلته يې نورهم عذاب سخت وي ﴿ وَيَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ وَمَا هُم مِّنكُمْ ﴾ (اوقسمونه کوي په الله چې بېشکه دوی ستاسي ( له ډلي ) دي حال داچې دوی ستاسي (مسلمانانو) له ډلي څخه نه دي ) څکه چې باطني کفرلري ) ﴿ وَلَٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ ﴾ وليکن دوی (داسي يو ) قوم دی چې وېرېږي (له تاسي چې دوی به ووژنئ لکه چې مشرکان وژنئ نوځکه تش په نامه اسلام ځرګندوي اوپدې باندي قسمونه اولوړي اخلي ﴿ لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَـًٔا ﴾ که دوی دپناه ځای و مومي (چې هلته لاړشي) ﴿ أَوْ مَغَٰرَٰتٍ ﴾ ياغارونه (سمڅي ) چې هلته پټ شي ﴿ أَوْ مُدَّخَلًا ﴾ ياکوم بل ځای دننوتلو ( که څه هم تنګ وي ) ﴿ لَّوَلَّوْا۟ إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ ﴾ نو خامخابه ګرزېدلي وو دوی هغه ته حال داچې دا منډې به يې وهلې (لکه پرې شليدلي آسونه چې هيڅ شی دوی نه شي راګرزولای له آيت شريف څخه مراد مؤمنانو ته تنبيه ورکول دي چې دغه منافقين که چېرې په تېښته وتوانېږي که څه هم سمڅي تنګ غارونه اويانور ځايونه وي نودوی به په منډه هلته لاړشي څکه دوی تاسوسره سخت بغض اوعداوت لري نو ددوی په دروغجنو قسمونو مه تېروزئ ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَلْمِزُكَ فِى ٱلصَّدَقَٰتِ ﴾ اوځيني له دغو( منافقانو ) څخه هغه دي ( اې محمده ! ) چې دصدقاتو په وېشلوکې ستاعيب وايي ﴿ فَإِنْ أُعْطُوا۟ مِنْهَا رَضُوا۟ ﴾ نوکه ورکړی شي دوی ته ددوی له غوښتني سره سم) له هغې څخه راضي کېږي ( دغه ستاکارېې خوښېږي ) ﴿ وَإِن لَّمْ يُعْطَوْا۟ مِنْهَآ إِذَا هُمْ يَسْخَطُونَ ﴾ (او که ورنکړی دوی ته (ددوی له غوښتني سره سم ) له هغه څخه نو هغه وخت دوی په قهرېږي ) اوستاعيب وايي. مفسرين کرام وايي چې رسول الله ﷺ کله چې دحنين د غزا غنيمتونه يې وېشل له منافقانو څخه يوڅوک چې (ذوالخويصرة ) نومېده

---

[1] البحرا لمحيط ٥/ ٥٣

[2] البيضاوي ص: ٢٣٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



راغی اورسول الله صلی الله ته یې وویل: عدل وکړه اې محمده ! ته عدل نکوې نورسول الله صلی الله علیه وسلم په خواب کي ورته وویل: ( افسوس تالره چي زه هم عدل ونکړم نوبه بې څوک کوي ؟ ) دحدیث ترپایه (١) ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا۟ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ﴾ اوکه په تحقیق دوی راضي شوي وای (په هغه مقدار دولجې اوصدقې ) چي ورکړي وه دوی ته الله اورسول دالله ( که څه هم لږوای ) ابوالسعودوایي: چي دالله تعالی یادول دتعظیم لپاره دی اوپدې تنبیه ده چي دغه درسول الله صلی الله علیه وسلم وېش هم دالله جل جلاله په امروو(٢) ﴿ وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ ﴾ اوویلي وای دوی چي کافي دی الله موږلره (له جهت دفضل اوانعام پرموږباندي ) ﴿ سَيُؤْتِينَا ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ وَرَسُولُهُۥٓ ﴾ ژربه راکړي الله موږته له فضل خپل (صدقه اوغنیمت اورسول دالله له بل غنیمت څخه (تردې زیات چي اوس یې راکړل ) ﴿ إِنَّآ إِلَى ٱللَّهِ رَٰغِبُونَ ﴾ (بېشکه موږ الله ته رغبت کونکي یو ) یعني دالله طاعت ، فضل اواحسان ته راغب یو دلو څواب محذوف دی او تقدیریې داسي کېږي چي: ( لکان خیراً لهم ) یعني دابه ددوی لپاره غوره وو . امام رازي رحمه الله وایې چي: دلو څواب نه راوړل دلته ددې لپاره دی چي په تعظیم اوهیبت زیات دلالت وکړي لکه چي ته یوچاته وایې که چېري ته راغلی وای نو.....دخواب یادونه ونکړې یعني دېرزیات څه به دې لیدلي وو(٣) بیاالله تعالی دزکات دلګښت ځایونه داسي بیانوي ﴿ إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَٱلْمَسَٰكِينِ ﴾ بېشکه هم داخبره ده چي زکات (صرفېږي) لپاره دفقیرانو اومسکینانو ( اودهغه چالپاره چي الله نومولي دي ) آیت شریف په همدې اتوتولګیوکي حصرکوي نونه دی رواچي بل چاته دي ورکول شي ؛ فقیرهغه چاته وایې چي یوڅه لري اومسکین هغه دی چي هیڅ هم نلري. یونس وایې چي ماله یوأعرابي څخه پوښتل آیاته فقیریې ویل یې نه والله زه مسکین یم اوچابیاویلي چي مسکین ترفقیریوڅه درلودونکی وي اوپه دې مسئله کي خلاف دی ﴿ وَٱلْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا ﴾ اومقرر شوو پرهغې (تحصیل دصدقې ) ﴿ وَٱلْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ ﴾ اوهغوی ته چي الفت اچول کړی شوی په زړونودوی کي ( له اسلام سره ) . طبري له صفوان ابن امیه څخه روایت کوي چي هغه وویل بېشکه ماته رسول الله مال راکړچي هغه ماته خورا مبغوض وو خوتل ترتله به یې پرماپېرزوینه کوله آن تردې چي ترټولو خلکوماته محبوب شو(٤) ﴿ وَفِى ٱلرِّقَابِ ﴾ او(صرفېږي ) په خلاصولو دغاړوکي (چي له مریتوب څخه آزادشي ) ﴿ وَٱلْغَٰرِمِينَ ﴾ اوپوروړوته (چي پور ورباندي دروند شوی وي ) ﴿ وَفِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ او (صرفېږي ) په لاره دالله کي یعني مجاهدینواو سرحدساتونکو ته ورکول کېږي هغوی ته وسله اوسامان ور باندي رانیول کېدای شي ﴿ وَٱبْنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ او (صرفېږي لپاره ) دمسافرانو(چي مال نلري) ﴿ فَرِيضَةً مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ مقرر اولازم کړی شوی دی دغه فریضه زکات) له جانبه دالله (لپاره ددغومصارفو ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ (اوالله په هرڅه ښه پوه اودحکمت خاوند دی ) یعني الله دخلګوپه مصالحو ښه پوه اوهیڅ کار نکوي مګرهغه چي

---

(١) روح المعاني ١١٩/١٠
(٢) ابوالسعود ٢٧٧/٢
(٣) الرازي ٩٩/١٢
(٤) الطبري ١٥٧/١٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دحکمت غوښتنه او تقاضا وي. په تسهيل نومي کتاب کي وايي چي: په دغو اتو ډلو کي يې دزکات وېشل منحصر پدې وګرځول چي دمنافقينو تمه وکاږي نو دغه آيت دمعنا په لحاظ په هغه پوري وتړل (۱) شو کوم چي منافقان ستاعيب وايي پکښي راغلي چي: ﴿ وَمِنۡهُم مَّن يَلۡمِزُكَ فِي ٱلصَّدَقَٰتِ ﴾.

بلاغت:

۱ - ﴿ لَأَعَدُّواْ لَهُۥ عُدَّةً ﴾ دلته جناس اشتقاقي راغلی او همدارنګه په دي کلام کي چي: ﴿ ٱقۡعُدُواْ مَعَ ٱلۡقَٰعِدِينَ ﴾.

۲ - کله چي الله تعالی فرمايي: ﴿ وَلَأَوۡضَعُواْ خِلَٰلَكُمۡ ﴾ طيبي وايي چي دلته تبعيه استعاره ده ځکه ددوی چابک فساد اچول دخلګو ترمينځ په چغلي کولو سره يې دسپاره له چابک تګ سره مشابه کړاو بيايې دهغه لپاره (ايضاع) استعاره راوړه هغه چي له اوښ سره ښايي نو اصل يې دا شو چي دوی ستاسو په مينځ کي دچغلي کولو په سورليو سره چابکي کوي(۲).

۳ - ﴿ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةُۢ بِٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ پدې کلام کي استعاره ده چي ددوی لوېدل يې په دوزخ کي ددښمن له چاپېرکېدلو او يادلاس وندي له لاس سره په چاپېرکېدلو مشابه کړل چي ورباندي راتاوشوی وي او اسميه جمله يې په ثبات او استمرار باندي ددلالت کولو لپاره غوره کړه.

۴ - ﴿ إِن تُصِبۡكَ حَسَنَةٞ تَسُؤۡهُمۡۖ وَإِن تُصِبۡكَ مُصِيبَةٞ ﴾ پدې آيت کي دبديعي محسناتو څخه هغه تو کي شته کوم چي مقابله يې بولي.

۵ - کله چي فرمايي: ﴿ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ﴾ جار او مجرور يې په فعل باندي دمخه ذکرکړل چي (قصر) افاده کړي او دالله جل جلاله پاک نوم يې دضمير پرځای ظاهرذکرکړچي دهيبت او روعت معنا وروزي.

۶ - پدې کلماتو کي چي راځي: ﴿ طَوۡعًا أَوۡ كَرۡهٗا ﴾ دلته دطباق صنعت دی او همدارنګه دخوښي او نا خوښي په نورو کلماتو کي چي ﴿ رَضُواْ وَإِن لَّمۡ يُعۡطَوۡاْ مِنۡهَآ إِذَا هُمۡ يَسۡخَطُونَ ﴾ پدې کي نو موړی صنعت شته.

۷ - پدې کلام کي چي ﴿ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴾ پکي راغلی دفعيل صيغه دمبالغې لپاره يعني دستر علم او حکمت خاوند دی

(۱) التسهيل ۲ / ۷۹
(۲) روح المعاني ۲ / ۱۱۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لطيفه:

زمخشري دالله تعالى پدې قول كې چې فرمايي: ﴿ ٱقۡعُدُواْ مَعَ ٱلۡقَٰعِدِينَ ﴾ راوړي چې دغه ددوى ذم اوبدي بيانوي اوددوى كمزوري اوعجزپه ګوته كوي دوى له ښځو، ماشومانو اوبوډاګانو سره پتلېږكوي

تنبيه:

ابن كثيروايي: كله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مديني منورې ته راغى نوټولو عربانو په يوه لينده وويشت اودمديني يهودانواومنافقانو ورسره دښمني وكړه كله چي الله پاک په بدركي نصرت اوبرى ورپه برخه كړ اوكلمه يې لوړه شوه ابن أبى منافق وويل: دادى چي اوس بې رامخه شوه نوپه ظاهري توګه په اسلام كي داخل شول اوهركله چي به الله پاک اسلام اومسلمانانوته برى وركړ دوى ته به غصه ورغله اوخپه كېدل به خكه الله تعالى وفرمايل: ﴿ وَظَهَرَ أَمۡرُ ٱللَّهِ وَهُمۡ كَٰرِهُونَ ﴾ [1]

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنۡهُمُ ٱلَّذِينَ يُؤۡذُونَ ٱلنَّبِيَّ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٞۚ قُلۡ أُذُنُ خَيۡرٖ لَّكُمۡ يُؤۡمِنُ بِٱللَّهِ وَيُؤۡمِنُ لِلۡمُؤۡمِنِينَ وَرَحۡمَةٞ لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمۡۚ وَٱلَّذِينَ يُؤۡذُونَ رَسُولَ ٱللَّهِ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿٦١﴾ يَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمۡ لِيُرۡضُوكُمۡ وَٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَحَقُّ أَن يُرۡضُوهُ إِن كَانُواْ مُؤۡمِنِينَ ﴿٦٢﴾ أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ أَنَّهُۥ مَن يُحَادِدِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَأَنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدٗا فِيهَاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡخِزۡيُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٦٣﴾ يَحۡذَرُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ أَن تُنَزَّلَ عَلَيۡهِمۡ سُورَةٞ تُنَبِّئُهُم بِمَا فِي قُلُوبِهِمۡۚ قُلِ ٱسۡتَهۡزِءُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ مُخۡرِجٞ مَّا تَحۡذَرُونَ ﴿٦٤﴾ وَلَئِن سَأَلۡتَهُمۡ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلۡعَبُۚ قُلۡ أَبِٱللَّهِ وَءَايَٰتِهِۦ وَرَسُولِهِۦ كُنتُمۡ تَسۡتَهۡزِءُونَ ﴿٦٥﴾ لَا تَعۡتَذِرُواْ قَدۡ كَفَرۡتُم بَعۡدَ إِيمَٰنِكُمۡۚ إِن نَّعۡفُ عَن طَآئِفَةٖ مِّنكُمۡ نُعَذِّبۡ طَآئِفَةَۢ بِأَنَّهُمۡ كَانُواْ مُجۡرِمِينَ ﴿٦٦﴾ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتُ بَعۡضُهُم مِّنۢ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمُنكَرِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَقۡبِضُونَ أَيۡدِيَهُمۡۚ نَسُواْ ٱللَّهَ فَنَسِيَهُمۡۚ إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ ﴿٦٧﴾ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلۡكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ هِيَ حَسۡبُهُمۡۚ وَلَعَنَهُمُ ٱللَّهُۖ وَلَهُمۡ عَذَابٞ مُّقِيمٞ ﴿٦٨﴾ كَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ كَانُوٓاْ أَشَدَّ مِنكُمۡ قُوَّةٗ وَأَكۡثَرَ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا فَٱسۡتَمۡتَعُواْ بِخَلَٰقِهِمۡ فَٱسۡتَمۡتَعۡتُم بِخَلَٰقِكُمۡ كَمَا ٱسۡتَمۡتَعَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُم بِخَلَٰقِهِمۡ وَخُضۡتُمۡ كَٱلَّذِي خَاضُوٓاْۚ أُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ﴿٦٩﴾ أَلَمۡ يَأۡتِهِمۡ نَبَأُ

[1] المختصر ۲/ ۱۷۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ وَقَوۡمِ إِبۡرَٰهِيمَ وَأَصۡحَٰبِ مَدۡيَنَ وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتِۚ أَتَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِۖ فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ﴿٧٠﴾ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ أُوْلَٰٓئِكَ سَيَرۡحَمُهُمُ ٱللَّهُۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴿٧١﴾ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا وَمَسَٰكِنَ طَيِّبَةٗ فِي جَنَّٰتِ عَدۡنٖۚ وَرِضۡوَٰنٞ مِّنَ ٱللَّهِ أَكۡبَرُۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٧٢﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَٰهِدِ ٱلۡكُفَّارَ وَٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱغۡلُظۡ عَلَيۡهِمۡۚ وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ﴿٧٣﴾ يَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ مَا قَالُواْ وَلَقَدۡ قَالُواْ كَلِمَةَ ٱلۡكُفۡرِ وَكَفَرُواْ بَعۡدَ إِسۡلَٰمِهِمۡ وَهَمُّواْ بِمَا لَمۡ يَنَالُواْۚ وَمَا نَقَمُوٓاْ إِلَّآ أَنۡ أَغۡنَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ مِن فَضۡلِهِۦۚ فَإِن يَتُوبُواْ يَكُ خَيۡرٗا لَّهُمۡۖ وَإِن يَتَوَلَّوۡاْ يُعَذِّبۡهُمُ ٱللَّهُ عَذَابًا أَلِيمٗا فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۚ وَمَا لَهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ مِن وَلِيّٖ وَلَا نَصِيرٖ ﴿٧٤﴾ التوبة: ٦١ ـ ٧٤

## مناسبت او تړاو:

لا تر او سه آيتونه د منافقينو کړه وړه ښيي او مسلمانان د دوی له پلمو، دوکو او فريبونو وېروي په دغه آيتونو کي الله د دوی يو بل ډول قبح او بدي بيانوي هغه دا چي پيغمبر صلى الله عليه وسلم خوروي په دروغو قسمونه خوري او الله تعالى په آيتونو او سپېڅلي شريعت باندي ملنډي وهي او داسي ناولي کارونه او پليت خويونه لري.

## لغتونه:

(أذن) جوهري وايي چي د أذن معنا هغه سړی چي د هرچا خبره اوري او پېدي کي د واحد او جمع دواړو يوه صيغه ده (¹) او زمخشري بيا وايي چي د (أذن) معنا هغه ښوک دی چي د هرچا په خبره باور کوي او مني يې او په هغه غږي (غوږ) باندي نوموړ شوی چي داوريدلو لپاره دی. (يحادد) دښمني کوي (محاده) مخالفت ته وايي لکه (مشاقه) غوندي څکه اچي هريو د متخاصمينو په جلا شق او حد کي وي (بخلاقهم ) د دوی په ونډه کی (خلاق) نصيب او ونډي ته وايي او ړومبی تېر شو لکه چي د ﴿ وَمَا لَهُۥ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنۡ خَلَٰقٖ ﴾ البقرة: ٢٠٠ په کلام کي (خضتم) ډوب شوئ خوض په لهو او باطل کي غوپه کېدلو ته وايي او د اوبو له ډوبېدلو څخه استعاره شوی دی (حبطت ) باطل او ابته شو ثواب د هغه (والمؤتفکات) (ائتفاک) هر اوښتون او انقلاب ته وايي او چا بيا ويلي چي د حال اوښتون ته وايي چي له خير څخه شر ته واوړي.

---

(¹) الصحاح للجوهري

Bawar.net



دنزول سبب:

أ :- يوه ډله منافقينو به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شان کي داسي څه ويل چي ورسره به نه ښائېدل او رسول الله صلى الله عليه وسلم به يې خوراوو اونوروبه بيا دغو کسانو ته ويل چي داسي مه کوئ موږ ويرېږو څه چي تاسي وايياست هغه به څوک ورته ورسوي اوراته به تاوان وکړي نو (جلاس بن سويد) وويل: چي موږ هرڅه چي موږ زړه وغواړي هغه وايو او بيا چي هغه ته ورشو زموږ په خبروباور کوي هغه (محمد) اوږېدونکی غوږ دی (غوږ) نو الله دا آيت نازل کړ ﴿ وَمِنْهُمُ ٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱلنَّبِيَّ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٌ ﴾ د آيت تر پايه. (۱)

ب :- مجاهد وايي چي منافقانو د رسول الله صلى الله عليه وسلم عيب وايو او بيا به يې پخپل مينځ کي سره ويل خدای مکړه زموږ رازونه څرګند او ونه پاشل شي الله دا آيت نازل کړچي ﴿ يَحْذَرُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ أَن تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُورَةٌ تُنَبِّئُهُم بِمَا فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ (۲).

تفسير:

﴿ وَمِنْهُمُ ٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱلنَّبِيَّ ﴾ (خيني له دوی هغه کسان دي چي نبي ته آزار رسوي) پخپلو خبرو او کړو وړو باندي ﴿ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٌ ﴾ (او وايي چي دغه (رسول) غوږ ونه دي) يعني هره خبره چي واوري مني يې او تصديق يې کوي ﴿ قُلْ أُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ ﴾ ووايه (اې محمده) دوی ته چي نبي اوږېدونکی دنېکي (خيري) دی ستاسي يعني هغه دخير لپاره تصديق کونکی دی نه دشر لپاره کله چي خير واوري عمل ورباندي کوي او چي شر واوري عمل نه ورباندي کوي ﴿ يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ باورلري (په کلام د) الله او باور کوي په (خبرو د) مؤمنانو څکه ددوی دايمان په اخلاص خبردی ﴿ وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ ﴾ او رحمت دی دپاره دهغو کسانو چي ايمان يې راوړی له تاسو نه) څکه دی يې دايمان راوړلو سبب وو ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ ٱللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او هغه کسان چي آزار رسوي رسول الله ته چي دده په شان کي بې مناسبه وايي) مقرر دی دوی ته عذاب دردناک په آخرت کي ﴿ يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ ﴾ قسمونه خوري دوی په الله تاسي ته چي دوی تاسي راضي کړي يعني وايي چي موږ د رسول الله په هکله داسي څه نه دي ويلي چي دهغه عيب او نقص پکې وي ﴿ وَٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ ﴾ او الله او رسول ددغه (الله) ډېر حقدار دی ددې خبري چي دغه منافقان يې راضي کړي) او دغه رضايت بې له دې چي دالله اطاعت وشي د رسول الله متابعت او تعظيم ترسره شي په بل څه کي نشته ﴿ إِن كَانُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴾ که وي دوی ايمان راوړونکي (په حقه سره نو الله او رسول الله دي راضي کړي) ﴿ أَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّهُۥ مَن يُحَادِدِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ آيا ندی پوه شوي دوی په دې چي بېشکه شان دادی هرڅوک چي

(۱) اسباب النزول ص: ۱۴۳

(۲) زاد المسير ۳ / ۴۶۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مخالفت کوي د الله (او مخالفت کوي) د رسول د دغه (الله)؟ يعني دغه منافقين پدې نه پوهېږي چي څوک د الله او رسول يې دښمني او مخالفت کوي؟ استفهام د توبيخ لپاره دی ﴿فَأَنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدًا فِيهَاۚ﴾ پس بېشکه مقرر دی ده ته اور د دوزخ حال دا چي همېشه به وي په دغه دوزخ کي ﴿ذَٰلِكَ ٱلۡخِزۡيُ ٱلۡعَظِيمُ﴾ او هم دغه (خلود) رسوايي ده ډېره لويه) چي د خلکو په وړاندي به رسوا شي ﴿يَحۡذَرُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ أَن تُنَزَّلَ عَلَيۡهِمۡ سُورَةٞ تُنَبِّئُهُم بِمَا فِي قُلُوبِهِمۡۚ﴾ وېرېږي دغه منافقان له دې نه چي نازل کړی شي پر دغو (مؤمنانو د قرآن دا سي يو) سورت چي خبروي دغه (مؤمنان) په هغه (نفاق) چي په زړونو د دوی کي ده ﴿قُلِ ٱسۡتَهۡزِءُوٓاْ﴾ وو ايه (اې محمده! دوی ته توبيخًا) چي کوئ تاسي مسخرې (ځرنګه چي موږ ته غواړې) دغه امر د تهديد لپاره دی لکه چي بل ځای هم الله تعالى فرمايي: ﴿ٱعۡمَلُواْ مَا شِئۡتُمۡ﴾ فصلت ۴ ﴿إِنَّ ٱللَّهَ مُخۡرِجٞ مَّا تَحۡذَرُونَ﴾ بېشکه چي الله ښکاره کونکی دی د هغو (خباثتو ستاسي) چي وېرېږئ له ښکاره کولو نه د هغو. زمخشري وايي چي دوی په اسلام ملندي او استهزاګاني کولې او له دې وېرېدل چي الله دوی په وحی را استولو باندي ګنه رسوانکړي آن تردې چي ځيني کسانو يې وويل په الله لوړه چي زموږ دا خوښه ده چي سل دُرې دي وو هل شو خو زموږ په باب کي دی داسي څه را نازل نه شي چي موږ رسوا کړي(١) ﴿وَلَئِن سَأَلۡتَهُمۡ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلۡعَبُۚ﴾ (٢) (او که خامخا ته (اې محمده) له دوی نه پوښتنه وکړې (چي تاسي ولي استهزاء کوله) نو ضرور به وايي: خامخا چي بېشکه هم دا خبره ده چي وو موږ چي مجلس او لوبې موکولې) يعني موږ په خپلو خبرو کي جدي او ټينګار کونکي نه وو خو د توکو ټکالو په ډول مو ويل. طبري وايي کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د تبوک غزا ته روان شو او په وړاندي يې يوه ډلګۍ منافقانو نو دوی ويل: وګورئ دغه سړي ته! غواړي د شام ماڼۍ او برجونه فتح کړي هيهات، هيهات!! بيا الله جل جلاله خپل پيغمبر پدغه خبره وپوهاوو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته ويل: تاسو داسي وويل؟! نو دوی وويل: اې د الله نبي موږ باندار کاوو او يوازي توکي موکولې نو دا آيت نازل شو چي: ﴿قُلۡ أَبِٱللَّهِ وَءَايَٰتِهِۦ وَرَسُولِهِۦ كُنتُمۡ تَسۡتَهۡزِءُونَ﴾ وو ايه (اې محمده! دغو منافقينو ته چي) آيا په الله او په آيتونو د الله او په رسول د الله پوري وی تاسي استهزا کونکي؛ استفهام د توبيخ لپاره دی. بيا الله د دوی حال رسوا کړ او داسي يې وفرمايل: ﴿لَا تَعۡتَذِرُواْ قَدۡ كَفَرۡتُم بَعۡدَ إِيمَٰنِكُمۡۚ﴾ عذرونه مه کوئ تاسي (پدغو دروغو قسمونو سره تاسو ته وروسته ستاسي له رسوايي دغه پلمې ګټه نه رسوي) او په تحقيق کافران شوي يې (د اسلام په طعن سره) وروسته له (اظهارد) ايمان ستاسي نه) يعني تاسو خپل کفر د پيغمبر په آزار ښکاره کړ وروسته له هغه چي ايمان مو ښکاره کړی وو ﴿إِن نَّعۡفُ عَن طَآئِفَةٖ مِّنكُمۡ﴾ که عفوه وکړو موږ له يوې ډلې له تاسي څخه (د توبې او اخلاص په وجه) ﴿نُعَذِّبۡ طَآئِفَةَۢ بِأَنَّهُمۡ كَانُواْ مُجۡرِمِينَ﴾ (نو ضرور به عذاب (هم) ورکړو (بلې ډلې ته په سبب د دې چي دوی بېشکه ګناهګاران وو) څکه دوی په نفاق او ګنهکاري اصرار کړی ﴿ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتُ بَعۡضُهُم مِّنۢ بَعۡضٖۚ﴾ (نارينه منافقان او ښځي ځني د دوی له ځينو نورو دي) يعني

---

(١) الکشاف ٢/ ٢٨٢

(٢) دغه د قتاده روايت او په تفسير طبري کی هم راوړل شوی دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دوی په کفر اونفاق کي ګردسره يوشان دي داسي ورته والی لري لکه ديوشي اجزاوي. په کشاف کي وايي چي پدې قول سره چي: ﴿ بَعۡضُهُم مِّنۢ بَعۡضٖ ﴾ دامراددی چي دوی هډوله مؤمنانو څخه نه دي اودوی پخپله هغه ويناکي چي ويل يې: ﴿ وَيَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنَّهُمۡ لَمِنكُمۡ ﴾ (التوبه ٥٦) د روغجن دي(١) بيا الله جل جلاله دوی په دې مخالفت وستايل چي ددوی حال دمؤمنانو دحال په شان نه دی ﴿ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمُنكَرِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمَعۡرُوفِ ﴾ ( دوی حکم کوي په منکراتو اومنع کوي له نېکيو څخه ) يعني په کفراو ګناهونو خلګوته امرکوي اوله ايمان اوطاعت څخه خلګ رامنع کوي ﴿ وَيَقۡبِضُونَ أَيۡدِيَهُمۡۚ ﴾ اوکلک نيسي دوی لاسونه خپل ( له في سبيل الله انفاق څخه ﴿ نَسُواْ ٱللَّهَ فَنَسِيَهُمۡۚ ﴾ دوی الله هېرکړی دی ( اوطاعت يې نه کوي ) نو(الله) بې برخي کړي دي دوی ( له خپل رحمت اوفضل نه اولکه چي هېرکړي يې وي ) ﴿ إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ ﴾ اوبېشکه چي منافقان هم دوی دي فاسقان) وتلي له طاعته دالله نه اودغه زجردمنافقانو لپاره کافي دی ﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلۡكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ ﴾ الله وعده کړي له منافقانوسړيو اومنافقاتوښځوسره اوله (ټولو ) کفاروسره اورددوزخ (څای) ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ﴾ تل به وي (دوی) په دغه (دوزخ) کي ﴿ هِيَ حَسۡبُهُمۡۚ ﴾ (همدغه دوی ته بس دی ) يعني بل داسي عذاب نشته چي له دوزخ سره پرتله شي ﴿ وَلَعَنَهُمُ ٱللَّهُۖ وَلَهُمۡ عَذَابٞ مُّقِيمٞ ﴾ (اوالله پردوی لعنت کړی اومقرردی دوی ته عذاب تل مدام) يعني الله دوی له خپله رحمته ليري،سپک اوشړلي اوددوی لپاره تل ترتله عذاب دی ﴿ كَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ ﴾ (تاسي اې منافقانو ) په شان دهغوکسانو يې چي پخواله تاسي څخه وو ) دروغجنان وو پدې کي التفات له غيبت څخه خطاب ته دی ﴿ كَانُوٓاْ أَشَدَّ مِنكُمۡ قُوَّةٗ ﴾ ( دوی ترتاسي سخت ووله جهته دزوره ) يعني بدنونه يې غټ اود متوزور يې زيات وو ﴿ وَأَكۡثَرَ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا ﴾ (اوزيات له جهته دمالونو او اولادونو ) خوله دې سره سره الله دوی هلاک کړل نو له هغه څه ووبرېږئ کوم چي پردوی راغلل ﴿ فَٱسۡتَمۡتَعُواْ بِخَلَٰقِهِمۡ ﴾ نونفع واخيسته دوی پخپلې برخي ( له دنيوي لذتونو څخه ) ﴿ فَٱسۡتَمۡتَعۡتُم بِخَلَٰقِكُمۡ كَمَا ٱسۡتَمۡتَعَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُم بِخَلَٰقِهِمۡ ﴾ نوګټه واخيسته تاسي په برخي خپلې لکه چي ګټه اخيستي وه هغوکسانوچي پخواوله تاسي څخه په برخي خپلي سره ﴿ وَخُضۡتُمۡ كَٱلَّذِي خَاضُوٓاْۚ ﴾ اوډوب شوی تاسي په باطلوکي لکه چي دوی ډوب شوي وو پخواله تاسي په باطلوکي. طبري وايي: معناداچي اې منافقانوتاسوهغه لاره نيولي چي پخوانيونيولي وه اوددنياله لذتونوڅخه موخپله ونډه واخيسته لکه چي دوی اخيستي وه اوپه دروغوباطل کي ھسي ډوب شوی لکه چي دوی ډوب شوي وو نوله

(١) الکشاف ٢ / ٢٨٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دي وو ہر ہرئ چي په تاسوهماغسي عذاب رانازل نشي لکه چي پرهغوی راپرېوتی وو[۱] ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ ﴾ دغه کسان باطل (خراب ابته) شوو عملونه ددوی په دنیاو آخرت کي ) نوددوی لپاره له اوره پرته بل ثواب هيڅ نشته ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ﴾ اودغه کسان هم دوی دي زیانکاران (په بشپړه توګه بې برخي ) ﴿ أَلَمۡ يَأۡتِهِمۡ نَبَأُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ﴾ (آیاندی راغلی دوی ته خبر(دعذاب ) دهغوکسانوچي پخواله دوی وو؟) کله چي ﷺ له پیغمبرانوڅخه سرغړونه وکړه څرنګه عذاب وربادي راغی ؟! ﴿ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ ﴾ (قوم دنوح اوعاد اوثمود ) یعني قوم دنوح چي په طوفان هلاک شو اود عادتبرچي په باد هلاک شواودصالح علیه السلام قوم ثمودیان چي په صیحه(چیغه) تباه شول ﴿ وَقَوۡمِ إِبۡرَٰهِيمَ ﴾ قوم دابراهیم هغه چي دنعمت په ورکېدلو(سلب) هلاک شول ﴿ وَأَصۡحَٰبِ مَدۡيَنَ ﴾ اودشعیب علیه السلام قوم ) څښتنان (دښار د ) مدین هغه چي د(یوم الظلة ) په عذاب هلاک شول ﴿ وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتِۚ ﴾ اوچپه اړول شوي کلیودلوط چي سرپه ځمکه. له آسمانه راپرېوتل اوبیااورباندي دختو کانوباران وشو ﴿ أَتَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِۖ ﴾ راوړی دی دوی ته رسولانوددوی ښکاره معجزې (اودوی يې تکذیب وکړ) ﴿ فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ ﴾ نونه وو الله چي ظلم به يې کاوو په دوی (بلکه ددوی په ګناه يې هلاک کړل ) ﴿ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ﴾ ولیکن وودوی په ځانونوخپلوبه يې ظلم کاوو(په کفراوګناهونوسره آیادغه منافقانوته دغه وېره نه ورلوېږي چي له دوی څخه به هم ددوی داسلافوغوندي کسات واخیستل شي ؟کله چي الله پاک دمنافقینو ناولي صفات یادکړل نو وروسته يې دمؤمنانو سپېڅلي صفتونه هسي بیان کړل ﴿ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ ﴾ اوسړي مؤمنان اوښځي مؤمناني ځیني ددوی دوستان دي دځینو نورو( یعني دوی په دین کي سره ورونه دي یودبل مرسته کوي اومټ يې قوي کوي ﴿ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ ﴾ حکم کوي دوی په (ټولو) نېکیو (چي الله راضي کوي )اومنع کوي له (ټولو) بدیو(چي دالله دقهرسبب کېږي ) دوی دمنافقینو برعکس کارونه کوي ﴿ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ اودروي ( له ټولوحقوقوسره سم اداکوي) لمونځ ﴿ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ اودوی زکات ورکوي (دالله درضا لپاره مستحقینوته ) ﴿ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ ﴾ اوحکم مني دالله او (حکم مني ) درسول ددغه (الله ) په هرامراونهی کي) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ سَيَرۡحَمُهُمُ ٱللَّهُۗ ﴾ دغه کسان ژربه رحم وکړي په دوی الله یعني پخپل رحمت کي به يې ګډ اوسترنعمتونه به ورباندي ولوروي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ﴾ بېشکه چي الله ښه غالب قوي دی ښه دحکمت خاوند دی یعني هغه څوک چي دده اطاعت کوي هغه به مغلوب نشي اوسپک کاوه شي هغه چي دالله سرغړونه اوعصیان کوي دحکمت خاوند دی چي هرکارپه تدبیر

[۱] الطبري ۱۰/۱۷۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اومصلحت کوي که چاته نعمت ورکوي اوکه چاته نقمت (عذاب) دواړه پرخپل ځای او وړ وي ﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ﴾ وعده کړي ده الله له نارينه وو مؤمنانو اوله ښځو مؤمناتوسره د(کلونو تت سيورو) جنتونوچي بهېږي له لاندي د(مانيواوونو د) هغووياله ﴿خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾ تل به وي دوی په دغوجنتونوکي ﴿وَمَسَٰكِنَ طَيِّبَةٗ فِي جَنَّٰتِ عَدۡنٖۚ﴾ او(وعده کړي ده الله) دځايونوپاکېزه وو (چي ثابت دي) په جنتونودتل اوسېدلوکي. حضرت حسن بصري رحمه الله وايي: چي دغه دملغلرو سرو ياقوتو اوزبرجدو مانۍ دي (١)﴿وَرِضۡوَٰنٞ مِّنَ ٱللَّهِ أَكۡبَرُۚ﴾ اورضا له جانبه دالله ډېره لويه ده (تردغونعمتونو) په حديث شريف کي راځي چي الله تعالى به جنتيانوته ووايي: اې جنتيانو! دوی به ورته وايي (لبيک ربنا وسعديک) نوبه الله پاک ورته ووايي: آياراضي شوی دوی به وايي ولي به نه يو راضي چي تاموږ ته هغه څه راکړل چي بل هيڅ مخلوق ته دي ندي ورکړي نو الله به ورته وايي: تردي غوره اوبهتربه درکړم دوی به وايي: تردي به لاڅه بهتربل شی هم وي؟ الله به وفرمايي پرتاسوبه خپله رضاولوروم اوله دې وروسته به هيڅکله هم درباندي په قهرنشم (٢)﴿ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ﴾ دغه (رضا د الله) هم دغه ډېرلوی بری دی (چي ترې زياته نېکمرغي نشته) ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَٰهِدِ ٱلۡكُفَّارَ وَٱلۡمُنَٰفِقِينَ﴾ اې نبي جهادکوه ته له کفاروسره (په توره) اوله منافقينوسره (په ژبه دحجت) دغه دابن عباس تفسيردی ﴿وَٱغۡلُظۡ عَلَيۡهِمۡۚ﴾ اوسختي کوه پردوی (په جهاد، قتال او وېرولو) ﴿وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ﴾ اوځای دورتلو ددوی دوزخ دی؛ اوبدځای دبېرته ورتلودی (دغه دوزخ) ﴿يَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ مَا قَالُواْ﴾ قسمونه خوري دوی په الله باندي چي ندي ويلي دوی (داخبري چي تاته دررسېدلي دي) يعني دغه منافقان قسمونه خوري چي دغه ښکنځل چي تاته دررسېدلي دوی ندي ويلي. قتاده وايي: دغه آيت دعبدالله ابن أبی په شان کي راغلی چي هغه وخت چي دووکسانو؛ يوجهني اوبل انصاري سره جنګ وو نوجهني په انصاري سربېره وو نوابن سلول انصاروته وويل: آيادخپل ورور مرسته نکوئ؟ په الله سوګند چي زموږ اودمحمد مثال هسي دی لکه چي وايي: (سمن کلبک ياکلک) يعني سپی دي چاغ کړه تابه وخوري نودمسلمانانويوتن دغه خبره نبي صلى الله عليه وسلم ته ورسوله او هغه ابن أبی ته يوڅوک ورواستاوو اوپدې هکله يې وپوښتل نو ابن أبی په الله قسم وخورچي نه يې دي ويلي. الله يې په هکله داآيت نازل کړچي: ﴿وَلَقَدۡ قَالُواْ كَلِمَةَ ٱلۡكُفۡرِ﴾ اوخامخاويلي وو دوی کلمه (الفاظ) دکفر هغه داچي ابن سلول ويلي وو چي (ليخرجن الاعز منهاالاذل) (که مدينې ته ستانه شوو ورسېدو نوبه ارو مرو خورا عزتمن هغه خوراسپک را وباسي) ﴿وَكَفَرُواْ بَعۡدَ إِسۡلَٰمِهِمۡ﴾ اوکافران شوي دي دوی (ظاهراًهم) وروسته (له (اظهارد) اسلام خپل ﴿وَهَمُّواْ بِمَا لَمۡ يَنَالُواْۚ﴾ اوقصديې کړی وو هغه شي ته چي ور ونه رسېدل. ابن کثيروايي: کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دتبوک له غزاڅخه راستنېدو نويوڅوتنومنافقينوچي څه دپاسه لس کسان ووپه لاره کي ورته

---

(١) الکشاف ٢/ ٢٨٩

(٢) الطبري ١٠/ ١٨٢ والحديث في الصحاح.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کمین نیولی وو - وربوزونه یې ترلې وو دشپې په تیاره کې یې غوښتل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لاس ور واچوي ویې وژنی مگرالله خپل پیغمبر وژغورل ﴿ وَمَا نَقَمُوٓاْ إِلَّآ أَنۡ أَغۡنَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ مِن فَضۡلِهِۦۚ ﴾ او عیب نه لگاوو دوی ( په الله ورسول الله ) مگرله دې جهته چې دوی الله او رسول لله غنیان کړل له خپله فضله ) یعني دوی درسول عیب گوېې پدې کوله چې الله دخپل نبي په برکت اوسعادت دوی بډایان کړل اوداکلمه هلته چې هیڅ گناه نه وي ویل کېږي بیاالله دوی توبې ته راوبلل چې : ﴿ فَإِن يَتُوبُواْ يَكُ خَيۡرٗا لَّهُمۡۖ ﴾ نوکه دوی له (دغه نفاقه ) توبه وایستله نودغه دوی ته خیر( غوره ) دی. ﴿ وَإِن يَتَوَلَّوۡاْ يُعَذِّبۡهُمُ ٱللَّهُ عَذَابًا أَلِيمٗا ﴾ اوکه بیرته وگرزي دوی ( له توبې ) نوعذاب به ورکړي الله دوی ته عذاب دردناک (سخت) ﴿ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۚ ﴾ په دنیاکې ( په وژلو اوبندي کېدلو ) اوپه آخرت کې (داورعذاب اودالله قهر ) ﴿ وَمَا لَهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ مِن وَلِيّٖ وَلَا نَصِيرٖ ﴾ حال داچې نه به وي ده ته په ځمکه کې هیڅ دوست (مددگار چې له عذابه یې وژغوري اویایې دحساب په ورځ سپارښتنه وکړي اوله عذابه نجات ورکړي.

## بلاغت:

١ - ﴿ هُوَ أُذُنٞۚ ﴾ اصل یې داچې ( هوكالأذن ) یعني هغه لکه غوږ غوندي دی هرڅه چې ورته وویل شي هغه اوري دتشبیه ادات یې حذف شوی اووجه شبه هم نده ذکرشوي نو ورته بلیغه تشبیه ویل کېږي لکه چې وایې: زیدزمری دی.

٢ - پدې کلام کې چې فرمایې: ﴿ يُؤۡذُونَ رَسُولَ ٱللَّهِ ﴾ دلته یې درسول اسم په څرگندډول راوړ اوپه ضمیریې یادنکړچې ویلې یې وای (یؤذونه) اوپدې کې دعلیه السلام دشان تعظیم دی او د دوو سترو رتبو(یوځای کېدلو ویاړ ورکول شوی چې نبوت اورسالت دی اوالله تعالی ته یې بیااضافت کول دتشریف اوتکریم دزیاتوالي لپاره دی[1]

٣ - ﴿ ذَٰلِكَ ٱلۡخِزۡيُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾ دلته دبعیداشاره ترقریب غوره شوي چې دهغه دهول اوهیبت څخه زیاتوالی وښیې.

٤ - کله چې الله فرمایې: ﴿ وَيَقۡبِضُونَ أَيۡدِيَهُمۡۚ ﴾ دلاسونوکلک نیول دبخل اوکنجوسي نښه ده لکه چې غوړول اوبسط دلاسونو دکرم اوسخاڅرگندونه کوي نوگواکې دلته دکنایې صنعت راغلی دی.

٥ - ﴿ نَسُواْ ٱللَّهَ فَنَسِيَهُمۡۚ ﴾ دغه دمشاکلت په ډول راغلی څکه چې الله خوڅه نه هېروي یعني دوی دالله طاعت پرې ایښی اوهېرکړی الله دوی له خپله رحمته پرې ایښي دي.

٦ - پدې کلام کې چې وایې: ﴿ كَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ ﴾ دلته له غیاب څخه خطاب ته التفات راغلی دی ترڅودزیات عتاب او تکولو افاده وکړي.

---

(١) البحر المحيط ٥ / ٦٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۷ - ﴿ فَٱسۡتَمۡتَعُواْ بِخَلَٰقِهِمۡ ﴾ پدې کې اطناب صنعت راغلی او مقصد ورڅخه ذم او توبيخ دی څکه دوی خو نفيس څيز په خسيس پلورلی دی.

۸ - کله چې الله تعالی فرمايي: ﴿ وَمَا نَقَمُوٓاْ إِلَّآ أَنۡ أَغۡنَىٰهُمُ ٱللَّهُ ﴾ پدې آيت کې د مدح تاکيد بما يشبه الذم دی لکه چې شاعر وايي: (ولاعيب فيهم غير أن سيوفهم * بهن فلول من قراع الكتائب * چې معنا يې داده: پدوی کې بل عيب نشته خو دا چې توري يې تل د لښکرو په جګړو کې پڅې شوي دي.

**فائده:**

ابن کثير له علي کرم الله وجهه څخه روايت راوړی چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم په څلورو تورو (سيوفو) باندې را استول شوی دی يوه توره د مشرکينو لپاره چې الله فرمايي: ﴿ فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلۡأَشۡهُرُ ٱلۡحُرُمُ فَٱقۡتُلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ (التوبه ۵) بله توره د أهل کتابو لپاره چې: ﴿ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ (التوبه ۲۹) بله توره د منافقينو په هکله چې قرآنکريم وايي: ﴿ جَٰهِدِ ٱلۡكُفَّارَ وَٱلۡمُنَٰفِقِينَ ﴾ (التوبه ۷۳) او بله څلورمه توره د باغيانو لپاره چې داسي راغي: ﴿ فَقَٰتِلُواْ ٱلَّتِي تَبۡغِي حَتَّىٰ تَفِيٓءَ إِلَىٰٓ أَمۡرِ ٱللَّهِ ﴾ الحجرات ۹[1]

**لطيفه:**

امام فخر رازي رحمه الله فرمايي: کله چې الله مؤمنان پدې وستايل چې ځيني د ځيني نورو وليان (دوستان مددګاران) دي نو وروسته يې پنځه څيزونه راوړل چې مؤمن له منافق څخه بېلوي منافق په بدو کارونو امرکوي او له ښو کارونو څخه منع کوي، لمانځه ته په سستي ولاړيږي، د زکات او نورو واجبو صدقاتو په ورکړه کې بخل کوي، او کله چې د جهاد غږ وشي نو هغه وروسته پاتې کيږي او نورو ته هم د پاتې کيدلو پلمې ورښيي. خو مؤمن د دوی پرضد او برعکس وي هغه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوي، لمونځ په اکمله وجه اداکوي، زکات ورکوي د الله او رسول الله طاعت ته په چټکتيا ور درومي څکه الله د دوی مقابله په آيت کې داډول فرمايي:

﴿ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ ﴾ التوبه ۷۱ لکه چې يې د جزاء په هکله هم په يوه داسي لطيفه مقابله کې د جهنم اور له جنات عدن سره راوړی دی[2]

**الله تعالی فرمايي:**

﴿ ۞ وَمِنۡهُم مَّنۡ عَٰهَدَ ٱللَّهَ لَئِنۡ ءَاتَىٰنَا مِن فَضۡلِهِۦ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿۷۵﴾ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُم مِّن فَضۡلِهِۦ بَخِلُواْ بِهِۦ وَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعۡرِضُونَ ﴿۷۶﴾ فَأَعۡقَبَهُمۡ نِفَاقٗا فِي قُلُوبِهِمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ يَلۡقَوۡنَهُۥ بِمَآ أَخۡلَفُواْ ٱللَّهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا كَانُواْ يَكۡذِبُونَ ﴿۷۷﴾ أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ سِرَّهُمۡ وَنَجۡوَىٰهُمۡ وَأَنَّ ٱللَّهَ عَلَّٰمُ

---

[1] المختصر ۲ / ۱۵۲

[2] تفسير الرازي ۱۲ / ۱۳۰ له يو څه لاس وهني سره.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الْغُيُوبِ ﴿٧٨﴾ الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٩﴾ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٨٠﴾ فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ وَكَرِهُوا أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَالُوا لَا تَنْفِرُوا فِي الْحَرِّ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا لَوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ ﴿٨١﴾ فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٢﴾ فَإِنْ رَجَعَكَ اللَّهُ إِلَىٰ طَائِفَةٍ مِنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُلْ لَنْ تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا وَلَنْ تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا إِنَّكُمْ رَضِيتُمْ بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ ﴿٨٣﴾ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٨٤﴾ وَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَأَوْلَادُهُمْ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ أَنْ آمِنُوا بِاللَّهِ وَجَاهِدُوا مَعَ رَسُولِهِ اسْتَأْذَنَكَ أُولُو الطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوا ذَرْنَا نَكُنْ مَعَ الْقَاعِدِينَ ﴿٨٦﴾ رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ﴿٨٧﴾ لَٰكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ جَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَأُولَٰئِكَ لَهُمُ الْخَيْرَاتُ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٨٨﴾ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٨٩﴾ وَجَاءَ الْمُعَذِّرُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ لِيُؤْذَنَ لَهُمْ وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٠﴾ لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٩١﴾ وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوْا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنْفِقُونَ ﴿٩٢﴾ ۞ إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٩٣﴾ ﴾ التوبة: ٧٥ - ٩٣

## مناسبت اوتړاو:

همداسي آيتونه په پرله پسي توګه دمنافقينو اسرار افشاکوي دحالاتو رازونه يې لوڅوي ترڅوچي مؤمنان پدي وپوهيږي دغه ډلګۍ داسلام اومسلمانانو لپاره خوراخطرناکه ده.

## لغتونه:

(اعقبهم) ليث وايي چي: ددي کلمې چي وايي: ( اعقبت فلانا ندامة ) معناداده چي ديوچاعاقبت له حسرت اوندامت سره شي اوداسي ويل کيږي چي: ( أكل أكلة أعقبته سقما ) يعني هسي خواړه يې وخوړل چي وروسته رنځ اوناروغي ورته ورسيده (سرهم) رازددوى ( نجواهم ) پټي خبري هغه چي ددوو تنو ترمينځ وي له

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



نجوة څخه اخیستل شوي اوهغه هغوپټوخبروته ویل کېږي چې خبري کونکي نه غواړي بل څوک ددوی په خبروکي ګډون وکړي ( المخلفون) هغه پرېښودل شوي چې له جهاد څخه وروسته پاتي شوي وي ( الطول) غنا اوبډایي ته وایي ( المعذرون) هغه چاته وایي چې پرته له عذر څخه عذرلټوي. جوهري وایي چې دغه هغه چاته وایي چې په دروغو عذرونه وایي اصل یې له عذرنه اخیستل شوی دی اوپه متلونوکي راځي چې: ( أعذرمن أنذر).

## د نزول سبب:

أ: - روایت کېږي چې یوسړی چې ثعلبه نومېده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او ورته یې وویل: یارسول الله ماته دعاوکړه چې الله پاک مال راکړي پیغمبرصلی الله علیه وسلم ورته وویل، چې افسوس اې ثعلبه لږمال چې شکریې پرځای کړې ترهغه ډېرمال غوره دی چې دشکرپرځای کولو توان یې ونلرې هغه ورته وویل: زمادي په هغه ذات سوګندوي چې ته یې په حقه رالېږلی یې که دي ماته دعاوکړه اومالدارشوم هرچاته به خپل حق ورکوم او ترهغوبې پیغمبرصلی الله علیه وسلم ته زاري کولې څوبې دعاورته وکړه اومېږي وزې یې رانیولې هسې به ډېرېدلې ته به واچې چنجیان دي مدینه منوره یې په رمو باندي تنګه شوه اوبهر ووت اویوازي دماز یګر اوماسپښین لمنځونه به یې کول اوبیایې مالداري دومره ډېره شوه چې دجمعې اوجماعت لمونځ یې هم پرېښود نورسول الله صلی الله علیه وسلم یې پوښتنه وکړه خلګو ورته وویل چې: هغه اوس دومره مالدارشوی چې وزګار کېدلای نشي نورسول الله صلی الله علیه وسلم درې خله وفرمایل: افسوس دثعلبه په باب نوالله جل جلاله دغه آیتونه رانازل کړل ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ عَٰهَدَ ٱللَّهَ لَئِنْ ءَاتَىٰنَا مِن فَضْلِهِۦ لَنَصَّدَّقَنَّ ﴾ دآیت ترپایه اوبیانوموړي د حضرت عثمان رضی الله عنه دخلافت په وخت کي هلاک شو[1]

ب: - له ابن عمرضی الله عنهما څخه روایت کېږي چې هغه وویل: کله چې عبدالله ابن أبی ابن سلول مړشو نو زوی یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی اوځیني ویې غوښتل چې خپل مبارک کمیس هغه ته ورکړي تر څویې دپلار لپاره کفن کړي رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ورکړ اوبیایې ځیني غوښتنه وکړه چې په پلار یې د جنازي لمونځ هم وګوزاري نورسول الله صلی الله علیه وسلم ومنل حضرت عمررضی الله عنه ورته وویل: یارسول الله دالله په دښمن باندي لمونځ جنازه کوې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: اې عمره رانه وروسته شه ماته اختیار راکول شوی اوراته ویل شوي دي ﴿ ٱسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ ...... ﴾ التوبه ۸۰ دآیت ترپایه اوکه زه پدې پوهېدلای چې تراویاځله زیات استغفار ددوی دبښني سبب ګرزي هماغسي به مي کړي ووو لمونځ یې ورباندي اداءکړ اوبیا دډوری ترخندي ورسره ولاړ هلته یې په قبر ودرېدو څه شیبه نه وه تېره شوي چې داآیت نازل شو ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ ﴾ ( التوبه ۸۴ دآیت ترپایه)[2]

## تفسیر:

﴿ وَمِنْهُم مَّنْ عَٰهَدَ ٱللَّهَ ﴾ اوځیني له دغو(منافقانو ) څخه هغه دي چې عهدیې کړی وو له الله سره ﴿ لَئِنْ ءَاتَىٰنَا مِن فَضْلِهِۦ ﴾ چې خامخاکه راکړي ( الله) له فضله خپله ( مال اوپراخه روزي) ﴿ لَنَصَّدَّقَنَّ ﴾

---

[1] اسباب النزول ص: ۱۴۵ دغه چې مفسرینویادکړی هغه مشهورصحابي ثعلبه بن ابي حاطب نه دی یوبل منافق ثعلبه نومېږي والله اعلم.

[2] مختصرابن کثیر۲/ ۱۶۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَلَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ نو خامخا خیرات نو به ورکوو (فقیرانو ته) هرو مرو (زکاتونه به ترې باسو) او خامخا به شو موږ هرو مرو له صالحانو نه. ﴿ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُم مِّن فَضۡلِهِۦ ﴾ نو کله چې الله دوی ته (مال) ورکړ له فضله خپله شخه (دوی یې بدایان کړل) ﴿ بَخِلُواْ بِهِۦ وَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعۡرِضُونَ ﴾ نو بخل یې غوره کړ او بیرته وګرځېدل (عهد یې مات کړ) حال دا چې دوی شنګ کونکي وو (د الله او رسول له طاعت شخه) ﴿ فَأَعۡقَبَهُمۡ نِفَاقٗا فِي قُلُوبِهِمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ يَلۡقَوۡنَهُۥ ﴾ پس وګرځاوه (الله) عاقبت (د فعل) د دوی نفاق په زړونو د دوی کې (چې هیڅ به لیرې نشي) تر (هغې) ورځې پورې چې یو ځای کېږي به له الله سره ﴿ بِمَآ أَخۡلَفُواْ ٱللَّهَ مَا وَعَدُوهُ ﴾ په سبب د هغه چې مخالفت کړی وو دوی له الله د هغې خبرې چې وعده کړې وه دوی له الله سره (له تصد ق کولو او صلحیت شخه) ﴿ وَبِمَا كَانُواْ يَكۡذِبُونَ ﴾ او په سبب د دې چې دوی به دروغ ویل (د ایمان په راوړلو او احسان کولو په هکله) ﴿ أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ سِرَّهُمۡ وَنَجۡوَىٰهُمۡ ﴾ آیا ندي پوهېدلي (دغه وعده خلافان) چې بېشکه الله عالم دی په پټو (نیتونو د دوی چې په سینو کې یې شه دي؟) او په پټو مجلسونو د دوی چې په خپل مینځ کې یې سره کوي) استفهام د توبیخ او تقریع لپاره راغلی دی ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ عَلَّٰمُ ٱلۡغُيُوبِ ﴾ (او ندي پوهېدلي دوی په دې خبره چې بېشکه الله ښه عالم دی په ټولو پټو خبرو یعني الله جل جلاله ته ټول هغه چې له غوږونو، سترګو او حواسو پټ وي ښکاره او شرګند دي ﴿ ٱلَّذِينَ يَلۡمِزُونَ ٱلۡمُطَّوِّعِينَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ فِي ٱلصَّدَقَٰتِ ﴾ هغه منافقان چې عیب وایي په خیرات کونکو له مؤمنانو له (اداء د) صدقاتو کې ﴿ وَٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهۡدَهُمۡ فَيَسۡخَرُونَ مِنۡهُمۡ ﴾ او (بل عیب وایي د هغو بېوزلانو هم) چې هیڅ دوی نه مومي مګر په اندازه د وس خپل پس مسخرې کوي دغه (منافقان) په دوی پورې؛ طبري رحمه الله وایي چې ابن عباس رضی الله عنهما ویلي دي چې عبد الرحمن بن عوف څلوېښت زره اوقیه سره زر پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته راوړل او کوم انصاري رضی الله عنه یوه پېمانه (صاع) د خرماوو راوړه نو ځینو منافقانو وویل: په الله سوګند چې عبد الرحمن بن عوف دغه خپله صدقه ریا په توګه راوړه که شه هم چې الله او رسول د غه یوې پېمانې خرما ته هم اړتیا نلري نو دغه آیت نازل شو[1] ﴿ سَخِرَ ٱللَّهُ مِنۡهُمۡ ﴾ سزا به ورکړي (الله دوی ته د مسخرو) او دغه کلمه د مشاکلت په توګه راغلې ده[2] ﴿ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او شته دوی ته عذاب دردناک (چې د آخرت دوږخي تل ترتله عذاب دی) ﴿ ٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ أَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ ﴾ بښنه وغواړه (د دغو (منافقانو) لپاره او یا مه غواړه بښنه لپاره د دغو (منافقانو) دغه کلام د امرا او معنا یې أخبار دی یعني برابره خبره ده اې پیغمبره که ته دوی ته بښنه وغواړې او که نه الله بښنه نه ورته کوي ﴿ إِن تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ سَبۡعِينَ مَرَّةٗ فَلَن يَغۡفِرَ ٱللَّهُ لَهُمۡ ﴾ که اویا کرته دوی ته بښنه وغواړې له سره به الله دوی ته بښنه ونکړي. زمخشري

---

(1) الطبري ۱۰/ ۱۹۴

(2) مشاکلت د دو کلمو په لفظ کې اتفاق او معنا کې اختلاف ته وایي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وايې چي دغه خبره دمتل په توګه ياده شوي کوم چي ددوی په رواج په دتکثير لپاره اويا خله ويل کېدو (¹) مګر معنايې داده که ته هرخومره زيات ددوی لپاره بخشش وغواړې هم الله يې بښنه ورته نکوي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ كَفَرُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۗ ﴾ دغه (نه بښل) په سبب ددې دي چي بېشکه دوی کافران شوي دي په الله اوپه رسول دالله (په سخت کفرسره چي ايمان يې څرګند کړی او کفريې پټ کړی دی ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم فاسقانو ته (دايمان راوړلو توفيق نه ورکوي) ﴿ فَرِحَ ٱلۡمُخَلَّفُونَ بِمَقۡعَدِهِمۡ خِلَٰفَ رَسُولِ ٱللَّهِ ﴾ خوشحاله شوي وو بيرته پاتي شوي (له غزا دخپل نفاق له امله) په کېناستلو خپلو بيرته له رسول الله څخه (کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دتبوک غزاته روان شو اودوی پخپلو کورونو کي کېښناستل) ﴿ وَكَرِهُوٓاْ أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ اوبده ګڼله دوی داچي جهاد وکړي دوی په مالونو خپلو اوپه ځانونو خپلوپه لاره دالله کي (يعني دوی دمال اوځان ترځارولو راحت اوهوسايې غوره کړي وه څکه چي په زړونو کي يې کفر اونفاق وو ﴿ وَقَالُواْ لَا تَنفِرُواْ فِي ٱلۡحَرِّۗ ﴾ اودوی به ويل (پخپلو منځونو کي) چي مه ځئ تاسي (دتبوک غزاته) پدغي ګرمي کي (کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ددغي غزالپاره خلګوته دوتلو بلنه ورکړه او سختي ګرمي شپې ورځي وې) ابو السعود وايې: چي الله جل جلاله وفرمايل: ﴿ وَكَرِهُوٓاْ أَن يُجَٰهِدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ اوداسي يې ونه ويل چي: (وكرهوا أن يخرجوا الى الغزو) داددې لپاره چي له دې سره سره چي جهادخوراستر دثواب کاراودشرافت عمل دی داسي ښايې چي په کولو کي خلګ يوله بله سيالي وکړي خودوی هغه بدګڼانه اوپه هغه عمل اوکار چي هغه ترټولو بد اوناولی دی کوم چي له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وروسته پاتي کېدل وو خوشحاله کېدل اوبيايې خپلو ورونو ته دشر او فساد مارپينه (توصيه) کوله چي په ګرمي کي مه وزئ نودوی دکفر اوګمراهي درې خويونه پخپلو ځانونو کي را غونډکړي وو؛ خوښي په پاتي کېدلو له نبوي کاروان څخه، دجهادبدګڼل او نورخلګ هم له جهادڅخه راګرزول نو الله جل جلاله ددوی په ردکي وفرمايل: ﴿ قُلۡ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرّٗاۚ ﴾ (ووايه (اې محمده دوی ته چي هغه دجهنم اورچي تاسو ورتلونکي ياست په سبب دپاتي کېدلو له جهادنه چي تاسي له دغي تودې هوا څخه وېرېږئ جهادته نه درومی، خورا سخت اوتلپاتي دی؛ ددنيا اورخوتېرېدونکی اوهغه بل تل ترتله دی له هغه اورنه ولي نه وېرېږئ؟ زمخشري وايې چي: دغه ددوی استجهال دی څکه هرڅوک چي ديوې شېبې درېر اوتکليف په بدل کي دګردعمر تکليف په ځان مني ترجاهلانو لاپورته جاهل دی(²)) ﴿ لَّوۡ كَانُواْ يَفۡقَهُونَ ﴾ که وای دوی چي پوهېدلای (نوهسي به يې نکول له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دتبوک غزاته تللي وای دغه ګرمي به يې په ځان قبوله کړې اوله سختي ګرمي څخه به يې ځان ژغورلی وای چي تردې څوځلي زياته اوسخته ده خودوی بيابرخلاف لکه هغه متل چي وايې: (كالمستجير من الرمضاء بالنار) يعني له تودې هوا څخه تښتي اورته ورلوېږي اوپه پښتو کي متل دی چي (له بارانه يې منډي وهلي ناوې ته ودرېدو) ﴿ فَلۡيَضۡحَكُواْ قَلِيلٗا وَلۡيَبۡكُواْ كَثِيرٗا ﴾ نو ودي خاندي دوی لږ (په دنياکي) او ودي ژاړي

---

(¹) الكشاف ٢/١٩٥

(²) الكشاف ٢/٢٩٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



د پر(په آخرت کي ) دغه دامر کلماتي دي چي مقصد ور څخه اخبار دی يعني ژړدی چي دوی به لږ و خاندي او ډېر به وژاړي. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دنيا لږ موده ده پکي ودې خاندي چي څومره يې خوښه وي او ژړدی چي ډېر به وژاړي کله چي الله جل جلاله ته ورشي نو داسي تل ترتله ژړا به يې په برخه شي چي هيڅ انقطاع به نه لري

(۱)﴿ جَزَآءَۢ بِمَا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ﴾ له جهته دجزا په سبب دهغه عمل چي دوی به کاوو ( له هر ډول معاصي او ګناهونو څخه ) ﴿ فَإِن رَّجَعَكَ ٱللَّهُ إِلَىٰ طَآئِفَةٖ مِّنۡهُمۡ ﴾ او که بيرته الله ته ( مديني ته ) راوستی يوې طائفي ته له دغو وروسته پاتي شويو څخه ) ( هغه چي دتبوک له غزا څخه بې له عذره پاتي شوي دي ﴿ فَٱسۡتَـٔۡذَنُوكَ لِلۡخُرُوجِ ﴾ نو بيا اجازه وغواړي له تا څخه دوتلو ( بلي غزا ته ) ﴿ فَقُل لَّن تَخۡرُجُواْ مَعِيَ أَبَدٗا ﴾ نو ووايه ( اې محمده ادوی ته ) چي له سره به ونه وزئ تاسي له ماسره هيڅکله ( دجهاد لپاره ) ﴿ وَلَن تُقَٰتِلُواْ مَعِيَ عَدُوًّاۖ ﴾ او له سره به ونه جنګيږئ په ملګرتيا زماله هيڅ دښمن سره يعني تاسوته به دغه شرافت هډو درپه برخه نشي دغه خبردی خو مقصد څني نهی او منع ده چي مبالغه افاده کړي او ددوی دمذمت په څرګندولو کي راغلی چي ددوی ( نفاق لو څول يې مقصد دی ﴿ إِنَّكُمۡ رَضِيتُم بِٱلۡقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٖ فَٱقۡعُدُواْ مَعَ ٱلۡخَٰلِفِينَ ﴾ بېشکه چي تاسي راضي شوي يې په کېناستلو (او پاتي کېدلو ) اول واري ( دتبوک دغزا په وخت کي ) نو بيا ناست اوسئ له بيرته پاتي شويو کسانو سره ( چي ښځي او ماشومان دي ) ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٖ مِّنۡهُم مَّاتَ أَبَدٗا ﴾ او لمونځ مه کوه ( دجنازې ) په هيڅ يو تن له دغو (منافقانو ) چي مړ شي هيڅکله (ځکه ستا لمونځ رحمت دی او دوی د رحمت وړ او مستحق نه دي ) ﴿ وَلَا تَقُمۡ عَلَىٰ قَبۡرِهِۦٓۖ ﴾ او مه دريږه په قبر دده ( د ښخولو ، دعا او زيارت کولو لپاره ) ﴿ إِنَّهُمۡ كَفَرُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ بېشکه چي دغه ( منافقان ) کافران شوي دي په الله او رسول د الله ( په ژوندکي چي کفريې پټاوو اسلام يې څرګنداوو ﴿ وَمَاتُواْ وَهُمۡ فَٰسِقُونَ ﴾ او مړه شول حال دا چي دوی فاسقان وو( له اسلامه وتلي ) او په تمرد او عصيان کي اخته وو ﴿ وَلَا تُعۡجِبۡكَ أَمۡوَٰلُهُمۡ وَأَوۡلَٰدُهُمۡۚ ﴾ او تا دي په تعجب کي وانه چوي مالونه او اولادونه ددغو( منافقانو چي درته ښه ښکاره شي ) ﴿ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُعَذِّبَهُم بِهَا فِي ٱلدُّنۡيَا ﴾ بېشکه هم دا خبره ده چي الله اراده لري ددې چي دوی په دغو (مالونو او اولادونو ) باندي په دنيا کي په عذاب کاندي ( چي ربړونه او مصيبتونه وروويني ) ﴿ وَتَزۡهَقَ أَنفُسُهُمۡ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ ﴾ او ووزي ساوي ددوی حال دا چي دوی کافران وي ( او دوی د خپلو مالونو او لادونو مشغولتيا له عواقبو څخه غافل کړي دي ) ﴿ وَإِذَآ أُنزِلَتۡ سُورَةٌ ﴾ او کله چي نازل کړشي کوم سورت (تنکير دلته دتفخيم لپاره دی يعني کله چي کوم جليل الشان سورت نازل شي ) ﴿ أَنۡ ءَامِنُواْ بِٱللَّهِ وَجَٰهِدُواْ مَعَ رَسُولِهِ ﴾ پدې خبره چي ايمان راوړئ تاسي په الله او جهاد وکړئ تاسي په ملګرتوب د رسول د الله (دحق دنصرت او دين دغلبې لپاره ) ﴿ ٱسۡتَـٔۡذَنَكَ أُوْلُواْ ٱلطَّوۡلِ مِنۡهُمۡ ﴾ نو له تانه ددوی دقدرت خاوندان (چي مال دولت لري ) دپاتي کېدلو اجازه غواړي ﴿ وَقَالُواْ ذَرۡنَا نَكُن مَّعَ ٱلۡقَٰعِدِينَ ﴾ او وايي دغه ( منافقان ) پرېږده

(۱) مختصر ابن کثير ۲ / ۱۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



موږ چي اوسو سره د کور کېناستونکو (الله جل جلاله د دوی په رد کي د تقبیح او مذمت په توګه فرمايي: ﴿ رَضُوا۟ بِأَن يَكُونُوا۟ مَعَ ٱلۡخَوَالِفِ ﴾ راضي شول پدې چي وي دوی سره له بیرته پاتي شوو (ښځو ، بوډاګانو او ناروغانو چي پخپلو کورونو کي د عذر له کبله ناست وو) ﴿ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُونَ ﴾ او مهرلګول شوی دی په زړونو د دوی نو نه پوهېږي دوی (د جهاد کولو او پیغمبر د اطاعت په اجر او ثواب او پدې چي په نه منلو کي يې خومره وبال او بد مرغي ده) ﴿ لَٰكِنِ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ جَٰهَدُوا۟ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ ﴾ (لاکن رسول (د الله) او هغه کسان چي ایمان لرونکي دي له ده سره جهاد يې وکړ په مالونو خپلو او ځانونو خپلو) امام رازي رحمه الله وايي کله چي الله د منافقینو حال بیان کړ وروسته يې د پیغمبر او مؤمنانو حال راووړ چي خپل مالونه او ځانونه يې د الله د رضا او تقرب لپاره قربان کړل[1] او معنا دا چي که دغو منافقانو جهاد ته شاکړه خو تر دوی غوره کسانو چي مؤمنان او پیغمبر دی د سپېڅلي او رښتوني نیت او عقیدې خاوندان دي جهاد تر سره کړ ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡخَيۡرَٰتُ ﴾ او هم دغه کسان هم دوی لره ښېګڼې (د دواړو جهانو بریالیتوب او ولجې په دنیاکي او جنت ، کرامت په آخرت کي دی) ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ﴾ او دغه کسان هم دوی دي په مراد رسېدلي ﴿ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ تیارکړي دي الله (د ایمان او جهاد په سبب) دوی ته جنتونه چي بهېږي له لاندي (د مانیو او ونو) د هغو ویالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾ تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کي (او) دغه بری دی لوی (چي تردې ستر بریالیتوب نشته) ﴿ وَجَآءَ ٱلۡمُعَذِّرُونَ مِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ ﴾ او راغلل د دروغو عذر کونکي له (صحرائي) اعرابو (چي جهاد ته نه ووتللي) ﴿ لِيُؤۡذَنَ لَهُمۡ ﴾ لپاره ددې چي اجازه ورکړی شي (له پاره د پاتي کېدلو) دوی ته (د جهاد په پرېښودلو کي) دغه د هغو منافقینو د حالاتو بیان دی کوم چي کوچیان عرب وو او وروسته د مدینې د منافقانو له بیان څخه راوړی شو. بیضاوي وايي چي دغه د (اسد) او (غطفان) د توکمونو چي د دېرو اولادونو او بېوزلي عذرونه يې ویل او جهاد ته د نه وتلو عذر يې وړاندي کاوو حال دی[2] ﴿ وَقَعَدَ ٱلَّذِينَ كَذَبُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۚ ﴾ او کېناستل هغه کسان چي دروغ يې ویلي وو الله او رسول د الله ته (په دعوی د ایمان کي؛ او هغه کسان وو چي نه يې جهاد کړی وو او نه يې عذر ویلو چي ولي پاتي شول؟) ﴿ سَيُصِيبُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنۡهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ (ژر به ورسېږي هغو کسانو ته چي کافران شوي دي له دوی څني عذاب دردناک) دغه سخت وعید دی یعني دغو دروغجنو تخلف کونکو ته چي د ایمان دعوی يې په دروغو کړي دردناک عذاب چي په دنیاکي قتل او بند او په آخرت کي اور دی رسېدونکی دی ﴿ لَّيۡسَ عَلَى ٱلضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى ٱلۡمَرۡضَىٰ ﴾ (نشته په ضعیفانو او نه په ناروغانو) یعني نه شته په بوډاګانو نه په رنځورانو چي د جهاد کولو توان يې په بوډاتوب او رنځ بایللی دی ﴿ وَلَا

---

[1] الرازي ١٢/ ١٧٥

[2] البيضاوي ص: ٢٣٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عَلَى ٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ ﴾ اونه په هغو كسانو چي نه مومي دوى هغه (مال) چي يې ولگوي دوى (په غزاكي) ﴿ حَرَجٌ ﴾ هيڅ گناه (په پاتي كېدلو له جهادنه) ﴿ إِذَا نَصَحُواْ لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ كله چي اخلاص كوي دوى له الله اورسول الله سره (په ايمان راوړلو او نېكو اعمالوترسره كولوكي چي نه خو ددروغو آوازې خپروي نه خلگ له جهادڅخه راگرزوي اونه دفتنو اورته لمن وهي نوددغو كسانو چي دعذرخاوندان دي كه غزاته ولاړنشي هم وبال وربانديي نشته ﴿ مَا عَلَى ٱلۡمُحۡسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ﴾ نشته په نېكوكارانو هيڅ لاره (د عتاب اوالزام) په التسهيل نومي كتاب كي وايې چي دوى ته يې څكه محسنين وويل اوترڅنه عتاب يې څني پورته كړل څكه چي دوى له الله اورسول الله سره اخلاص غوره كړى دى(١) اودغه دبليغ الكلام نمونه ده څكه معنايې داسي راځي چي: دترټونكي لپاره دوى ته لاره نشته اودادمتل پرځاى راغلى دى. ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوالله ښه ښښونكى (دگناهونو) ډېررحم والادى (چي مغفرت اورحمت يې د معذورو كسانو حال ته هم شامل دى ﴿ وَلَا عَلَى ٱلَّذِينَ إِذَا مَآ أَتَوۡكَ لِتَحۡمِلَهُمۡ ﴾ (اونشته (گناه په وروسته پاتي كېدلوله غزانه) په هغو كسانوكله چي راغلل دوى تاته ددې لپاره چي ته دوى ته سورلى وركړې) دغه د ژړاندو(بكائينو) اصحابانوپه هكله راغلي هغه چي له پيغمبرعليه السلام څخه يې دجهادلپار سورلى غوښتي خو رسول الله صلى الله عليه وسلم نه درلودې. بيضاوي وايې: دغه اوه تنه ژړېدونكي اصحابان وو چي ويل يې: موږ په ځان منلي چي له تاسره جهادته ولاړشو خورسول الله صلى الله عليه وسلم دوى ته ويل چي: له ما سره ستاسي د سورلى هيڅ نشته نودوى په ژړا راوگرزېدل(٢) ﴿ قُلۡتَ لَآ أَجِدُ مَآ أَحۡمِلُكُمۡ عَلَيۡهِ ﴾ نوتا ورته وويل: چي نه مومم (همدااوس) هغه شى چي تاسي په هغه سپاره كړم لكه اوښ آس اونورچارپايان ﴿ تَوَلَّواْ وَّأَعۡيُنُهُمۡ تَفِيضُ مِنَ ٱلدَّمۡعِ حَزَنًا ﴾ نوبيرته وگرځېدل دوى حال داچي سترگي ددوى بهېدلې (يعني توېدلې) له اوښكو (دخفگان په سبب) ﴿ أَلَّا يَجِدُواْ مَا يُنفِقُونَ ﴾ (له جهته (دغمه) ددې وجهي چي نه مومي دوى هغه څه چي يې ولگوي (په جهادكي) يعني نه خودوى پخپله هغه څه موندل چي دجهادپه لاري كي يې ولگوي اونه هم له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره هسي څه شته چي دوى ته يې وركړي ﴿ إِنَّمَا ٱلسَّبِيلُ عَلَى ٱلَّذِينَ يَسۡتَـٔۡذِنُونَكَ وَهُمۡ أَغۡنِيَآءُۚ ﴾ بېشكه خبره هم داده چي لاره دملامتي په هغوكسانو ده چي اذن (دبيرته پاتي كېدلو) غواړي له تانه حال داچي دوى غنيان وي اودجهاد كولوبشپړتوان ولري ﴿ رَضُواْ بِأَن يَكُونُواْ مَعَ ٱلۡخَوَالِفِ ﴾ راضي شول پدې چي دوى ناست وي سره له بيرته پاتي شويو (چي ښځي، ناروغان اوبوډاگان، عاجزان دي ﴿ وَطَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾ اومهرلگولى دى الله په زړونو ددوى نودوى نه پوهېږي (دسمي لاري په موندلوباندې).

---

(١) التسهيل ٢ / ٨٣

(٢) البيضاوي ص: ٢٣٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## بلاغت:

۱ - ددې کلماتو ترمينځ چي: ﴿ يَعۡلَمُ ﴾ ﴿ عَلَّـٰمُ ﴾ دی داشتقاقي جناس صنعت دی.

۲ - ﴿ ٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ أَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ ﴾ ددې دواړو ترمينځ دسلب طباق موجود دی او امر له خپل حقيقت څخه دمساوات او برابري حقيقت ته را بدل شويدی.

۳ - پدې جمله کي چي ﴿ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ دی تنکير د تفخيم لپاره راغلی دی.

۴ - ﴿ فَلۡيَضۡحَكُواْ قَلِيلٗا وَلۡيَبۡكُواْ كَثِيرٗا ﴾ دلته له بديعي محسناتو څخه دمقابلې صنعت راغلی دی.

۵ - پدې کلام کي چي فرمايې: ﴿ رَضُواْ بِأَن يَكُونُواْ مَعَ ٱلۡخَوَالِفِ ﴾ خوالف ، هغو ښځو ته وايې چي دنارينه وو له تګ څخه وروسته په کلي کورکي پاتي وي او پدې کي استعاره ده او مېرمنو ته يې (خوالف) وويل چي له ستنو ( عمودونو ) سره يې مشابه کړي هغه ستني چي دکور په وروستۍ برخه کي دي نو دوی يې څکه ورسره مشابه وبلل چي لکه هغه دلزوم په توګه په کورونو کي دننه وي[۱]

۶ - ﴿ وَلَا عَلَى ٱلَّذِينَ إِذَا مَآ أَتَوۡكَ لِتَحۡمِلَهُمۡ ﴾ دغه عطف دخاص پر عام باندي راغلی دی او فائده يې دهغوی شان ته پاملرنه کول دي[۲]

## فائده:

زمخشري دالله جل جلاله ددې قول سره: ﴿ إِن تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ سَبۡعِينَ مَرَّةٗ ﴾ وايې چي د(سبعين) لفظ دمتل په څای راوړل شوی څکه دغه کلمه دعربو په محاوره کي دتکثير لپاره راځي .نو دلته يې دشمېر يادول مقصد نه دي بلکه دعربي اساليبو په توګه دتکثير مبالغه يې مقصد دی[۳]

## لطيفه:

دامشهوره خبره ده چي ( حذيفة بن اليمان ) درسول الله صلى الله عليه وسلم دراز اوسرخاوند وو او ښځکه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته ويلي وو: ( زه تاته يو پټ راز دربنيم ته يې هيچاته هم مه وايه ! ما ته ويل شوي چي دفلاني ، فلاني دجنازې لمونځ مکوه ! ) او يوه دله منافقان يې ښودلي وو او همدا الامل وو چي عمربن الخطاب رضى الله عنه به ورته راتواو ورته ويل به يې په لوى الله جل جلاله سوګند درکوم چي آيازه خو رسول الله صلى الله عليه وسلم له منافقانو نه يم شمېرلی ؟!

---

(۱) تلخيص البيان للشريف الرضى ص: ۱۴۸

(۲) روح المعاني ۱۰/ ۱۵۹

(۳) الكشاف ۲/ ۲۹۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net





Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

## ددوهم ټوک پښتو صفوة التفاسیر دسورتونو اوآیتونو نوملړ



Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

صفوة التفاسير 2 ټوک

د نصيراحمد احمدي

لخوا سکين او pdf سو

تاريخ. ۱۳-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محتـاج احمدي!

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner